# ښه لیک یادښتونه؟




# یا

# د افغانستان تاریخي پېښې


لیکوال

عبدالرؤف بېنوا



نېټه ليکګ يادښتونه :

يا

# دافغانستان تاريخي پېښې




ليکوال

**عبدالرؤف بينوا**

خپروونکی

داد بيا تواو بشري علومو پوهنځی

۱۳۵۴

د زلمی هیوادمل په اهتمام

یادونه : دغه کتاب د وړمې مجلې له پر له پسې ګڼو څخه استخراج شوی دی .

خطاط : محمد کبیر فریاد

د چاپ شمېر : ۱۰۰۰ ټوکه

د چاپ ځای : دولتی مطبعه

# دلوی خدای په نامه

کله چې موږ د هیواد لرغوني تاریخ ته وګورو، نو د تاریخ ځلانده پاڼې موتر سترګو کېږي. افغانستان د پېړیو په اوږدو کې په بشري تولنه کې مهم سهم لرلی دی. په زرو نو کاله د مخه د سمنګان په هزارسم کې د قبل التاریخ د یادونې وړ کلتور وجود درلود.

د کندهار په څو کیلومترۍ کې د منډیګک مکشوفه ستونې چې د قبل التاریخ دورې له مهم ثقافتمو هنجودیرو او هړپه سره دیر نژدې یوالي لري زموږ ددې خبرې ستر شاهد دی.

زموږ هیواد په ویدایي او اوستایي دورو کې مهمې دورې تیرې کړې دي، چې اصلاً دغه ستر بشري مدنیتونه، په افغانستان کې منځ ته راغلي دي، همدا رنګه یونانو باختري مدنیت زموږ د هیواد ثقافي تاریخ له مهمو برخو څخه شمېرل کېږي. په کوشاني دوره کې افغانستان د لرغونو مدنیتونو له امتزاج څخه یو ځانته مدنیت منځ ته راووست.

تر اسلام وروسته دورو کې هم افغانستان په اسلامي ثقافت کې لویه برخه درلوده، بلخي برمکیانو اسلام ته د عباسیو په رانغښتلو کې د یادونې وړ خدمتونه کړي دي.

له دې نه وروسته د افغانستان خپلواکو کورنیو، لکه طاهریانو، صفاریانو، سامانیانو او غزنویانو هرې یوې په خپل وار د علومو او اسلامي ثقافت په خپرونګ، پراختیا او پرمختیا مهم کارونه ترسره کړي دي، ددې تولو کتنه د ختیځ ثقافتي تاریخ له په زړه پورې بابونو څخه شمېرل کېږي.

لومړی

سړي ګله غواړي چې په تاريخ کې يوه خبرسمد لاسه پيدا
کړي يا غواړي يوه شی چې په يوه ټاکلی کال کې څه پيښه په
تاريخ کی شوي ده ، له همدې ځا يه نيټه ليک (کرونو لوجی)
ا رځښت پيدا کوی او په نړی کې دود پيږی.

زموږ دګران هيواد په تاريخ کې ددې اړ تيا د ترسره کيدو له
پاره محترم استاد پوهاند عبد الحی حبيبی خپل د کلو نو ـ کلو نو
پادښتو نه راټول کړل او «دافغانستان تاريخی پيښليک» په نامه
په کتابی بڼه خپارد شول، خو استاد عبد الرؤف بينو ا بيا د ا
پيښې لړځه مفصلې و کښلې او دادی او سمړی ټوک يې و ړاندې کيږي .

استاد بينوا په دې ټوک کې دافغانستان پيښې د کالو نو په
بوړ يو کې له ۲۰۰۰ ق ، م څخه را نيولو لې او غزنوی د ورې ته
يې را رسو لې دي. دا د روند استاد چې زموږ دهيواد لوی اد بی
شخصيت دی زما استاد هم دی او ديرش کاله پخوا مې له ده
څخه ادبی فنو ن زده کړي دی . استاد بينوا په هغې بر خه کې
هم ا بتکا ر لری او لومړی ځل يې د پښتو ادبی فنو ن و کښل ،
ليکنه يې روا نه او د کار ټول يې تحقيقی دی، تر دی ځايه چې
دده آثا ر نه يوازې د پو هنتو ن د محصلا نوا و په هيوا د کی
د ننه د زده کوونکو له پا ره د استفا دې وړ دی بلکه د خا رجی
څيړو نکو له پا ره هم ښه لار ښو ددی .

هيله لر م چې دد وی ددی کار لمن پسی او بده شی او دګران
هيو اد تر سعا صری دوری پو ری را و رسيږی .

او س چې د پښتو ژ بې او ادب د بين المللی مر کز پر انستلو بين المللی
سيمينار جوړ شوی، دادبيا تو پو هنځی خوښه ده چې دا کتاب د
افغانستان د تا ريخ او ثقافت د څيړ و نکو لوړ حضورته وړاندې کوی.

په د رنا وی

**پوهاند ميرحسين شاه**
**د ادبياتو د پوهنځی رئيس**
**۱۳۵۴ - ۸ - ۸**

# یادښت

دا نیټه لیکګ یا د پښتو نه چې دا دی موږ یې دوړ سې په ګڼو کې تر څېړ ید و و روسته لومړی توك په جلا چاپ بڼه ، ګرانو لوستونکو ته وړ اندې کوو ، دهیواد د پیاوړی لیکوال استاد بینوا له ستر و تاریخي لیکنو څخه ګڼل کیږي ، او پیله کوم اړ نګه یې د پښتو پوهنیز و لو په لار کې یو بل ګټور او اغیز من ګام بللای شو. ددې لړی پېل تر زیږ دی کال دمخه له دوېمې زری څخه شوی دی او دا سې پیل شو یده چې تر دمه راورسی .

که څه هم تیر کال په همدې برخه کې د نومیالي پښتون لیکوونکي پوهاند حبیبي د افغانستان تاریخي پېښ لیک په نامه یو بل ګټور یو توکیز اثر چاپ شو، چې «له تاریخ نه مخه بیاد ۱۳۴۱ لمریز کال تر پایه د اوی افغان او لس سیاسي او ټولنیز ژو ند پوهنه، کولتور او هنر را اخلي» مګر د استاد بینوا د اوسره بیا تر هرڅه زیات په دې کې توپیر لري، چې همدغه نیټه لیکګ یا د پښتو نه په یو څه جلا الوا ك او سپېڅېزه بڼه څر ګند وي .او په دې توګه د لوستو نکی تند ه ښه تر ا خړو بوي. د همدغه سپېڅېز والي او او یوالي له کبله موږ و بلله ، چې لومړی توك یې د غزنوي دورې له بشپړيدو سره و تړو ، او د اچې موله کوم لامله دغه دو ره هم د و یم توك ته پر یښوو ه ، هغه د لیندۍ پر لومړۍ نیټه د پښتو سیمینار جوړید ل وو، چې په کار وو ، په همدې و یاړ خپور شي .

د ریم

په دې توګه ښايي پښتو والي به له سخت ګټې سره دومره مضمون ونه لري.

د کرونولوجي لپاره زموږ د نېټه ليکنې نمونه د بوی سلاله مخې و تا ګل شوه چې له استا د حبيبي او پخپله له استا د بېنوا سره شوې وه ـ په دې ډول مو ښېښن ليکنې بيا د «تاريخ» لپاره پرېښود همدې خو پښتون مجلې نيمه پېړۍ پخوا د «نېټه ليکنې» نومونه د تاريخ لپاره کارولي وه .

په پای کې د استاد بېنوا د دې پښتنې او علمي زيار ستاينه کوو او د هغه د پښتو پالنې او نورو ليکنو له پاره يې د اوږد عمر او برى هيله.

په درناوی

دوکتور مجاور احمد زيار

د ادبپوهنځي د پښتو څېړونو چلوونکی

۸ ـ ۸ـ ۵۴

# سریزه

د تاریخ په لیکنه کې له پخوا زمانو څخه یو څو مشهور مکتبونه شته چې له هغو څخه یو مکتب داسې دئ، چې مورخ د پېښو پر اساس د هر کال پېښې جلا جلا د هغه کال تر عنوان لاندې راوړي، او لنډې لنډې يې کاږي، تفصیل یا تبصره یا تحلیل نلري.

دا کار د هغو خلکو لپاره ډېر ګټور دی، چې غواړي د یوې پېښې د وقوع کال ځانته معلوم کړي، یا وپوهېږي چې په پلاني کال کوم کوم لوی وقایع پېښ شوي و ؟

په عربي او دري او نورو ژبو کې داسې کتابونه شته، او خلک يې لولي، ګټې ځنې اخلي، او کله کله په مفصلو تاریخونو کې حوالې هم ور کوي، او هغه وقایع چې په نیټه لیک کې لنډ لنډ راغلي وي، په تفصیل ئې لیکي او د هغو تحلیل هم کوي، خو داسې لنډ نیټه لیک هم ورته پروت وي، چې د مفصل تاریخ د فهرست کار ور کوي، او د مورخ کار ور اسانه کوي.

ښاغلي بېنوا د دې کتاب فاضل مؤلف څو کاله د مخه په دې کار لاس پورې کړی و، او ځینې برخې ئې په انګریزي یا دري خپرې شوي هم دي. مګر اوس د کابل پوهنتون د ادبیاتو او بشري علومو د پوهنځي په همت دادی د دې ګټور کتاب لومړی ټوک له ۲۰۰۰ ق م څخه بیا تر ۲۳۹ م پورې بېل خپرېږي او ښاغلو لوستونکو ته وړاندې کېږي، امید دی چې دوهم ټوک یې هم خپور شي.

پنځم

ښاغلي مؤلف ددې پېښو په لیکڼ کې اوږده تفصیل هم ځای کړی دی چې یوازې ئې ته لیکڼ ندی ، بلکه د هغې زماني عمومي اوضاع هم لږ و ډېر څرګندوي .

پښتو ژبه اوس علمي آثار او داسې دګټې وړ کتابونو ته اړتیا لري ، ترڅو چې د یوې ژبې علمي پانګه ډېره نسي تر هغو هغه ژبه د نورو سره سیالي نسي کولای . اوسني پښتانه باید زیار و کاږي چې د تألیف او ترجمې له خوا دغه پانګه ډېره غني او غوره او دګټې وړ کاندي .

زه د ښاغلي بېنوا دغه علمي زیار ستایم او ده ته توفیق غواړم چې دا کار ښه بشپړ کړي او د پښتو په علمي پانګو کې تردې لا ښه مواد زیات کاندي .

دلته دا هم زیاتوم : زموږ زلمي پوهان چې له خارجي پوهنتونو څخه ئې علمي پانګې او تحصیلي سندونه راوړي دي ، دوی هم باید اوس په علمي زیار او پلټنه لاس پورې کړي او داسې کتابونه او آثار ولیکي چې د وطن د زلمو علمي تنده ورماته کړي او د ژبې په علمي پانګو کې مفید اثار زیات کړي .

که زموږ له لاسه پوره نسوه
زلمي پوهان به خپله ژبه وپالینه

جمال مینه کابل ۵ میزان ۱۳۵۴

**پوهاند عبدالحی حبیبی**

# دا کتاب :

ما په ۱۳۵۱ هـ ش کال کې د کابل ټایمز Kabul Times
دورځپاڼې د پاره د مقالو په شکل په دري ژبه پیل کړ ، چې د هغې
ورځپاڼې له خوا په انګریزي ژبه اړول کېده ، او بیا وروسته بیا برخه ئې د
"Chronological Notes on Afghanistan"
ترعنوان لاندې پر له پسې په ۷۸ ګڼوکې خپره سوه ، چې وروسته
بیا د کابل پوهنتون د ادبیاتو او بشري علومو د پوهنځي د «وږمې»
د مجلې د محترمې ادارې په غوښتنه سې هغه مقالې له دري څخه په
پښتو راواړولې ، او تر اوسه پورې په دغه درنه مجله کې خپرېږي چې
داده لومړۍ برخه ئې د دې کتاب په شکل په جلا توګه چاپ سوه .

په دې کتاب کې لکه چې وینئ ئې له ۲۰۰۰ ق م څخه بیا تر :
تر ۹۴۲ م پورې د افغانستان مهمې تاریخي پېښې راوړل سوې دي ، او له
پورتني نېټې څخه بیا تر اوسني عصره پورې نورې پېښې به په بل
ټوک او یا نورو ټوکو کې راوړل سي .

دا پېښې که څه هم «د نېټه لیک یادښتو Chronological Notes»
په توګه ترتیب او تدوین سوي دي خو بیا هم زیار ایستل سوی دی
چې د پېښو تاریخي کړۍ او تسلسل سره ونه شلېږي یعنې د دې
کتاب ویونکی که له یوې خوا په دې کتاب کې د افغانستان
د مهمو تاریخي پېښو کتلو ته سوسي په عین حال کې د دې

تاریخي پېښو سیر هم کتلای شي .

بنایي چې زما څخه به ځینې مهمې پېښې پاته سوې هم وي، خو له دې امله چې په پښتو ژبه کې د «نېټه لیک» په توګه د تاریخي پېښو لیکل یو نوی کار دی نو محترم استادان به ما و بخښي او ګران ځلمیان څېړونکي به د خپلو څېړو نو له لارې دا نیمګړتیا بشپړه کړي .

د لته خپله اخلاقي وظیفه ګڼم چې د ادبیاتو د پوهنځي د محترم استاد ، پوهاند عبدالشکور رشاد څخه د زړه له کومې تشکر و کړم چې د دې اثر لیکلو ته ئې زه تشویق کړی یم ، او هم د ادبیاتو او بشري علومو د پوهنځي مشر پوهاند میرحسین شاه ته کوروداني و وایم چې په جلا توګه ئې د دې کتاب چاپولو ته موقع ورکړې ده ، او د دوی لا نور بری غواړم .

**په درناوی**

**بېنوا**

# مأخذونه

ددې کتاب په لیکلو کې ما له دې لاندې کتابو څخه استفاده او اخوستنه کړې ده :

۱ـ آثار الباقیه : دابوریحان البیرونی تالیف ، دلیپزیګ عربی چاپ ، او دتهران دفارسی ترجمې چاپ.

۲ـ آثار عتیقه کوتل خیرخانه ـ د مو سیو ها کن لیکنه او د ښاغلی کهزاد ترجمه ـ دکابل چاپ .

۳ـ اخبار العلمأ باخبار الحکمأ : د قاضی علی بن یوسف قفطی تألیف دقاهرې چاپ .

۴ـ افغانستان بعد از اسلام : لـو مـړی ټـوك ـ د پوهاند عبدالحی حبیبی تألیف دکابل چاپ .

۵ـ افغانستان در مسیر تاریخ : د ښاغلی میرغلام محمد غبار تألیف ـ دکابل چاپ .

۶ـ انسایکلو پید یا آف اسلام ـ (دایرة المعارف الاسلامیة )

۷ـ ایران بعهد ساسانیان ـ دکریستن سین تالیف او د داکټر محمد اقبال اردو ترجمه ـ دډهلی چاپ .

۸ـ البدء والتاریخ : دمطهربن طاهر مقدسی تألیف ـ د پاریس چاپ .

۹ـ برمکیان : دلوسین بووا تألیف اوعبدالحسین میکده فارسی ترجمه ـ دتهران چاپ .

۱۰- پټانز : دسراولف کیرو تألیف ، اودسید محبوب علی اردو ترجمه - دپېښور چا پ .

۱۱- پټه خزانه : دمحمد هوتک تألیف، د کابل چا پ .

۱۲- پښتانه دتاریخ په رڼا کی : د ښا غلی بها در شاه ظفر کاکاخیل تألیف - د پېښور چاپ .

۱۳- پښتوولویکان غزنه: دپوهاند حبیبی لیکنه- د کابل چاپ.

۱۴- تاریخ ادبی ایران : ددا کتر براو ن تألیف - او د علی پاشا صالح فارسی ترجمه دتهران چاپ .

۱۵- تاریخ ادبیات در ایران : لومړی او دو هم ټوک - ددا کتر ذبیح الله صفا تألیف - دتهران چاپ .

۱۶- تاریخ افغانستان: لومړی اودوهم ټوک، دښاغلی احمدعلی کهزاد تألیف د کابل چا پ .

۱۷- تاریخ افغانستان : دریم ټوک دښا غلو غبا ر، نعیمی ، فرهنګ ، محبی اوخلیلی تألیف - د کابل چاپ .

۱۸- تاریخ الامم طبری : د ابو علی محمد بن محمد بلعمی فارسی ترجمه - دتهران چاپ .

۱۹- تاریخ ایران - د سرپرسی سا یکس تألیف - د ښا غلی سید محمد تقی فخر دا عی گیلانی ترجمه .

۲۰- تاریخ بخارا : دابو بکر محمدبن جعفر النرشخی تألیف او دابو نصراحمد بن محمد بن نصرا لقباوی ترجمه ، اود محمد بن زفر تلخیص - دتهران چا پ .

۲۱- تاریخ سیستان : دنامعلوم سړی تألیف - دملک الشعرأ بهار په سمون - دتهران چاپ .

۲۲- تاریخ یمینی : د محمد بن عبد الجبا ر عتبی تألیف دمصر چا پ.

۲۳- تاریخنامه هرا ت : دسیف بن محمد سیفی هروی تألیف- د کلکتې چا پ .

٢٤- تمدن اسلام و عرب : دگوستاو لوبون تألیف ـ او دفخرداعی گیلانی فارسی ترجمه دتهران چاپ .

٢٥- حبیب‌السیر : دخواند میر هروی تألیف ـ دتهران چاپ.

٢٦- حکمای اسلام : په اردو ژبه دمولاناعبدالسلام ندوی تألیف ـ دهند داعظم گړ دمعارف دمطبعې چاپ .

٢٧- خراسان : دښاغلی غبار لیکنه ، دکابل چاپ .

٢٨- دافغانستان نومیالی : دبینوا تألیف ـ دکابل چاپ .

٢٩- دورهٔ تاریخ ایران : دښاغلی حسن پیرنیااو ښاغلی عباس اقبال آشتیانی تألیف ـ دتهران چاپ .

٣٠- راهنمای بامیان : دښاغلی کهزاد لیکنه ـ دکابل چاپ.

٣١- روضات الجنات فی اوصاف مدینة هرات : دمعین الدین محمد اسفزاری تألیف ـ د تهران چاپ .

٣٢- روضة الصفاه ناصری .

٣٣- زین الاخبار : دعبدالحی بن ضحاك گردیزی تألیف ـ د تهران چاپ .

٣٤- طبقات ناصری : دمنهاج الدین عثمان بن سراج الدین معروف په قاضی منهاج سراج جوزجانی تألیف ، لومړی او دوهم ټوك ـ د کابل چاپ .

٣٥ - فتوح البلدان: داحمدبن یحیی بلاذری تألیف ـ دقاهرې چاپ .

٣٦- مجمل التواریخ والقصص : دنامعلوم سړی تألیف ، دملك الشعرأ بهار په سمون دتهران چاپ .

٣٧- مروج الذهب : دعلی بن حسین مسعودی تألیف ـ دقاهرې چاپ .

٣٨- مزارات بلخ : دمحمد صالح ورسجی تألیف ـ خطی نسخه د کابل په عام کتابتون کې .

۳۹ مزارات لوگر : دښاغلی محمدابراهیم خلیل لیکنه - خطی
۴۰- الملل والنحل : دمحمد بن عبد الکریم شهرستانی تألیف اودافضل الدین صدرترکه اصفهانی فارسی ترجمه - دتهران چاپ.
۴۱- وفیات الاعیان وانبأ ابنأ الزمان: دقاضی احمد بن محمد ابن خلکان تألیف - دمصر چاپ .



دولسم

## نیټه لیک یادښتونه:

یا

# دافغانستان تاریخي پېښې

## د ۲۰۰۰ ـ ق ، م په شاوخوا کې :

له بلخ څخه (چې هغه وخت بلهیکا یا بخدي باله کېده) د آریایي اویو ټبرو لېږد پیل سو ، چې یوه برخه یې د هندوکش سویلي سیمو ته راښیوه سوه او بله برخه یې هملته په بخدي کې پاته سوه .

دا برخه چې د هندوکش جنوبي خواته را واوښتله د سپین غره د دواړو خواو په لمنو کې ځینو نورو کانو سره میشته سوه چې د ریګوید Regveda په مشهور کتاب کې د « پکهت » یا « پکتهـ » یا « پښت » په نامه یاده سوې او د اوسني « پښتون » کلمه له همدې ریښې څخه راوتلې ده او هم د آریایي ټبرو د دې برخې ټاټوبی د « پکتیا » یا « پکتیکا » په نامه و باله سو چې د « پښتونخوا » کلمه په همدې ریښې پورې اړه لري (۱) . سپین غر چې هغه وخت یې سپیتا گوناگري "Spita gaonagairi" باله ، د دې ټاټوبي په منځ کې په هسکه غاړه ولاړ وو .

د « پکهت » یا « پښت » ټبر په ریګوید کې څو ځایه یادسوی دی ، او د دې ځای د زلمي پاچا « تورواياڼا » زړورتوب او جنگونه ډېر ستایل سوي دي .

---

(۱) د دغو وروستیو ویو په باره کې نوی اتمولوژیك او تاریخي الوا کونه ( نظریې ) هم د پاملرنې او پرتلې وړ دي ، د بېلگې په توگه د ناروېژي پروفیسر مارگنستیرن دا ، چه په ۱۹۶۷ کال یې د برن په پوهنتون کې د یوه کنفرانس په ترځ کې څرگند کړ او یا دا ، گریزي پروفیسر ارنولد ټاینبي دا ، چه په ۱۹۶۰ کال یې په کابل کې د یوه کنفرانس په ترځ کې څرگنده کړه وگوری « پروفیسر ټاینبي رودونه او بریدونه ، الماني خپرونه ۱۹۶۳ ، ۱۵ مخ (وومه ) .

تور وایانا د هغی غښتلی‌تبی په‌ورانديږ بریالی سو ، چی‌ترهغه‌وخته هیڅ یوې قبیلی و رسره مقابله نه‌سوه کولای ، د هغی قبیلی پاچا «دیوو داسا» نومیده چی نه‌نبوی(۹۹ ) کلا گانی یی نیولی وې ، خود پکتیانو پاچا«توروایانا» هغه‌ته ماته ورکړه. دمؤرخینو پلار یونانی هیرودو ت (۴۸۴ - ۵۲۵ ق م )داتبر د«پکتی ؛ پکتیس اوپکتویس» په‌نومو یاد کړی دی اوددوی خاوره یې د« پکتیکا » یا «پکتیا» په‌نامه بللی ده او وایی چی‌په پکتیکا کی‌دسلیمان دغره اودسپین غره څانګی خپري سوی دی اود پکتیکا د دی څلورو قبیلو نومونه اخلی :

**۱ - ګنداري :-** دګندهارادتاریخی‌سیمی‌داوسیدونکو نوم وو چی د اسیمه‌د کابل له‌دري څخه ترانډوسه پوري پرته وه اواوسیدونکی یې دتاریخ په‌زیاترو دورو کی«ګنداری» یا«ګندهاری»په‌نامه یاد سوی دی .

**۲ - ستاګیدی :-** داقبیله هیرودوت کندهار یوسره تړلي ګڼی ، ستاګیدیو دآراکوزی (دکندهار اوارغنداو) له خلکو سره‌هم تګ را تګ درلو د . ښوک د « ستک » له توری څخه چی په کلمه کی‌سته د« ختک» کلمه راپاسی ، خومځینی پیاوایی‌چی‌دا کلمه د«ستا»یاد«ست» یعنی مل او «ګیدی» یعنی غوا څخه جوړه سوي ده چی مانایی «دسلوغواو خاوند» کیږی . د دې قبیلی دنده مالداری وه کا لی‌نی ګندهاریو ته ورته وه . لنډی او سمی توری یې درلودلې‌دبدن پورته برخه او ورنو نه یې یې زیاتره وخت برینډوه .

**۳ - اپاریتی :-** داقبیله‌دسپین‌غره‌جنوبی خواووته اوسیدله او ما نا یې« غرنی » ده. پیلیو په‌خپل کتاب کی «اپاریتی»اواوسنی «اپریدی» یوبوا ی او دانظر یه‌د فقه اللغی له مخی درسته هم ده .

**۴ - دادیکی :-** یعنی‌تاجکی‌چی‌د هیرودوت په‌نظر په‌«تاجک» د« پکت » د قبیلی یوه څانګه ده .

## د ۱۹۰۰ - اود - ۱۵۰۰ ق م ترمنځ :

وروسته ترهغه‌چی دآریائی‌قبیلو یوه برخه د هندوکښ جنوبی سیمو ته وکوچیدله د پا ر و شنی Parushni (ایراوتی ، راوی )دسیند پرغاړه دآریا یی‌قبیلو په‌خپل‌منځ کی د( لسو ملکا نو ) یا(لسو پاچهانو) اویا(لسوقبیلو) مشهوره جګړه ونښته اودې لسوقبیلو پکښې‌ګډون درلو د :

۱- الینا: Alinas ( نو رستا نیانو)

۲- پکته: Pakthas ( پښتنو )

۳- بهالانا : Bahalanas (د بولان دد رې اوسیدونکو)

۴- شیوا : Chivas ( د کابل دشیو کښو اوسیدونکوا ویا اندوس تهاډ دي خلکو)

۵- ویشا نن : Vishanins

۶- انو Anus

۷- درو هیو : Druhyus

۸- تو رو اشا: Turvasha

۹- یادو : Yadus

۱۰- پو رو : Purus (د پامنی اندوس او گند ها را دخنی و اوسیدو نکو).

ددې جګړې د پیښید و ښکاره سبب دد ووتنو مذهبی او رو حانی مشاورینو عزل او تاکل وه چې یو عزل او بل یې پر ځای و تا کل سو. په ریګوندا کې دا پیښه داسې بیانوی : «هغه وخت دبهار اته Bharta آریایی قبیله د کندها ر له ارغنداو ه د بولان له لارې او له کوبها (کابل) څخه د خیبر له لارې دسند هو Sindhu دڅړ سیموته کښته سوه او په هند او پنجاب کې خپره سوه ، یو پاچا یې درلو د چې (سو دا س) نومیده او د «دیو اداسا Divadasa » زوی یالمسی وو . دې پاچا یو پو مذهبی مشا ورد رلود چې «ویسو امیترا Vevamitra »نو میده او دبهار اته د قبیلې د «کوز یکا Kusika » له ادب پالونکی کورنۍ څخه وو . دې مذ هبی مشاور دخپل معنوي او رو حا نی نفوذ او د خپلو کتهو رو تد بیر و له لارې له « سودا س» مرسته برې مرستې کړې وې ، په تیره بیا د «ستردو Sturdu » «ستلج » او «و یپا شا Vipashia » په فتوحاتو کې یې لوی لاس دراود . یوه ورځ پا چا خپل داسشاور عزل کړه او د هغه پر ځای بې یو بل سړی ، چې «وا سیستا س Vasistas » نو میده ، وتاکی ، نو د همدې عزل او تا کلو په نتیجه کې ددې دوو مذاهبی مشاو رانو دکور نیواو قبیلو ترمنځ دنفاق او اختلاف او ربل سو. اوځنګه چې « و یسو ا میترا » د پیر ژبو ر سړی وه او هم یې په قبیلو کې زیات نفوذ درلود ، نو د «سوداس» پر ضد یې په فعا لیت لاس پو رې کړه او دبهار اته د قبیلې څینې ښخې یې « سو دا س » ته

و پاروالې او په جنګ یې ورسره واچولې، خو په جنګ کې «سوداس» بر یالی سو، او د «انو» او د «درو هیو» دقبیلو ساکان ووژل سوه.

**د ۱۵۰۰ ق،م په شاوخوا کې:** په باختر کې یوه ډیره غښتلې او خپلوا که آریائی شاهي منځ ته راغله چې دبین النهرین او مصر د ساسي دولتو هم مهاله وه.

دا شاهي د یوه لوی کهاله له خوا اداره کیده چې لومړی پاچا یې دوید ی په سرو دو کې د «یاما» یا «یا ما را جان» یعنی «یاما پاچا» او په اوستا کې د «یما» یا «یما خشا ینه» په نامه یاد سوی دی، او د سلطنت مرکز یې د «بخد یم سر یرام اردو د رفشام» په صفت ستایلی سوی، چې مانا یې داده: «ښکلی بلخ د هسکو بیرغو لرونکی».

«یما» د «پا را دا تا» یعنی دبلخی پیشدا د یانو «لومړ یو پاچها نو» د کها له د شاهی بنسټ ایښوونکی او مؤسس و، چې دا کهول دهغو لومړنیو آریا یی پاچها نو کهول وو چې وروسته په اسلامي دورو کې د هغو لومړی پاچا د «جم شید» یعنی «ځلیدونکی یما» په نامه یادسو.

د یما پاچا د شاهي پنځه نښې ډیرې مشهورې وې:

۱- د شاهي لکړه: چې په هغې یې دبخدی دښاردو دانې ځای او د «وازا» سانې دوداني او دپاره ځمکه وټاکله.

۲- غمی: چې دا یې پر تول هیوادباندې دواکمنۍ نښه وه.

۳- تېش - غاښور: چې په دري ژبه یې (ګاوا هن) بولی او له کرنې سره یې د یما پاچا مینه ښوولـه.

۴- توره: چې د یما پاچا د زړورتوب او جنګا لیتوب نښه ګڼله کېدله.

۵- کټوری - جام: چې د یما پاچا دخوښۍ او کامرانۍ نښه وه او په اسلامي دورو کې شاعرانو هغه ته «جام جم» ویلی دی.

یما پاچا چې دشاهي واګې په لاس کې ونیولې نو اوسېدونکار یې داوو، چې د بلخ او باختر سیمو ته یې دوپالو په کېندلو لاس پوری کې او دی لومړی پاچا و، چې د کرنې لارې چارې یې دباختر آریا ئیانو ته وښوولې، دوسلې استعمال یې منځ ته راوبوست،

روحاني تولني يې جوړې کړې ، نظامي طبقات يې منظم کړه ، داوو دلو فن يې په هيواد کې
خپور کړی ، دوداني او معماري خوا ته يې د خلکو مخه وا ړوله ، خلک يې کر نې، کار او
نيالګيو ايښوو لوته تشويق کړه او د بدن پا کې او روغتيا او د بنې ښکلا او د آريا يې پا کې
ويني صفا ساتلو ته يې خورا زياته پاملرنه درلوده او ډير اهميت يې ورکاوه . همدارنګه
دده په دوره کې د قيمتي ډبرو ، فلزاتو او طبيعي درملو او عطرو استعمال دود و مو ندی ،
خو دده دپا چهۍ يو ډير قيمتداره ياد ګار د کال دلومړی ورځې ( نو روز ) جشن وو ، چې
دده په وخت کې دود سو .

ديما پاچا دپلار نوم په ويدي سرود و کې « ويو اسوا ت » يعنې « را ختلی لمر » او په
اوستا کې « وېوا نګانه » راغلی دی . مشره لور يې « آريا» او کشره لوريې « يامی» نومېدله .
ديما پاچا د کهاله د پاچهانو له هيواد څخه په اوستا کې د ا شپا ړس ولا يتونه يا د
سوي دي :

۱- ايريا نم و يجو Airyanem—vaejo (دامو د سيند برنی سيمه )

۲- سغده Sughdha (سغد يا نا )

۳- مورو Moura (مرو )

۴- بخدي Bakhdi (باخ)

۵- نيسايا Nissaya (د سرغاب سيمه)

۶- هيرويو Haroya (د هرات سيمه)

۷- ويکرويته Vaekereta (د کابل سيمه)

۸- اوروا Urua (دارګون سيمه)

۹- خننتا Khnenta ( ګرګان)

۱۰- هره ويتي Haravaiti (د دهراوت او ارغنداو سيمه)

۱۱- هيتومنت Haetumant (د هلمند سيمه)

۱۲- راغا Rogha (دبدخشان راغ يادري سيمه)

۱۳- کخره Kakhra (غزنی )

۱۴- وارنا Varena (دوزيرستان وانه پاد بامیانو سيمه )

۱۵-هپته هندو Hapa Hindo (دسند سیمه)

۱۶-رانگه- رانغه Rangha (دسر دریاسرچینی سیمه)

**۱۴۰۰-۵ ق.م په شاوخوا کی :** دبرهمنانو دمشهور کتاب «ریگویدا» یوه برخه سرود ونه دافغانستان په جنوب ختیز و سیموکې منځ ته را غله چې وروسته بیا په هند کې بشپړ سوه.

خوتردې ښکاره سرود و پخوا ځینې لرغونی سرود ونه هم وه، چې له منځه تللی او مؤرخینو هغه (ورك سرودونه) بللی دي او دهغوورکولرغونیوسرودود پیدا کید و ځای خو یقیناً دآریاییانو دهستوگنی او تهذیب دیر پخوانی تاتوبی (بخدیم سرورام) یعنی ښکلی بلخ و و.

دریگویدا سرودونه په افغانستان کې د پخوانیو آریاییانو دیوه مهذب مدنیت ښکارند وی گڼل کیږي چې هغه ته باید (ویدي مدنیت) وویل سی.

ویدي سرودونه پرڅلورو برخوو یشل سوي دي چې د موضوع د قدامت له مخې په دې تومو یاد یږي :

**۱-ریگ ویدا** Rig-veda : داپو را زمنظوم سرودونه وه چې شمیر یې (۱۰۲۸) ته رسیدء.

د (ریگ) معنا ستاینه او د (ویدا) معناپوهنه ده، نود (ریگویدا) معنا (دستاینې پوهه) یا (د ستاینې علم) کیدای سی.

دریگویدا ټول توري (۴۳۲،۰۰۰) ته ، لفظونه یې (۱۵۳،۸۲۲) ته او ټولی جملې یې په یوه حساب (۱۰،۴۰۲) ته ، اوبل حساب (۱۰،۶۲۲)ته رسیدلې .

**۲- ساما ویدا** Sama-veda : داهغه سندري اوسرودونه دي چې آریاییانو به د قربانی پروخت بوللې شمیر یې (۱۵۴۹) ته رسیدء.

**۳- یجورویدا** yajur--veda : پهدې برخه کی دعاوې دي اوځینې په نثرجملې هم لري.

**۴- اتهروا ویدا** Atharva-veda : ددې مانادجاد واوطلسم پوهنه ده چې دشیطان اوبد و خلکو خو یونه بیانوي .

**د ۱۲۰۰ ق،م په شاوخوا کې:** په افغانستان کې د اوستا یي مدنیت د څرګندید و دپاره زمینه برابره سوه څو چې د (۱۰۰۰ ق،م) په شاو خوا کې د اوستا یي مدنیت ستوری و ځلید او شغلې یې هر لوری ته خپرې سوې.

اوستا یي مدنیت دآریانا په شمال کې منځ ته راغلی او دسکندر د یرغلو د پیل کید و تر وخته یې پایښت وکی ء.

اوستا یي مدنیت په حقیقت کې د (ویدي مدنیت) پایښت و، چې هر یوه پرخپل ځای د باختر په سیمه کې دآریایي ژوند د یوه بله وسا تله.

**د ۱۰۰۰ -ق،م په شاوخوا کې:** د اوستا مشهور کتاب د بلخ د ستر او نامتو شخصیت (زرتشت) یا (زره تشتر ا) Zarathushtra له خوا منځ ته راغلی چې «سپینتما ن» یې هم باله، یعنې سپین نژادیا سپین تو منی (۱).

اوستا د برهمنانو تر (ریګویدا) اودیهودیانو تر (تورات) وروسته د نړۍ دیر ار ځونی کتاب دی ـ او اوستا یي ژبه د مسیح تر زیږ ید وځو پیړۍ پخوا په افغانستان کې پیدا سوې او همدلته له منځه تللې ده چې بې له دغه کتا به دغې ژبې آثار نه دي پاته. د زرتشت سرودونه یاسندرې په شفاهي توګه له یوې سینې څخه بې سینې ته رانقلیدلې او ساتل کیدلې، ځکه نو اوستایي ادب یو شفاهي ادب بلل سوی ء دی ء، څوچې تر میلاد د مخه په شپږمه پیړۍ کې او ستا په یوې بلې آریا یي ژبې ولیکل سوه او تدوین کړل سوه، خو وروسته د پردیو یرغلګرو د یرغلونو په اثر هغه هم له منځه ولاړه. بیا په لومړی میلاد دی پیړ ی کې د پارتیانو د دولت په وخت کې اوستا بیارا تولهاو تدوین سوه او په دریمه میلاد ی پیړی کې بیا ساساني دولت په دې کار ګوتې پورې کړې او تینه اوستا یي په پهلوي الفباء کې راغونډه او اوډه لې کړه، چې (۳۴۸) څپرکی په (۲۱) کتابوکې وه او هر کتاب یې (۳۴۵۷۰۰) کلمې اتکل سوي دي، حال دا چې تر میلاددمخه دشپږ مې پیړۍ اوستا (۸۱۵) څپرکې درلوده اوپر (۲۱) کتابوو یشل سوې وه، خو او س ددریمې میلادي پیړۍ له اوستا څخه پهاو سنی

---

(۱) سپین تومان د زرتشت (ستا یونوم) له سپینته امه څخه سرچینه نیسي، چې او مړی توك د سپین او ځلا ند په ما نااودوهم توك دزور اوقوت په مانا دی چه په دې توګه (ځلا ندزوری) ما نا ګیږي، نه(سپین تو منی).

(دپر تلې دپاره داو ستا نو نسم یشت اودبا ر تو لو مې زور آر یا یي قا موس) (وړمه)

او ستا کی (. . . ٨٣) کلمی پاته دي چې پردې پنځو پا بو پا کتا بوو يشلی سوی د یء.

**١ - يسنا** yasna دا و ستا پر ه مهمه برخه ده چې (٧٢) فصله لری ا و (١٧) فصله يې گا تو نه يغی منډ رې دي .

د يسنا معنا ستا ينه او نما نځنه ده ځکه نو ديسنا منډ رې په مذهبی سرا سمو کی و يلې کيد لې .

**٢- و يسپرد** vispered دا برخه هم پهمذ هبی اخترو او سرا سمو کی ديسنا سره يو ځا ی بو لل کيد له او (٢٧) تو تې و ې.

**٣ - و نديداد** vendidad (١) د ا برخه (٢٢) با به دي چه هر با ب يې ځا نته تا کلی مو ضوع لري ،دمځکی د پيدا ېښت اود او ستا يې خاورې د (١٦) تو تو ا و د هرې تو تې دخاصيتو اواو سيد ونکو لهحا لا تو څخه نيو لې بهاد (يما يا جا) تر دا ستا نو پو ر ې تو ل پکښې بيان سو ي د ي او پردې‌مو ضو عا تو سر بيره د شيطا نا نود مخنيوي اود فع قا نون هم پکښې ستهه .

**۴- يشت** yasht دابرخه (٢١) يشتو نه لری چې ز يا تره يې شعر دی ء ا و معنا يې همهغه د يسنا معنا او نما نځنه ده سر بيره پر د ې چې‌په د ې‌يشتو کی دخدای او پر ښتو ستاينه را غلی، تار يخې‌داستانو نه هم پکی بيان سو ی د ی.

**۵- خورده اوستا :** داداو ر اد واودعا گانواو مناجاتو برخه‌ده‌چې ددو هم شا هپو ر «اذر بد سهرا سپند»(٣٠١-٣٧٩م) په‌و ختوکی تاليف‌سوې‌دهاو د ې‌ته بايد نو ې‌برخه وويلهسی په‌اوستا کې دزرتشت مذ هبی لارښوو نی درې ستر‌بسته‌تونه‌لري‌چې‌دا‌سانو نودا جتما عی ژ وند له لوړوار تياوو څخه‌گڼل سوي د ی، هغه درې بنسټه دادي:

«١-هو مته-ښه‌انگيرل - پندار نيک
٢-هو ختهـښه‌و يل- گفتار نيک
٣ هوو رشته-ښه کول- کردار نيک»

---

(١) داو ستا په‌څېرکوکې دانوم‌ورو سته vedevdat په بڼه سم شو ی د ی ve مختا ړی دی چه دبل(ضد)اند ښندي dev د ديو(شيطان)او det ددوی (قانون) په‌مانا دی چه په دې بڼه ورسره‌تا کلې مانا(شيطا نا نوپه ضد قانون) سمون خوری(و پ مه) .

وایي چې یوناني سنکندر د خپل یرغل په وخت کې د غوایي (١٢٠٠) پوتکې، چې پرهغو باندې داوستا کتاب لیکل سوی وو، وسوځل.

**٦٠٠-ق م :** خروښتي لیکدود، چې له «آرامي» الفبا څخه را وتلی وو، د ایران له لارې افغانستان ته راغئ او و منل سو.

خروښتي لیکدود له ښی خوا څخه کیڼې خوا ته لیکل کیده. دی لیکدود په افغانستان کې تر پنځمې میلادي پېړۍ پورې رواج درلود او زیاتره په دوتراو دیوان کې کار ځینې اخیسته کیده، او همدا ډبرو پرمخ او فلزی مسکوکاتو، خاورینو لو ښو اوپوتکو باندې لیکل کېده.

په افغانستان کې ددې لیک ښې اونمونې سته چې یوه له هغو څخه دوردګ د «خوات» برسیره سوې ډبرلیک دی. نورې جلال آباد ته نژدې ددرونټې د «بیماران» او «هډې» برسیره سوې لیکې دي او بله بیلګه یې په بګرام کې را وتلې ده.

**٥٤٥ ق-م :** «سیروس» یا «کوروش» د هخامنشي دکهاله اووم پاچا د افغانستان دخاورې دنیولو په هوډ دې خواته سخه راوکړه، خودافغانستان خلک په هرځای کې دده سخې ته ودریدل او پوره شپږکاله دده له لوی لښکر سره و جنګیدل په تیره یې بیا په کاپیسا کې د کوروش لښکر ته زیات تاوانونه پیښ کړه.

**٥٢٩ م-ق :** ترهغه وروسته چې کورش د کرمان، سیستان، بلوچستان، پارتیا، ګندهارا، ستاګیدیا اوآن دباختر ځینې شمالي سیمې ونیولې. په همدې کال دافغانستان دآرا دي غوښتونکو سره په یوه جګړه کې ووژل سو. یوروایت دادی چې په ختیزه آریانا کې د «دربیك» له تپې سره په جګړه کې په غشي وویشتل سو چې ددې طایفې پاچا «اموراپوس» نومید او د افغانستان او هند پرویش اوسید، خوبل روایت دامې دی چې کوروش د آسو په شمال او یا مرغاب کې وژلی سوی دی، په هرډول د هخامنشیانو دې لوی سوبمن تر ډیرو سوبو وروسته دافغانستان له خلکو سره په جنګ کې په همدې خاوره کې سربا یللاوو، او دده پرځای دده زوی «کمبوجیه» کښینوست چې ده د پلار په ژوند هم په اداري چارو کې لاس درلود او د پلار تر مړینې وروسته یې هم دپلار په څیر نویو سوبوته ملا وتړله او خپل ورور «باردیا» یې پهخوارزم، پارتیا (خراسان) او کرمانیا کې خپل نائب وټاکئ.

**۵۲۶-ق م :** کمبوجیه چی له خپله ورور «باردیا» څخه بیریده هغه یی په پټه وواژه او پخپله یی د مصر خوا ته لښکر وبوست . څنګه چی د «باردیا» په وژلو هیڅوك خبر نه وه د کمبوجیه ترتګ وروسته یوه سړی چی «ګوماتا» نومید او په بڼه کی ډیر زیات «باردیا» ته ورته و ؛ نود باردیا په نامه یی د پاچهی اعلان وکړ کمبوجیه چی داخبر واوریدځان یی وواژه اوساختګی «باردیا» هم ترڅه وخت وروسته رسوا سو ، اود خلکو له خوا ووژل سو .

**۵۲۲-ق م :** لومړی داریوش اوده خامنشی کهول نهم پاچا د کمبوجیه ترمرګ وروسته پرتخت کښېنوست ، چی له یونانه نیولی بیا ترهنده پورې یی پر (۳۱) ولایتو حکومت وکړ . په دې (۳۱) ولایتو کی (۳۸)توکمه خلک پراته وو ، چی بیلا بیل نژاد او بیلابیل دینونه یی درلودل او په رازرازژ بو یی خبرې کولی .

**۵۲۱-ق م :** اومړی داریوش چی بابل ونیوی، نو په دې کال یی دپارت (خراسان) او ګرګان ولایتونه خپل پلار « ویشتا سپ » ته وسپارل - دا ځکه چی دده پلار هغه وخت چی داریوش په بابل کی و ، د پارت او سرو اوته ته ګوش او سکاییه د یاغیانو سره جنګیدلی و ، اوهغه یی ایل کړي وو .

**۵۱۲-ق م :** لومړی داریوش دافغا نستان له لارې دسند ترسیند پورې ووت او سند ته ورسیدئ .

یونانی هیرو دوت لیکی چی : (داریوش یوهیئت دیوه یونانی امیرالبحر سکیلا س Skylax په مشری دسند رود دمعلومولو دپاره دپکتویک( Paktuike ) له هیواد او د کسپا توروس له ښاره په کښتی کی واستاوه او سیند ته و رسیدئ څنګه چی څیړو نکو او محققا نو د «کسپاتوروس» کلمه د (پېښاور) اود(پکتویك) کلمه د (پښتون) سره نژدې بللی ده، ځکه نو دداریوش دهیئت کښتی هم دکابل دسیند له لارې خوځیدلی او سند ته تللی ده .

ترهیرودوت دمخه هم نامتو جغرافیا پیژندونکی هیکا تایوس (چی د ۵۰۰ق م په شاوخوا کی تیر سوی) کسپاتوروس په ګندهارا کی بللی دئ چی همدا اوسنی پېښاور دئ .

همدارنګه هیرودوت لیکلی دي چی د کسپا تو روس خلك د ژوندون په دود او دستور کی باختریانو ته ورته او ډیر جنګیالی خلك دی .

### ۴۸۶ - ق م:

لومړی داریوش مړسو، ده په خپل پایتخت (شوش) کی یوه ماڼۍ ودانه کړې وه او په هغی کی یی په میوژ بو پلوسی، ایلامی او بابلی یوه کتیبه کیندلې وه، په هغه کتیبه کی دافغانستان دځینو ولایتو نومونه یادسوي دي، مثلاً لیکی چی: «ددې ماڼۍ دصندل لرګی له ګنداره، او سره زر یی له باختره، او لاجوردو ډبرې یی له سغده، او فیروزه یی له خوارزمه، او عاج یی له هنده او رخجه، او د خیری لرګی یی له ګنداره څخه را وړه سوي دي».

### ۳۵۰ - ق م:

دویدي ژبی لوی ناستوپوهاند «پاڼیني Panini» چی د افغانستان په ختیزه سیمه کی د کابل د سیند کوزنۍ برخې پر غاړه اټك ته نژدې اوسید، دهمدې کال په شاوخوا کې دویدي (بهشه) ژبه سمه کړه، او دهغې ګرامري ولیکې، او نوم یی وربا ندی «سنسکریت Sanskrit» کښېښود، یعنی «سمه کړې»، پاڼیني نور اثلرهم لیکلی چی مشهوره ئې «اشت ادهیایا (Asht Adhyaya)» کتاب دی، چی دویدي ژبی دنحو په باب کی و، او اته برخې یې درلو دې چی هره برخه یې «ادهیایا» یعنی «وینا» بلله، او د «اشت ادهیایا» مانا «اته وینا وې» وې.

### ۳۳۰ - ق م - جولائی

یونانی لوی سکندر لومړی وار دایران له لارې د افغانستان خواته چی مرکزي دولت ئې نه درلود هڅه وکړه، او د پارتیا او طوس د خلکو سره تر سختې جګړې وروسته هرات ته را ورسید، هرات ئې ونیوا او هلته ئې یوه نظامی کلا د «اسکندریه آریس Alexandria Arus» یا «اسکندریه آریوروم Alexandria Ariorum» په نامه ودانه کړه.

دا هغه وختو، چی دریم داریوش داتیا زروسپا هیا نوسره د «ګرانیک» او «ایسوس» او «ګوګمل» په دریو جګړو کې دیونان له لښکر څخه ماته کړې وه او دپارت (خراسان) خواته راتښتید لی و، او دهمدې کال دجولائی په میاشت د پنځوسو کالو په عمر د باختر د والی «بسوس Bessus» له خوا چی په باختر کې ئې ځان خپلواك پاچا اعلان کړی و، درخج (کندهار) او درنګیانا (سیستان) د حکمران «برسنتس Barasntes» په مرسته ووژل سو.

سکندر دهمدې کال داکتوبر په میاشت دفراه له لارې پرزرنګ (سیستان) یرغل

و کیءاوپه سیستان کې ئې دخپل لښکر لوی قوماندان « فیلوتاس» د « پارمن یورا » زوی چې له هغه څخه بیر یدیء،او هم ئې دخپل کار د مشر «دیمتریوس » اعدام کړه ، اوبیا له هغه ځایه د « ایتی ماندر ـ هیلمند » پر غاړه د « اورکیتی ـ کر مسیل»دنیو لو د پاره دلمر ختو خوا ته وخو ځید .

## ۳۲۹ - ق م - دوبی :

یو نانی سکند رله هلمند څخه دآ را کو ز یا ( ار غنداو ) پر سیمه یر غل وکیء او د او سنی کند هار په شاو خوا کې ئې د «آراکوزي سکندریې » په نا مه ښار جوړ کیء چې د یونا نی لښکرو هستو گنځی و .

دانظامی ښار غالباً داو سنی کند هار جنوب ته ودان سوی و ، چې که د کندها ر زوړ ښار اونوی احمد شاهی ښار په نظر کې و نیسو نو دسکندر د نظامی ښار سره یو دري کنجه مثلث تشکیلوي.

د همدې کال د نوامبر په میاشت چې دژ می سرو ، سکندر کابل ته راورسید خو په کابل کې تم نه سو ،سمدستی د کاپیسا خواته وخوځید، چې دافغانستان شمالي سیمو ته ترهندوکش تیر سی،مگر دهندوکش ( چې یونانیانو ورته قفقاز وا یه )دوا ورو د کو څو کو او درود ده مخه ونیوله ، او مجبور سو چې خپلو لښکروته د خواجه سیاران د غر ه په لمنه (اوپیا ن) کې د تم کیدو امر و رکی .

همد اوخت سکندر د پنجشیر ، سالنگ او شتل ددروپه خوله کې یو ه نظامی کلا جوړ ه کړه او هغه ئې « د قفقا ز سکند ر یه » یا« د آ د کو کا ر یو م الکزا ند ریه Alexandria-ad-Caucasum»یا« دپاروپانی زاد Paropnisadai الکزا ندر یه » وبلله .

ددې نظامی کلا اصلی موقعیت معلو م نه دی،خوځینوڅیړ ونکو د ځینو یرو کنډوالو له مخې دچار یکار په«او پیان»یا«هو پیان» کې اټکل کړی دی .

هغه وخت چې پسرلی سوا،لمر واوزي ویلې کړي،نو سکندر د پنځو سو یا شپیتو زرو اروپائی ځگړ نو سر ه وخوځید او د اندراباو کوشان ددرې له لارې تر هندو کش واو ښت او دباختر پر پاچا ( بسوس) ئې حمله وکړ ه ، ځنګه چې ( بسوس) فقط اته ز ر ه ځگړ ن درلوده،نو مقاو مت ئې ونه سو کولای،باختر ئې وران او اذوقه ئې له منځه یووړ ه او پخپله د سغد خوا ته دا مو تر سیند پوړ یووت او تر پوړ یو تلو ورو سته ئې ټولې کښتۍ و سوځلې .

## ۳۲۸ - ق م :

سکندر د کیلیف په شاو خوا کې ترآ مو پوړ یووت دباختر پاچا«بسوس »ئې ونیواووې واژه .

## ۳۲۷ - ق م - پسر لی :

یونانی سکندر د باختر د یوه نومیالی مشر « هوخیارتس Oxyartes » ښکلې لور « روښانه Roxana » ځانته و غوښتله او ما ندینه ئې کړه .

« رخشانه » یا « رکسانه » یا « روښانه » د باختر له یوې نجیبې کورنۍ څخه وه چې د سکندر د یرغل په وخت کې دنور و میرمنو او کوچنیانو سره د سغد یا ن یوې کلا ته استول سوې وه، چې د سکندر له لښکر و څخه په امان وي ، خو هغه وخت چې سکندر د سغد یان کلا وې نیولې او رخشانه ئې ولیدله، ور باندې مین سو او هغه ئې خپله ملکه کړه .

مؤرخینو د سکندر او رخشانې د مړ و ښې تفصیل داسې راوړی دی :

په یوه میلمستیا کې چې د سکندر په ویاړ دیوه والی له خوا د شرق د خلکو په سلیقه جوړه سوې وه او په هغه کې دسغدیان دلوړ و کور نیو زیاتې پیغلې هم را بللې سوې وي ، رخشانه هم پکښې وه چې په ښکلا او لطافت کې ئې ساری نه درلود ، سکندر ور باندې مین سو او بې اختیاره ئې وو یل :

« دالا زمه ده چې مقدونیان او باختر یان سره واده وکی، څو چې سره خوندي پا ته سی، او دایوازنۍ وسیله ده چې مغلو بان شر میدلی او فاتحان متکبر نه وي » .

نو ددې دپاره چې خپله خبره لاښه په نورو یونانیانو ومنی، دیونان افسا نوي پهلوان اشیل ئې مثال راوی ء چې د خپلو نیکه ګا نو څخه ئې باله اوو ې و یل : « ایا هغه د یوې بندی سره چې په جنګ کې ئې اسیره کړې وه ، واده ونه کی ء؟ »

بیا نو سکندر په همهغه ځای کې امروکی ء چې دمقدونیانو دود او د ستورسره سم د ودې راوړې، ده هغه ډوډۍ په خپله تورهنیمی کړه ، نیمه ئې پخپله واخیستله او نیمه ئې رخشانې ته ورکړه څو چې ددوی دمړ وښې ثیقه و باله سی .

وایی چې که څه هم دمقدو نیانو د سکندر دا کار خوښ نه سو ، خو تو له بیرې پټه خو له پاته سو ه .

یو مؤرخ داسې تبصره کوي چې « رخشانه » یا « روښانه » د شغنان د « روشان » د درې وه، ځکه نود مشر ق د دود او د ستور سره سم د دې دتاتو بی په نامه « روشانه » بللې سوې ده .

ددې مړوښې په اثر په باختر او سغد یا ن کې د سکند ر دو ه کلنې جګړې پای ته

ورسید لې اوهندته ئې د خو ځیدونیت وکیء ، څو چې دیوسل‌ا و شلو زرو پلیو او پنځلس زرو سپرو سره چې په غالب ګومان سره لږ ترلږه او یا زره ئې آسیا ئي جګړن وو ، دخیواك دکوتل له لارې په لسو ورځوکې دپارو پا میزاد تر غرو راواوښت او پروان ته راورسید او په هغه کلاکې ئې واړول چې دوه کاله دمخه ئې جوړه کړې وه . بیا ئې نود کونړ او اسمار له لارې پرباجوړ او چندول پرغل وکیء ، خو په هر ځای کې د افغانستا ن د خلکو دکلکو مقاو متو سره مخامخ کیده او د کونړ او باجوړ په جګړو کې پخپله سکند ر دوه واره ټپي سو .

## ۳۲۶ - ق م - فرو ری :

سکند ر دخپل لښکرسره پر هغه پله د هند خواته تیرسو چې او سنی اټك ته نژ د ې ئې د ا با سین پر سیند تړ لې و،او د « تکسیلا Taxila »ترلوی ښاره چې دراو لپنډ ی لمر لو ید یز شمال ته لس میله لیرې د مرګله دکوتل په لمنه کې پر و ت و،او دهغې سیمې دارا لعلم باله کیده پرمخ ولاړ . هلته ئې دتکسیلا د پا چا « ا مپهی omphi » یا « ا مبهی - Ambhi » سره روغه وکړه، او له هغه ځخه ئې پنځه زره جګړ ن له ځانه سره واخیستل او دجیلم خواته وخوځید، چې دهمدې کال دمی په میاشت د جیلم غاړې ته ورسید،او د جولائي په میاشت ئې د پنجاب د پاچا « پوروس » سره جګړه شروع کړه او پوروس د سکند ر په لا س کښیووت .

و ا یي چې سکند ر له پو ر و س ځخه پوښتنه و کړه چې « ا و س نو څه د ر سره و کړ م؟» ،هغه ور ته وو یل : « هغه څه‌چې دپاچاهانوسره و ر و ي» . سکند ر دهغه سیمې بیر ته ور کړ ې او د ی ئې له خپلو د وستانو ځخه و ګا نه .

## ۳۲۵ - ق م - جو لائی :

د سکندر لښکر له جنګی سفرو ځخه ستړ ی ستو مانه سو ،او جګړ ن ئې ور ته پور ته سوه، او سکندر ئې بیر ته ستنیدو ته مجبو ر کیء .

## ۳۲۴- ق م :

د سکند ر او د ده د لښکـر د جنګی سفرو خـو ر ا سختـه بر خـه په هند کې پا ی ته و رسید له او سکند ر د افغا نستان له جنو بي خوا ځخه دفارس لوري ته ولاړ .

## ۳۲۳ - ق م - جـو ن :

سکندرچې د افغا نستان له جنو بي خو ا ځخه فارس تـه رسید لی و ، دبابل خو اته

وخوځید، خود فارس له وچو دښتو او ښتی بیا بانو څخه د تیرید و په وخت کې د ملاریاپه تاروغی اخته او دهمدې کال د جون د میاشتی په ۱۳ دد وه د یرشو کالو په عمر مړ سو.

## ۳۲۱ - ق م

د سکندر ترمړینې دوه کاله وروسته د افغانستان ولایتونه د هغه تصویب په اساس چې په ۳۲۳ ق م کال د سکندر له مرګه پس دشام په طرابلس کې د سترو مقدونی جنرالانو له خواسوي و، پر لاندینیو شهزادګانو او جنرالانو و ویشل سو ه:

۱ - د آراکوزي (ارغنداو) دسیمې او د جدروزي Gedrosi (مکران) ولایت اداري چارې «سیبیر تیاس Sibyrtias» ته وسپارلې سوې.

۲ - د آریا (هریرود) او درانجیانا (سیستان) سیمې «ستساندر stasander» ته ورکړې سوې.

۳ - سغدیانا او بکتریانا په جنرال «ستاسانور stasanor» پورې اړه ومونده.

۴ - د آریانا (مرکزي افغانستان) د «پاروپامیزاد paropamisadai» اداره چې د کابل ولایت او شاو خوا هم پکښې شامل و، دسکندر د ماندینې رخشانې پلار «اکزیارتس Oxyartes» ته وسپارله سوه چې یو آریائی ملی مشر و.

په دې ډول د آریانا (افغانستان) خاوره پر څلورو مرکزي، شمالی، غربی او جنوبی ولایتو و ویشله سوه.

## ۳۱۲ - ق م:

وروسته تر هغه چې د سکندر لویه امپراتوري سره و ویشله سوه، نو «سلوسید انو» چې ځېل ځانونه ئې په اسیا کې د سکندر حقیقی او عمده وارثان بلل، د هند د نوي سلطنت نړولو ته ملا وتړله، ځو چې د سکندر نیولې سوې ځمکې بیرته لاس ته راولی.

سیلوکوس چې «نیکاتور» یعنې بریالی ئې لقب و، د بابل حکمران سو او له هغه ځایه ئې آسیا ته مخه راوکړه.

### ٣١١ - ق م :

سیلوکوس د « پارس » او « پارت » ولایتونه ونیول او بیا ئې د « آریا » او « بکتریا » پر ولایتو هم لاس بر سو، او له همدې لارې د افغانستان لمر ختیز و سیمو ته و خوځید ، ځو چې هند ته د سکندر د تګ لاره تعقیب کړي .

### ٣٠٥ - ق م :

سیلوکوس د کابل له لارې دسند او هند خوا ته ولاړ ، تر اباسین تیر سو ، خو داباسین په لمر ختیزه غاړه کې دچندرا ګوپتا ( په هندکې دموریادکهول د بانی ) د لښکر و سره مخامخ سو .

څنګه چې د چندرا ګوپتا لښکر ډیر غښتلی و ، نو سیلوکوس ر وغه و رسره وکړه ، او په روغه کې ئې خپله لور چندرا ګوپتا ته ور کړه او دپنځو سو و پیلا نو په بدل کې ئې د ګندهارا ، آراکوزیا ، جدروزیا او پاروپامیزاد ولایتونه چندرا ګوپتا ته پریښوول ، او په دې ډول د آریانا نیمه خاوره د هند و کش تر جنوبه برخو پورې د چندرا ګوپتالاس ته ور غله ، او دالوسړی ځل و ، چې دهندي ارئیایانو فرهنګی او سیاسی اغیزه داند وس له لمر ختیز ې خوا څخه د اندوس لمرلویدیز پلو ته راتیر سو ، او هم له دې وخته بودائی دین او د هغه مبلغانو د افغانستان خاورې ته لار و موندله او د هند تجارتی کالی دکابل او بلخ له لارې تر پخوا زیات دخزر د بحیرې بندرو ته یووړه سوه .

### ٣٠٠ - ق م :

چندرا ګوپتا مړ سو او د هغه زوی « بیندوساره Bindusara » چې لقب ئې « امیتره ګهاته » یعنې د ښمن وژونکی و ، پر تخت کښېنوست .
ده هم دیونانی امیرانو سره دوستانه سیاست را اخیست او دسیلوکیدانو دهیوادسره ئې دګندهارا ، او پاروپامیزاد ، او آراکوزیاله لارې تجارتی روابط زیات او پراخه کړه .

### ٢٨٠ - ق م :

سیلوکوس نیکاتور د ٧٨ کالو په عمر مړ سو ، او د ده پر ځای ئې زوی « انتیاکوس سوتر Antiachos » پر تخت کښېنوست او د موریاد پاچا « بیندوساره » سره ئې ډیر ښه دوستانه مناسبات درلوده . وایی چې بیندوساره دیوه دوست په توګه انتیاکوس ته و لیکل چې :

« ما ته یو حکیم او خو اږه شراب او و چ اینځر و پلو ره او را و ائی‌ستو ه ».

انتیا کوس په ځو اب کې و رته و لیکل :

« شراب او اینځر به و پلو رم او در و ابه ئې ستوم ، خود یونا ن په قا نون کې د پو هانو او حکیما نو پلو ر ل منع د ي » .

له د ې څخه څر ګند یږ ي چې ډ یر ې صمیما نه لیکنې ئې هم سر ه در لو د لې .

**۲۷۳ - ق م :**

بیند و سار ه د مو ر یا نو پا چا تر ۲۷ کا لو پا چهي و روسته مړ سو ، او دد ه نامتو ز و ی « آ شو کا » پر تخت کښېنو ست، آشو کاد هند له‌خورا ستر و او نامتو پا چهانو څخه‌و ، چې ځلو یښت کاله ئې د هند له بنګا له‌دافغا نستا ن ترا رغند ا و ه په ډ یر بر م پا چهي و کړ ه .

**۲۶۰ - ق م :**

آ شو کـا د مـو ریـا د کـها لـه ستر پـا چا تـر هغه و رو سته چـې د نـګال د خلیج د سا حل کا لنګا Kalinga په جګړ ه کې ئې یـو لك تنه‌خلك و و ژ ل، او یو سل او پنځو س ز ر ه تنه ئې بند یان و نیول،او تر سلو ز رو پو ر ې ا نسا نا ن هم له لـــو ږ ې ســـړ ه ســـو ه ، تـــر ډ یـــر و شـــد یـــد و ر و حی‌تأ ثر اتو لاند ې راغیء،اود هغې جګړې هولنا کې‌صحنې‌اوخو نړ یوپیښو دده پرشخصیت ژوره اغیزه وکړ ه اودده په روحی او فکر ي وضع کې‌ئې څر ګند بدلون راووست، اوهغه داچې دموریاپه زړه سخت پاچا (آشوکا) دبودا ددین دامن اواسان دفلسفې سره مینه پیدا کړه، څوچې په (۲٦۰ ق‌م) کال ئې رسماً دبودا دین ومانه او دهغه‌دین‌خپر یدواو تبلیغ ته‌ئې ملاوتړله ، او تر هغه و رو سته دده دپاچهي دوره بیخې د ارامی ،هو سائی اوودانۍ‌دوره سوه . په تیره بیامذهبي ودانیو اود خیر چارو پراختیاوسونډ له،اوحتی پخپله آ شو کا پر تخت باندې‌ناست‌دیوه راهب او مذ هبی سړ ي بڼه غو ره کړه چې «دیو اناپیا Devanapiya »یعنی « دارباب‌انو اع محبوب »وبالـه‌سو ،اود (مهر بان پاچا) په‌نامه‌ئې شهرت وسوند .

**۲۵۹ - ق م :**

آ شو کـا در ې یمه ستره مذهبی جرګـه د « پا تالی پـو تـرا » پـه ښار کـې دستر پو هاند «موګا لی پو تا تیسا Moggalipputtatissa »په مشر ی جو ړه کړه

اوپه هغه جرگه کې پر سیره پردې چې دمذهبي قوانینو دتنظیم او ترتیب په بابه کې فیصلې وسوې، داهم ومنله سوه چه د بودايي دین یو ه ډله مبلغان دې د هند اوگاو نډ یو هیوادو غیر بودايي سیمو ته اوان دلو ید یزې اسیا او ختیزې ارو پا او شمالي افریکا هیوا د و ته و لیږل سي .

## ۲۵۸- ق م :

آ شو کا درې تنه بـو دا یي مبلـغـان چې « مجـها ن تیکـا «Majihantika یا«مدهیان تیکا»او«دهمرا کیي تا Dhammarakkita »او«مها را کی تا Maharakkita» نومیدل، د کندهار ، کشمیر اودلمر ختیز ې آر یانا (افغا نستان) نورو سیمو ته و لیږ ل ، مبلغانو چې د «دیو تا »په نامه یادیدل په افغانستان کې دبودا ددین په تبلیغ گو تې پور ې کړې او په دې لارکې یې ډیر زیار ویوست ، چه له همدې پلوه او س د گند ها ر ا په ناوه او د افغانستان په لمر ختیز ه سیمه کې چه سو یلي لمن یې تر کندهاره رسیږي، ډیرې بودايي نښې او ستو پې لید لې کیږي ؛ ا و هم وا یي چه آ شو کا د خپل هیوا د په شمال کې خلو رلویې ستو پې جوړې کړې و ې چې یوه یې د پیښو ر دبالاحصار پر غونډۍ وه او دا ستو په د چینی سیلا نی«هیون تسنگ» تروخته ( ۹ هجر ی قمری کال) پورې په همغه برم او شکوه ودانه وه، او دفرا نسوي سور یس فوشه په خوله ښايي دا به هم هغه ستو په وي چې «دسترگې دسوغات» په نامه یادیدله او هغه ځا ی و ، چې دبو دا یا نو په گر وهه بو دا خپله سترگه قر با نی کړ ې و ه .

## د۲۵٦-ق م- شاوخوا:

د سیلو کی کهو ل د د ریم پـا چا « ا نتیو کـو س » په و ختـو کـی چې د ی پخپله دمصر په جگړو بوخت و ،دافغانستان دباختر حکمران «دیود و توس «Diodotos د آزادۍ غو ښتو نکو با ختر یا نو په ملا تړ ا و کو مك په با ختر کی خپلوا کـه پا چهی اعلان کړه ، او د هند وکش په شمالي سیمو کی ئی دیو نانو باختر دخپلوا ك سلطنت بنسټ کښیښو د.او څنگه چې ئی باختر یان دپر دوله تسلطه ژغور لی وو ،نوده ته ئی د(منجی) لقب ورکی .ه (څینې مؤرخان ده د خپلوا کې پا چهی اعلان په (۲۵۰ ق م کی گڼي )

## د۲۵۵-ق م - شاو خوا :

هغـه و خـت چـی « د یو د و تـو س » د یـو نا نو با ختر د خپلواك سلطـنت بنسټ کښیښود،دباختر د «پکت»دقبیلو مشر لو سړی «ارساس» چې د بلخ له نو میا لیو څخه و ،دهر یرو د سیمې خواته ولا ړ ،او له هغه ځایه پار تیا (خراسان) ته ورسید،او د باختر دآزاد ي

غو ښتو نکو د هڅې په تعقیب ئې دپار تیا یو نانی حکمران چی«فر کـلس»نو سیداو د شاسی سیلیو کی دولت له خواهلته ناست و،وواژه ، اودپارت خپلو اکه پاچهی ئې تأسیس کړه .
ده د سیلیو کی حکمرانانو دروېې پرخلاف دباختر یانوسره په تیره بیا ددوهم «دیو دوتس»سره چی د لوسړي«دیود وتوس» زوی،او دپلار تر سړ ینې وروسته دباختر خپلواك پاچا و، ډیر ښه دو ستانه روابط درلود ه.دپار تیانو دپاچهی سر کزد«هکاتوسپی لوس Hecalompylus »ښارو. «ارساس»تهسؤرخینو «اشك»یا «ار شك»هم ویلی دی ، ځکه نود پار تیانو پاچهان«اشکا نیان» هم بللی سوي دي .

(ځینو سؤر خانو دپارت دپاچهی دتأ سیس کا ل ۲۴۹ ق م ، لیکلی د ی ).

## ۲۴۷- ق م:

«تري داتس »یا«دوهم اشك»چی د«ارسا س» بلځی وروروؤ ، تر وروروروسته د پارت دپاچهی پر تخت کښینو ست .

ده کرکان دپارت سره یو ځا ی کی او پار تیانو د ده جلوس د تاریخ سبد أ وټا کله . دی په (۲۱۳ ق م) کال سړ سو .

## د ۲۴۵- ق م-شاو خوا:

دلوسړي«دیو دوتس» زوی دوهم«دیودو تس» دباختردپاچهی پرتخت کښینو ست .

ده هم دباختر دپاچهی دټینګښت پهلا ر کی زیار ویوست،او د باختر او پار تیا تر منځ ئې ددوستی درلود لو او تجاوز نه کولو ترون وتاړه چی د ې تړون دپار تیادپاړ ځانګړ ی اهمیت درلود ، داځکه چې دپار تیا پا چا «تري داتس »دشام د یو نانی پاچا « انتو کیوس» سر ه په جګړ ه اخته و. د پار تیا د دولت سره دباختر د پاچاددوستی درلودلو او تیري نه کو لودتړون لوی باعث داو،چی دپارتیا د دولت لوسړی مؤسس«ارسا س» هم دباخترو،چی ددوهم« دیودوتس» له پلار سره ئې یووخت دپر دیود سلطې پهمقابل کی دخپلوا کی اعلان کړی و .

دوهم دیو دوتس دهر ي ولایت (هریرود سیمه)دباختر دسر کزي دولت سره یو ځای کړ ه، ده د پاچهی کمبله دشاسی سیلیو کیانو په لمسه د«ایوتید مس»په وسیله چی ددوهم دیودوتس له خوا دسغدیان حکمران و ، ټوله سوه ،اوده دپاچهی دختمید وسر ه دیو نانو باختر د لوسړي کهول پاچهی هم پا ی ته و رسید له .

(ځینی سؤر خان ددوهم دیو دوتس دجلوس کال ۲۴۵ ق م ګڼی ).

## د۲۲۷ ـ ق.م ـ شاوخوا :

په باختر کی دیو نان وباختر ددوهم کهول خپلواکه پا چهی دهغې کورنی دلومړي مشر « ایوتیدمس Euthydemus په نامه شروع سوه.»

ایو تید مس دیونان وباختر ددوهم کهول خور اغښتلی او بریالی پاچاو، چی دده په وختو کی نه یوازې تولی آریانا دیوه خپلواك او مقتدر هیواد بڼه غوره کړه، چی دهنه یو ازې تولی آریانا ته دیوه خپلوا ك او مقتدر هیو اد بڼه ورکړه، او دد ریم شاسی انتیو کوس یرغل ئی دروغی له لارې دافغانستان له خاورې څخه په شاوواهه، اوهم ئی دهندو کش سویلی ایا لتونه بی له جگړي دهنددولت له تسلطه آزاد کړه، بلکه په هنداو چینی ترکستان او بلوچستان کی ئی زیاتی نورې سیمی ونیولې اوهغه ئی د افغانستان دخا وری سره یو ځا ی کړې .

همدا رازد ده په وختو کی دآریانا ښارونه دومره ی ودان سوه چی باختر د«زر ښار ه» په نامه شهرت وموند اوپه همدې شان کرنه اومالدار ی زیاته پر مخ ولاړه . د ی دباختر لومړ ی پاچادی چی دده په و خت کی با ختر ی هنرمند انو ا و صنعت کا را نو د با ختر هنر اوصنعت هندته ارمغان یو و ی. ایوتید مس نژ دې څلو یښت کاله پا چهي و کړ ه او د (۱۹۰ ق م ) په شا و خو ا کې مړ سو .

(ځینی مؤ رخان دده د پاچهی پیل په ۲۲۰ ق م، کی گڼی).

## ۲۱۴ - ق م :

دپارت(خراسان)دوهم پاچا« تری داتس»مړ سو ،او پر ځا ی ئی ز وی «ار تبان » چی د «در یم ارساس » یا«در یم اشك » په لقب یادیده دپارت پر تخت کښینو ست، او ر و سته ئې «اکبتان »یعنی همدان هم و نیو .

## ۲۰۷- ق م :

در یم شاسی «انتیو کو س » دز یات لښکر سره دشرق خو اته را غی، او پر پا ر تیا (خر اسان )ئې یر غل و کی، ار تبان(در یم ارسا س ) ئې مغلو ب کی، اوپه همدې کال دخپل یو نا نی لښکر سر ه دباختر لو رې ته ر او خوځید .

ایو تیدمس دباختر پا چا دلسو ز ر و بلخی سپر و سر ه دانتیو کوس دمخ نیوی او دفاع د پاره مخ پر لمر لو یدیزو سر حد و ر وهی سو ، هلته ئې دهر یرو دپر غاړه دېره سو ده ددښمن سره مقابله و کړه، او بیابیر ته بلخ ته ر ا و گر ځید، او دلته ئې هم دو ه کاله دشاسی انتیو کوس

دیر غل سخه و نیو له،او انتیو کوس و نه سو کولای‌چی بلخ و نیسی، څو چی په‌پای کی دو اړې خوا وې‌په‌رو غه ر ضا سوې.ا نتیو کو س دباختر دد ولت خپلوا کی په رسمیت و پیژ ندله، او خپله لور ئې دباختر دپا چا ز وی ته چی « د متر یوس » نو مید و ر کړه او د کابل او آرا کوزي له لارې بیر ته خپل هیو اد ته و کر ځید .

## ۲۰۶ -ق، م:

«ایو تیدمس» د باختر پاچا د ا فغانستان د لمر لو یدو خوا ته متو جه سو ، دا یوس (هر یرود)له ر و ده پو ر یو وت‌او د پار تیاخاو رې‌ته‌ننو ت،او د «استو ئن»او«ا پاوار تی کن» سیمې ئې د پا رتیا خاو رې څخه بیلې کړې او له هغو څخه ئې‌دوه‌ایالتو د« تیپو ر یا»ا و «تر اکز یان»په نامه‌جو ړ کړ ه او مستقیماً ئی په‌با ختر پو رې‌و نښلو ل‌چی‌ددې دواړ‌وایالتو مر کز « سو ز » یا د طو س ښار و ،او په دې ډو ل ایو تید مس‌دآر یانا د هیو ا د لمن خپل غر بی تار یخی‌و یش ته‌و ر سو له،اوخپل زوی «انتی‌ما کو س» Antimachus «ئې هلته امیر و ټا که.

## ۲۰۰-ق م -شاوخوا :

ایو تیدمس خپل ز لمی اوپه کار پو ه ز وی«دمیتر یو س Demetrius » د کند هار دار غند او( آر ا کو زي) دسیمی‌و الی‌و ټا که چی‌ور وسته ئې‌دهند و کش دټولو جنو بی سیمو ا میر مقر ر کیء .

دمیتر یو س‌ډیر ز یرك امیر و ،او د پلار په ژ و ند ئی لاد هیو ادپه عمر انی او اداری چار و کی لوی لاس درلو د ،په‌تیر ه‌بیاهغه‌و خت چی پلار ئې دهندخوا ته‌لښکر یو ست.

## ۱۹۸-ق‌م :

«فر یا تس » د «ار تبان »ز وی‌چی« څلر م اشك » ئې هم باله ، تر پلا ر و ر وسته دپارت (خر اسان ) پر تخت کښینو ست . دی‌دیونان‌و با ختردو اکمنو پاچاهانو«ایوتیدمس» او « دمیتر یو س » معاصر و ، ا و په (۱۸۱ ق م) کال‌مړ سو. (محینو دده دجلو س کا ل ۱۹۶ ق م‌لیکلی‌دیء ).

## ۱۹۰-ق‌م-شاوخوا:

دآر یانا غښتلی امپر اتو ر«ایو تید مس » مړ سو ،او دده‌زوی«دمیتر یو س » د باختر دپاچهی پر تخت کښینو ست .

دده‌خپل پلاردهیو اد دو دانو لو د نقشو دتعقیب او عملی کو لو په غوض خپل‌مشر

زوی« دو هم ا یو تید مس » په‌باختر اوسغد یان کی د امیر په توگه خپل‌نایب پر یښو د،
او په خپله دخپل کشر زوی «د و هم‌د میتر یو س » او خپل ډیر نا متو جنر ال « سنا ندر
پرو انی»سره دهندو کش‌جنو بی سیمو ته‌راو او وښت،او له‌دي ځایه‌دهند خو اته وخو ځید.

**۱۸۵-ق‌م:**

« د میتر یو س »د لمرلو ید یز پنجاب ز یا ته بر خه و نیو له ،او د تکسیلا
دښار تر لیو لو و ر و سته په هند کی تر گجر ات او کا تیاوا ر ، او د مو ریا تر پایتخت
« پتنه » پو رې پر مخ و لاړ . د ه سر بیره پر هغه ښار چې په‌آر اکو ز (ار غنداو ) کی‌ئې
پخپل نامه «دمیتر یاس »جو ړ کړ ی و، درې نو رښار و نه‌ئې‌یو داباسین‌په لمر ختیز ه‌غاړه
«سیا لکو ټ »کې د پلار په‌نامه «ایوتید میا » او دو هم‌دسندپه «دلتای »کې دمو ر په‌نامه
«و ته اوفیلیا» او دریم ئې دسند په« پتیاله » کې و دان کړ ه.
په هند کی‌د«دمیتر یو س»پرمختگو نود(۱۷۵ق م ) تر شا و خوا پو رې ادامه در لو دله،
او تر هغه و ر و سته بیر ته باختر ته ر استون سو .
دده دپاچهی سیمه دفارس له بیا بانه بیاد گنگا تر منځه پو رې خپره وه.

**۱۸۱ -ق م:**

«لو مړی فر هاد»دفر یاتس زوی د پلا ر پر ځای د پا رت ( خر اسا ن )
پر تخت کښینو ست .دی دباختر دپاچا «دمیتر یو س »معاصر و،او د « تپو ر یا» سیمه ئې
و نیوله، اودهغی‌سیمی خلک«مار د ي Mardes » ئې تر خپل حکم لاندې کړ ه .

**د۱۷۵-ق‌م-شاوخوا:**

په با ختر کی د یو نا نو باختر د پا چهی دد ر یمی کو رنی وا کمنی
د« ایو کر اتید یس Eukratides » په مشری شرو ع سوه.
هغه و خت چې د یو نانو باختر لوی پاچا لو مړی د متر یوس په هند کی دنیو لو ځمکو
دچار و په اداره او تنظیم بوخت و ، او باختر ئې خپل زوی«دو هم‌ایو تیدمس»یا«دو هم
دمتر یو س »ته سپار لی‌و ،ناڅاپه په‌باختر کی جنر ال«ایو کر اتیدیس»دپاچهی اعلان‌و کیء
او دباختر تاج او تخت ئې‌و نیو ،او« ستر پاچا»و‌بالله سو ،او پرطلائی‌سکه‌و هله،او هم‌ئې

دهغه ښار په و داني لاس پو رې کړی چې دده په نامه«ایو کراتیدیا» یادسو . خو ددمتر یوس او لادې او جنر الانو په هند کې ځانته دیو نا نو باختر دو لت تشکیل کړی چې دهغه مر کز یې «سا کالا» و ټاکه، او د«ایو کر اتیدس» حکمر انۍ تر (۱۶۷-ق م) پو رې یو ازې د هندو کش په شمالي سیمو (باختر او سغدیان ) کې محدو ده پاته و ه، سګر تر هغه و روسته دهندو کش سو یل ته ر او او وښت او د جیلم غا ړ و ته و رسید .(ځینې سو رخان دایو کر ا تید یس دکو ر نۍ دپا چهۍ شرو ع په ۱۸۱ ق م ، کې ګڼي) .

## د۱۷۴-ق م- شاو خو ا:

«میتر داتس » یا «لو سړی مهر داد »او یا «شپږ م اشبك» تر خپل و رور و روسته دپارت (خر اسان )پر تخت کښیناو ست.

ده دپارت د هیواد سیمه د نمر ختو او لمر لوید و خو اته پراخه کړ ه ، او هغه وخت چې ایو کرا تید یس ( د یو نان و باختر پاچا ) د هند په سر حدو کې بو خت و ، میتر داتس د یو نان و با ختر دد ولت پر ځینو ایالتو پر غل وکړ ی ء او د « تپور یا »او « تر ا ګز یا ن » ولا یتونه ئې چې دایو تید مس په و ختو کې نیو ل سوي او د با ختر سر ه یو ځای سوي وو ، بیر ته و نیول او د پار تیاد خاور ې سر ه ئې یو ځای کړ ه او تر هغه ورو سته ئې د سیستا ن او آرا کوزي خوا ته مخه وکړ ه، کابل او سندئې هم تر خپل نفو ذ لاندې ر او ستل .
( ځینو سؤر خا نو د میتر دا تس جلو س په ۱۷۰ - ق م ، کې لیکلی دی ء ).

## د ۱۶۵ - ق م - شاوخوا:

کو شا نی قبیلې له خپل پخو انې ټاټو بی څخه چې په ختیز چین کې وُ ، را و کو چیدلې اودآمو سیند دشمال سیمو ته را غلې .

داقبیلې دختیز شمال دآر یائیا نو له نژاد ه و ې چې دچین خلکو «یو چی Yueh-chi» بللې او چې د آمو شمال ته راور سیدلې،ددې ځای «ساك» قبیله یې دهند وکش ا و با ختر خو ا ته ولیږ دو له او ټا ټو بی یې دوی ونیو ،څوچې د(۷۰ ق م ) په شاو اوخوا کې کو شا نی قبیلې دآمو تر سیند هم راپو ر یو تلې ا ود تخار یانو په مرسته یې باختر ونیو .

## د ۱۶۰ - ق م - شاوخوا:

« دمیتریوس» یو نانو با ختري پاچا مړ سو ، ا و دهغه تر مړینې و ر و سته یې نا ستو جنرال « منا ندر» پر و ا نی دیو نا نو با ختر دو لت د هندپه نیو لو سیمو کې خپله د پا چهی اعلان کړ ه او خپل نفوذ یې تر ګندهارا پو رې خپور کړی ء .



«مناندر» دهرو ان دخواجه سياران دغر «پهلمنه د«او پيان» پهښار کې زيږ يدلی او پلار ئې دد ې سيمې لوی زمينداړو .

جنرال مناند ر دهندد سور يانوداميراتور ی تر پا يتخته پرمخ ولاړ او هغه يې و نيو .

مناندر په بو دائې مأ خذو کې د«ميلاندا» په نامه خورا زيات مشهو ر دی، پهتير ه بيا له بودائی پو هاند «نګا سنا»سره يې خبرو اترو شهرت لاز يات کړی د ی .

د ۱۵۰ – ق م – شاوخوا:

نا متو جنرال منا ند ر پر و ا نی سړ سو ، او پر ځا ی يې ز و ی «استرا تو» پر تخت کښېنوست، خو څنګه چې لا کوچنی و ،نو مور يې ملکه «اګاتو کليا» د هغه نيابت کاو ه ،او پخپل نامه يې سکه هم وهلې و ه .

«استراتو» ديونانو باختري دولت وروستنی پاچا د ی چې په «ماتوره» کې يې پاچهی کړې ده.

د ۱٤۷ – ق م – شاوخوا :

هيلو کلس دايو کر اتيد يس زو ی دخپل پلار تر مړ ينې ور وسته په باختر کې پاچا سو او ديو نانو باختري دولت پر تخت کښېنو ست .

د ۱٤۰ – ق م – شاوخوا:

دپارت (خر اسان ) پا چا « ميتر داتس » يا « مهر داد » له خر ا سا نه دبا ختر خوا ته پر مخ ر اغی ، او د آر يا ( هرات ) سيمه يې و نيو له او په د ې توګه يې دبا ختر د پا چا «هيلوکلس» دوا کمنی لمنهلنډه کړه، اوله بلې خوا د«ساك» دقبيلې فشار دباختر پاچالږ کړی چې د هندو کش جنو ب ته را وا وړ ي .

هيلوکلس د يو نانو با ختري دو لت وروستنی پا چادی چې د هند وکش په شمالی سيموکې يې وا کمنی کړ ې ده .

۱۳۸ ق.م :

دچين امپر اتور « ووـتي Wou-Ti » چې د « هيو ا نګ نو يا نو» له لاسه پر له پسې ير غلو څخه ستړی سوی و ،يو ا يلچی چې «چانګ کين » نو ميد، کوشا نيانوته را وا ستاوه او مر سته يې و غوښتله ، خوکو شانيا نو مر سته ورسره ونه کړ ه .

چا نګ کين دچين لو مړ ی ايلچی او سفير دی چې د آريانا دځينو سيمو په با ب کې يې معلو مات را ټو ل کړي او دآموسيند د جنو بي کڅونو (بد خشان او بکتريا) او سيد و نکي يې د « تاهيا» په نا مه ياد کړي دي او ددو ی مر کزي ښار يې « لان شي (Lan-shi

بللی، چی مؤ ر خینو ددې‌ښار سو قعیت په او سنی بد خشان کې اټکل کړی دی .

**۱۳۶ – ق م :**

دپارت ( خرا سان ) د دو لت دچا رو وا کې د و هم فر ها د ، د مهر دا د زوی په لا س کی و نیو لې او د « ساك » له ټبره ئی کو مك و غو ښت چی د یو نانی دو لت د پاچا انتیو کوس سره ئی په جګړه کی سلا و تړ ي ، خود « ساك» ټبر له ده سره په جګړه لا س پورې کیء او په (۱۲۵ق م) کال ئې دوهم فرهاد وواژ ه ،او پار تیان‌ئې مات کړه .

**۱۳۵ – ق م :**

«هیلوکلس » دیونانو با ختري د و لت و ر وستنی پا چا د « ساك » ټبر دفشار او د پارت (خراسان) د دولت د یر غلو له کبله خپل پا یتخت د هندوکش له شما لی سیمی څخه د هند وکش جنو بی سیمې «کا پیسا » ته را واړاوه او د خپلې پا چهی لمن ئې دګند هارا دولایت تر تکسیلا ا و جیلم پورې خپر ه کړه .

**۱۲۷ – ق م :**

« ا رتبا ن » یا « د و هم ا ر د وا ن » د فري یا تس زو ی او ددو هم فرهاد اکا، ددو هم فر هاد تر سړ ینې وروسته د پارت (خراسان ) پر تخت کښینو ست .

ده د باختر د تخار د خلکو سره جګړه وکړ ه ، خو په جګړه کې ټپی او له همغه ټپه مړ سو ، او د پار تیانو لښکر ماته وکړ ه (۱۲۳ق م) . په همدې و خت کې « ساك ز یو» سیستان ونیو ،او هغه ئې پخپل نا مه« سکستان » یا د کیء چی بیا و روسته عربو په معر ب شکل « سجستان » و باله .

همد ارنګه د شمال‌له خواد « هون » دار یا ئی سپین پو ستو څو قبیلو پر باختر یر غل وکیء،باختر او تخار ئی ونیو ل او ددې ځای یو نانیان ئې د کابل او سند خواته و شړل .

**د۱۲۳ ق م – شاوخوا:**

داشکانیانو لوی پاچا دو هم مهر داد دخپل پلا ر «ارتبان» تر و ژ ل کید و و ر وسته دپارت (خر اسان) و اکمنی‌ته ورسیده،اودخپلی و اکمنی په ۳۸ کلو کې ئې هم د «ساك» پر ټبر بری‌و موند ، اوهم ئې یو ه بر خه له باختر او سیستان څخه ونیوله، او دخپلی پاچهی ویش‌ئې دهمالیه‌ترغروور ساوه. ده دپارت‌ددولت پایتخت‌له‌خر اسانه‌ددجلې‌غاړې‌ته یو وی‌ء .

**د ۱۲۰ ق م – شاوخوا :**

«ونو نس Vonones) » د پهلو ادکها له د خپلو اکو پا چهانو د سلسلې مؤ سس په سیستان اوآر اکو زي (ارغنداو ) کې و اکمنی‌ته و رسید ، او دنورو سحلی‌پار تی مشرانو په‌سرسته‌ئې خپلو اکه پاچهی جو ړه کړ ه، او د«لوی شهنشاه» په‌نامه یادسو .

ده دپارتي پاچهانو پرخلاف دیو نانی اوخروښتي او پرا کریت ژ بو په رسم الخط چې
په افغانستان کې رواج و،سکه وهلې د،،اوهمدې کاردسیستان اوآر اکوزی دپهلواخپلواك کهول
دلمرلویدیزو پارتیانو له کورنۍ څخه بیل کړی دی .
په همدې کال په کابل کې د«هیلو کلس» نا متو جانشین «انتیال کیداس» د یونانو باختري
دولت پر تخت، کښېنوست .

## د۱۱۰ ق م شاوخوا :

د «ونونس» یو ورور چې«اسپالاهورا »یا «اسپالیر یس» نومید نائب السلطنه سو ، او
د ونونس سره ئې ګډه سکه و وهله ، خو«اسپالی ر یس» خانته جلا سکه هم لري چې له
هغې څخه څرګندیږي چې ده دسیستان او آراکوزی پاچهی هم کړې ده .

## ۱۰۰ـ ق م :

تر «انتیا ل کیداس» وروسته دکابل په نا وه کې د«ایوکراتیدس» له اولا د ې څخه
«اسین تاس» نومی پرتخت کښېنوست اوپخپل نامه ئې سکه و وهله .

## ۱۰۰ ،او ـ۹۰ قم تر منځ :

«اسپالی ریز ا» یا«اسپالی ریز یس» د«ونونس» دوهم وروره سیستان او آراکوزي
کې پاچا سوا وپخپل نامه ئې سکه و وهله .

## ۷۲ـ ق م شاوخوا :

«ما یس Mayos » د«ساك» دټبر یاساکزیو لومړی پاچا په«کی - پن - ki—Pin»
(دارغند او پهسیمه) اوکوز«اندو س »کی پاچهی ته ورسیدچې د«لوی شهنشاه مایس»په نامه
یادسوی اوهم ئې په نامه سکه و هلې سوې ده .
ده له «کی - پن» څخه خپل فتوحات شرع کړي او داندوس (اباسین)لمرختیز پلو ته
ترتاکسیلا پورې رسیدلی و .
د«ساك»دکلمې رېښه تراوسه هم دپښتنی قبیلوپه نومو کی لکه«ساکزي »او«سهاك »ژوندۍده ●
( ځینې مؤرخین د«مایس»دپاچهی لومړی کال ۷۹ ق م، اودمړینی کال ئې ۷۷ ق م اټکلوی.

## د۷۰ ق مشاوخوا:

دیوچیانو (کوشانیانو) تیرچی تر (۱۲۵ قم) پورې لاد آ مو په شمالی سیمه کښېمیشته
و،تول په ګډه دآمو جنوبي سیمې ته راپور یوتل،اود «تاهیا»یا «تخار یانو» په سرسته ئې په باختر کې
نفوذ وموند، اودآریانا په شمالی سیموکیئې پنځه امارتونه یاولا یتونه جوړ کړه، چې تخمیناً
سل کا له وروسته ددې پنځګونو ولایتو دیوه و لایت مشر چې«کیو-تسیو - کیو »نومید،

دنورو ځلو ر و ولایتو مشران دځان تابع کړه، خپل ځان ئی پاچا وباله، اودخپلې پاچهۍ نوم ئې «کوی شو انګ» یعنی «کو شان» کښېښوو، اوله هغې نیټې وروسته دافغانستان په تاریخ کې د بوچی » کلمې ځای «کوشانی» کلمې ونیو ، چی زما په فکر دپښتو ژبی د«کو چی» او «کوچانو » کلمی ور سره نژ دې ار تباط ښیی .

## د۵۸ق م شاو خوا :

آزس( Azes )دساکـ دتبردوهم نامتوپاچادپاچهۍ پرتخت کښېنوست اویوله شهنشاهانو څخه وګڼل سو،چی له «کی ـ پن»(ارغنداو) څخه ئی تر لمرختیز پنجاب اوکندهار ا پورې پاچهی کړې ده،او رازرازسکې ئې وهلې وې چې ځینو سوُ ر خینو د«آزس» په نامه دو ه تنه پاچهان بللی دي .

## د۴۵ قم ـ شاوخوا :

تر «آ ز س» ورو سته « از یلزس» نوسی پاچا د«کی-پن» دپاچهاهی پر تخت کښېنوست،خو دمخه ترهغه چی پرتخت کښېنی ، هم ئی د«آز س» سره دهیو ادپه چارو کی لاس د ر لود، او حتی په ځینو سکو کی دواړو نومونه یو ځای لیکل سوي دي .

دهمدې کال په شاوخوا کی «هر مایوس» دیونانو باختري وروستنی پاچا په کاپیسا کی دپاچهی پر تخت کښېنوست، اوشل دیرشو کالوته ئې نژ د ې پا چهی وکړ ه .

دده په سکو کی دده دماندینې اوملکې «کیلو پ» نوم هم لیده کیږي.

## ۱۹ میلادی :

ګندوفار س « Gandophares »دپهلوا نـ کهاله ستر اوغښتلی شهنشاه د پاچهی پر تخت کښېنو ست، چی له سیستانه بیاتر پنجاب او سنده پو رې ئې پاچهی کو له ،او دده دپا چهی مر کز په توی اټکل دکندهار دار غنداو په سیمه کی و، اوهم دځینو سوُ ر خینو په اټکل دکندهار اوسنی نو م هم ښایی د«ګندو فار » له نامه څخه منځ ته ر اغلی و ي.

د«ګندو فار یس» نوم د «ګند فار نس» په شکل هم ر اغلی،چی د«ویندافار نا»له تر کیبی کلمې څخه راو تلی او معنا ئې« دو یار ګټو نکی» د ی،ګندو فار یـ س د«دیو او ر اتا»یعنی « دیندار » په صفت هم یاد سوی د ی .

د ی نـ آر یانا له نامتو پاچهانو څخه و ،چی دخپل کهاله تر ټو لو غړ یو ئې زیاتشهرت درلو د ، اوپه سکو کی «ستر شهنشاه ګندوفارس» یادسوی دی،او( ۵۰ میلادی) پوری لاژوندی و.

## د ۴۰ میلادی شاو خوا :

دکو شا نیا نو لو مړی غښتلی پا چا «کجو لا کر ه کد فیز س ــ کو زولو » د پا چهی اعلان وکی،او پا چهی ئې د «کوی شوا نګ » په نا مه شهرت و مو ند .

ده یوازې د هند و کش په شمالي سیمو اکتفا ونه کړه ، بلکه له باختر ه د هند و کش جنوبي سیمو ته هم را واوو ښت ، ا و د کابل په د ره کې ئې دیو نانو با ختري دولت او د پهلوا یانو د پاچهی کمبله تو له کړه ، او هم ئې دغزنې په شاوخوا کې «پوتا» خاك د ځان تا بع کړه ، چې د فرا نسوي عالم «واله دوپوس» په قول «پو تا» همدا «پښتانه» وو .

«کجو لا کره کد فیزس» نه یوازې کا پیسا او کابل ترا باسینه په باختر او سغد یا نه پورې وتاړه ، بلکه لمر لو یدیزې خواته تر پارتیا (خراسان) پو رې پر سخ ولاړ ، اودآریانا په ټوله خاوره کې ئې خپله وا کمنې خپره کړ ه ، او د ستر افغانستان د سترې ا مپر اتورې بنسټ ئې بیا له نوي سر ه ټینګ کړ .

په سکو کې «د کوشاني د یندار مشر کجو لا کد فیز س » په نامه یاد سوی دی ا و تر ۸۳ کالو پا چهي ورو سته په (۷۸ م) کال د اتیا کالو په عمر مړ سو .

## د ٤٨ م شاو خوا :

ترشهنشاه «کندوفاریس» وروسته دافغانستان په جنوبي سیمه (ار غنداو) کې «ابدا کاز س» یا «ابدا کا سا » نومی پا چا پرتخت کښېنوست .

دی د کند و فاریس ورار او یائې له خپها نو څخه و ، ا و په سکو کې په دې صفت یاد سوی دی : « د کند و فار یس وراره ، ژ غورو نکی (منجی) پا چا ابد ا کازس » .

## د ٥٠ م شاو خوا :

« کند رفا ر یس » د شهنشاهي ار ت او لوی هیوا دده پر ځا ی نا ستو لهخو ا پر څو کو چنیو بر خو وو یشل سو .

له هغې جملې څخه یو هم «اور تا کنس » د پهلوا د کهاله نا متو پا چا تیر سو ی دی، چې په قوي اتکل بايد د کندو فاریس وروروي، چې په سکو کې د«ستر شهنشاه» په صفت یادسوی دی .

## د ۷۰ م شاو خوا :

تر «اور تا کنس » ورو سته «پا کورس » یا «پا کورا» د پهلواد کها له د پا چهي پر تخت کښېنو ست ، چې سکې ئې تر هر ځای په کند هار کې ډیرې پیدا کیږي ، او دی هم په سکو کې د « ستر شهنشا ه پا کورس » په صفت یاد سوی دی .

## د ۷۸ م شاو خوا :

«و یما » یا «ویما کد فیز س » دلوبو کو شانیانو د لو ېرې سلطنتی کهاله د و هم پا چا دخپل پلار لو مړ ی «کد فیزس » پر ځای پر تخت کښېنو ست .

ده زیاتره دهند او چینی ترکستان خوا ته لښکرې وایستلې،او پخپلې څو ښیت کلنی یا دوه د یرش کلنی پا چهی کی ډیره سود، په هند او سنکیانګ کې په فتوحا تو بوخت و. څکه چی ده غو ښته دخپل پلار د هیواد نیو لو نقشی تعقیب کړي ، او دی لوړی کوشانی شهنشاه دی چی دخپل هیواد لمرختیز ویش ئې ترکنګا پورې و ر ساوه .

دده ژوند او پا چهی تر (۱۱۰م)پورې یقینی د ی .

**۹۰ ، م :**

کوشا نیا نو دو هم پاچا « و یما کد فیزس » دچین دخاقان دربارته سفیر و استا وه ، او د هغه لور ئې غوښتله ، خوهغه سفیر دچین دخاقان دربارته ونه سور سید لای، داځکه چی دچین بریالی جنرال «پان-چاو » پهلارکی د هغه سره سخامخ سو ، او چی د سفر په مطلب ئی پوه سو ، نو دچین دخا قا ن اورئې کوشانی امپراتور ته سپکاوی وګا ڼه ا و سفیر یې له لارې بیر ته جواب کی ء .

کد فیزس دچینی جنرال له دې بی احتراسانه پیش آمد څخه په قهر سو ، او د اویازره سپرو یو لوی اښکر ئې د « سی ــ Si » نو می نایب ا لسلطنه په سالا ری د پا سیر ،یا د « سو نګ لنګ» ددروله لارې دچین خاورې ته وا ستاوه ، خو چینی جنرال«پان-چاو » ماته ورکړه ، او کد فیزس دچین دامپراتور «هوتی » باج وما نه .

**۹۹- م:**

کو شا نی «ویما» دوهم کد فیزس درو مادا مپراتور«تراجان» در بارته خپل نمایندګان و لیږل او د هغه هیواد سره ئې تجار تی او فرهنګی روابط ټینګ کړه ، چی دده دوخت په سکوکی درو من د سکې جوړو اِو د هنر تقلید ښکار یږ ي .

دده پرسکود « دیوه پوتره ، ستر پاچا ،کوشا نشاه » ا لقاب لیدل کیږي چی «دیوه پو تره » د « خداو ند زاده » معنا ورکوي .

**د۱۲۰م ،شاو خوا :**

د کوشانیا نو خورا نا متو او ډیر واکمن امپرا توریا دافغانستان د کوشانیپاچهانو ددو همې کور نی مؤسس «کانیشکا» پاچا سو، چی لقب ئې (دګند هاراپاچا) و،او په سکوکی ئې ځان « راؤ نانور او » یعنی « د پا چها نو پاچا » و باله .

دده دامپرا توری لمن تر لر غونی آریانا اواوسنی افغانستان دباندې په هند او تبت ا و

چینی ترکستان کې هم خپره سوه ، چې ترخوپېړیو پورې ئې هلته انګیزه اواغیزه پاتهوه .

د ده دهیواد ویش دلمرختو خوانه د هند تر بنارسه رسیدلی ، چې د سوریا داسپرا توری مرکز د «پتالی پوترا» (اوسنی پټنه) ښارئې هم نیولی و ، او لمرلویدیز پلوته ئې ویشت پارت (خراسان) سره نښتی و ، او په شمال کې ئې کاشغراو یارکنداو ختن هم فتح کړی ، او د چین له امپرا تور څخه ئې بر غمل اخیستی و .

دده د امپراتورۍ لمن په هند کې دلمرلویدیز شمال په ټولو سیمو کې تر ګنګا پورې اودجنوب خواته د «ونډهیا » تر غرونو پورې غځېدلې او له بل پلوه تر سنکیا نګ (د چینی ترکستان) پورې رسیدلې وه . دا سپراتورۍ مرکز ئې په (ګندهارا) کې و ، او دا هغه سیمه ده چې دکابل سیند پکښې بهیږي، اوچې له دې سیمې تیرسي، نوبیاد سند په سیندګله بیږي.

کانیشکا دوه پایتختونه درلوده ، ددوبي پایتخت ئې په کاپیسا (اوسنی پروان ) کې، او ژمني پا یتخت ئې په (پوراشا ــ پېښور ) کې و .

ده بودائي دین و مانه ،او دآنو کاپهخیر ئې د هغهدین تبلیغ او خپرولو تهملاو تړله، او د بودایانو څلرمه ستره دیني جرګه ئې د کشمیر په سرینګر کې جوړه کړه،چې په هغې کې دګندهارااو دکانیشکا ددربار پنځهسوه پوهان دګندهاري پوهاند «واسومیتره» په مشرۍ چې او وم بودا ئې بیشو او،راغونډسوي وو . دغې جرګې د هغو اختلافاتود لیرې کولو لارې چارې و سنجولې چې دبودائی روحانیونو ترمنځ پیداسوي و . اوداسې فیصلهئې وکړه چې د«هینه یانه »پخوانی مذهب (چې کوچنی مذهب ئې هم باله)او دبودا تر مړینې وروسته پنځه پیړی رواج و ، تعدیل او اصلاح کړي ، هغهو ، چې هغه پخوانی مذهب د« مها یانه » په نوي مذهب الیش سو .

دکانیشکا په زمانه کې دده په توجه خورازیات بودائی بودتونونه(معابد)دده دامپراتورۍ پهارت هیوادکې ودان سوه ، چې یو له هغوڅخه د «شا ـلوـکیا » لوی بودتون و ،چې تراوسه ئې اثار دافغانستان دبګرام د شترك په غونډۍ کې سته.

کنیشکا د(۱۵۱م) په شا و خوا کې مړدی،او تر ده وروسته د ده دامپراتورۍ ارتهیواد دده دزامنو ترمنځ و ویشل سو .

## ۱۳۰ م ـ شاوخوا :

په افغانستان کې د بګ لنګ (بغلان ) دسره کوتل بودتون ( معبد) دکوشانیانو دستر امپراتور « کانیشکا » په امر ودان سو .

**د۱۵٤م- شاو خوا :**

«و اسیشکا »دکا نیشکا زوی چی دهند په ما توره کی نائب‌السلطنه‌و ، دپلار تر مړ ینې و روسته‌دهغه‌پرځای کښېنـوست.

دده نوم ماتو رې ته نژ دې په‌یوه‌کتیبه کی،او د اند و س دکښ په کتیبه او د و و نو رو کتیبو کی راغلی دی،خو سکه‌ئې‌لانه ده‌مو ندمسوې.دکانیشکادبل زوی‌نوم‌ددو هم کانیشکا په‌ناسه دسند سیند ته‌نژ دې د«آ ر ا» په کتیبه کی په خر وشتی رسم‌الحظ لیکلی سوی‌دی ،او هغه ئې «و اجاشکا »بللی‌دی،خو پر تخت باندې د کښېناستو نیته‌ئې‌څر ګند ه نه د ه.

**د۱٦۰م ـشاو خوا :**

دحمل په‌میاشت دبغلان دسره‌کو تل بو دتو ن (معبد ) چی داو بو د و چو الی په اثرمخ په‌ورانیدوو ،د« کانیشکا»ترمړ ینې‌اته‌کاله‌ور وسته‌دهغه‌پاچاداولادې‌له‌خواترمیم‌سو،چی‌دتر میم نیته‌ئې په تخاري (پښو انی دري)ژ به په یوه کتیبه کی لیکلې سوې و ه.د،کتیبه‌چی ۲۵لیکی او ۱٦۰ کلمی او ۹۴۷ تو رې لري ،دبغلان‌دسره‌کو تل د« نو شاد »له آثـارو څخه کشف سوې‌د ه .او دکتیبی‌له متنه څر ګند یږی چی دبو د تون دتر میم دکار مشر «نو کو نز و ك کنار نګك »نومید ا و د« مار یګك »له کو ر نی‌څخه و .

او هم ددې کال په شاو خو ا کی دبو دائی د ین دمبلغانو لو مړی‌ډله دکو شا نیا نو له خو اچین ته لیږ لې سوې د ه .

**د۱٦۹ـ شاو خوا :**

«هو و یشکا» دلوی کانیشکا ز وی ـ یا ـ ورو ر ،اویائی خیښ په هندکی‌پاچاا و د «مهار اجادیوه پو تره »یعنی «خد او ند ز ا ده شهنشاه » په نامه و باله سو ،او یو ولس‌کاله و روسته ئی دامپر اتو ری لـمن دافغانستان تر لمر ختیز و سیمو پو رې راورسید له .

دده سکې دبر وان په بګر ام‌کی ډیرې‌مو ندلې سوې دي،او هم د و ر دګو دخو ات‌په خر وشتی کتیبه‌کی د«شهنشاه » په نامه یا د سوی دی.

هو و یشکا دلوی‌کانیشکا په څیر دبو دا ئی د ین د خپر ولو ا و د مذ هبی ود ا نیو دجو ړ ولو سره‌خو ار ز یاته‌مینه‌در لو دله ، او دهند په«ماتو ر ا» کی‌ئې‌په‌خپل‌نامه‌خو ر ا شاند ار ه‌بو د تون ودا ن کړی و .

دده پرسکو په یونانی رسم الخط لیکلی سوي و : «شانن‌شا او ویشکی کوشان» یعنی«شهنشاه هو یشکا کوشان »او په کشمیر کی دهو شکا پور ابنارده جوړ کړی ،اود (۱۸۲م )کاپه شاوخوا کی مړ دی .

## د۱۸۰م ـ شاو خوا :

د«کاماکو یا »دزوی «واکره ماریګګ » نومی سړی له خوادور دګګ په«خوات» کی یو بودتون‌جوړ سو ، دد ې بو دتون خروشتی کتیبه دلندن په‌بر یتش‌موزیم کی پرته‌ده،او دابو دتون د«شاکیا مونی را» په نامه ودان ســوی‌و .

## د۱۸۲م ـ شاوخوا :

«هو ویشکا » مړ سو ،او دده پرځای «واسو شکا »یا «واسو دیوا»چي دکا نیشکا له کهاله څخه‌و ،په هند کی د پاچهی پر تخت کښېنوست .د «ساتورا»په کتیبه کی دده نوم‌یاد سوی،او په‌سکو کی‌ئې نوم په یونانی رسم‌الخط «بازود س»لیکلی سوی‌دی.

ده نژ دې پنځه و یشت کاله پاچهی‌وکړه ،او دده دو اکمنی په‌وخت کی‌دآریانا (افغانستان )ځینې‌برخې له کوشانی‌امپراتوری‌څخه‌ورو و رو بیلی‌سوې،او د«واسوشکا» واکمنی زیاتر‌ه‌د‌هند په سیمو کی پاته سوه.

دی‌دلوی کانیشکاد کهاله‌و روستی پاچاو،چی تر(. ۲۲م)پورې‌ئې پاچهي کړې‌ده.

## د۲۲۰م ـ شاو خوا:

دلو یوکو شانیانو دکهاله‌و روستی پاچا«هو و یشکا» مړسو ،او تر ده وروسته یو بل سړی‌چی « کیدارا » نومید او دی‌هم دکو شانیانو له‌ا و لادې‌څخه‌و ،په‌باختر کی‌پاچاسو ،چی دکوچنیو کو شانیانو دکهول‌مؤ سس‌باله‌سوی دی. دا ځکه‌چی له‌همغې نیټې‌وروسته‌دلو یو

کوشا نیا نو د کها له زوال شوع سو ، او د هغه لو یې امپراتوری د ملوك الطوایفی بڼه غوره کړه ، او دافغانستان په خاوره کی دلو یو کوشانیانو د امپراتوری اصلی‌برخې د « هو و یشکا » تر مړینې وروسته دوه مهم مرکزونه د راوده ، چی یو یې په باختر او بل ئې دکابل په دره کی و ، او په دې دواړو مرکزو کی د «.کیداري » یا « دکو چنیو کو شانیانو» کهول پاچهی کوله .

په هند کی دکوشان دامپراتوری نیولی سوې برخه داړودوړا وهرج و مرج سره مخا مخ سوې وه، او دواکمن سلطنت څخه بیل بیل کوچنی کوچنی

حکو متو نه منځ ته را غله ، ا و هم د آ مو په شمال کی د با ختر خو ا ته دسوا ر کارو کو چیا نو فشا ر ز یا ت سو ، او همدا ر نګه لمرلو یدیز پلو ته ا رد شیر بابکا ن د ساسانی د یوه غښتلی د ولت په بنسټ ا یښو و لو بوخت و .

(ځینو سؤ ر خینو د « هو و یشکا »سر ینه د ۲۲۵ م ، په شا و خو ا کی ګڼلې د ه).

**۲۲۱ م :**

د آ سو سیندله شمال څخه د« ژ و ان ژ و ان » کو چی‌قبیلو د با ختر پر «کید ا ر یانو» یا پر «کو چینو کوشا نیا نو» په یر غل لا س پو ر ې‌کیء ،ا و د آ مو له هغې غا ړې څخه ئې پر د ې غا ړه‌خو ا ره و دا نګل .

**۲۲٤ م :**

د افغانستان په‌لمر لو یدیز ه سیمه‌کی دپارت (خر ا سان ) دولت چی دد و همې‌میلادي پیړی نه پا یه څخه ئې د ا نحطا ط خو ا ته مخه کړ ې و ه ، د سا سا نی ار د شیر بابکا ن په لا س و نړ ول سو ،ا ودپا ر ت و ر و ستنی پا چا « ا ر دو ا ن ا شکا نی » یا «پنځم ا رتبا ن » د ا ر د شیر سره په جګړ ه کی و وژل سو .

**۲۲٦ م :**

ا ر د شیر با بکا ن په فا ر س کی د سا سا نی سلطنت د و دانی ، ټینګ‌بنسټ کښیښود، ا و د پا ر ت (خر ا سا ن ) د د ولت ترنړ و لوو ر و سته د با ختـر ا و خو ا رز م ا و د ا فغا نستا ن لمر ختیز و سیمو ته متو جه سو .

**۲۳۰- م :**

ا ر د شیر با بکان د « پسکی با و ره = پیښو ربنار »په لمرختیز ا فغا نستان کی و نیو .

**د۲٦۰ـاو- ۲۷۳ م ترمنځ :**

د سا سا نی لو سړ ي شا ه پور په هغه کتیبه کی چی د پا ر س په «نقش ر ستم» نومی ځا ی کې کیندل سو ې ده ، د« ا بګان » کلمه‌د Goundifer ABGAN Rismaud «ګو ند یفر ـ ا بګا ن‌ر سما د » په جمله کی‌را و ړه‌سو ې د ه ، چی د « پټهان»دکتاب د لیکو نکی « سراو لف کیر و» په قول‌یقیناً ، « د افغا ن » د کلمـې لو مړ نی‌شکل د ی . حتی «سر ا و لف کیر و » د سپر نګلنـګـګ Spren Gling لـه قو لـه لیکـی چـی د ریم‌سا سـا نی شـا هپـو ر

( ۳۷۹ - ۹ ۳۰ م ) د « ا پا کا ن (Apakan) » کلمه د لقب په توګه ا ستعمال کړی
د ی،چې سرا و لف کیر و هم په صو تی اعتبا ر د ا نظرقیا س ته نژ د ې بللی د ی .
چې د « ا فغا ن » د کلمی لو مړنی شکل « ا بګا ن » و ، ور و سته بیا « ا پا کان »
سو ، ا و په پا ی کی نې د «ا فغا ن » بڼه و موند له .

**د۳٤۸م- شاو خوا :**

د کیدا ر یا نو پا کو شا نیا نو یو پا چا پر هند یر غل و کړ .

**د۳۵۰ م -شاو خوا :**

د با ختر کوشانیا نو د « ژ وان ژوان» دقبیلو د یر غل ا و فشا ر له کبله له با ختر ه وو تل،
ا و پر دوو خو ا و تیت سوه :

۱ - د لمر لویدو خو ا ته د سا سا نیا نو د سلطنت دشما لی و یش په اوږد و کی د خزر د
بحیر ې پلو ته . .
۲ - د هند و کش د جنوب خو ا ته په کا پیسا ا و ګندها را کی تر پینبو ره ا و د پینبور
تر هغی خوا پو رې ئی پا چهی جو ړه کړ ه .

**د۳۵۱م - شاو وخوا:**

دو هم سا سا نی شا هپو ر د افغا نستا ن لمر ختیز و سیمو ته مخه را و کړ ه .

**۳۵٦- م :**

د و هم سا سا نی شا هپو ر د کا بل تر نیو لو و ر وسته د ګند ها را ا و پینبور ا ود
هغې خو ا د نو رو هغوسیمو د نیو لو د پا ره چې د کو چینو کو شانیا نو د پاچا«کیدارا»
په لا س کی و ې ، و خو ځید ،او د کیدا را پا چا سر ه و جنګید ه .
په همدې و خت کی و ، چې د کا بل د هغه و خت لو ی قا ضی چې « سلوك » نو مید ، په یوه
کتیبه کی د عا و لیکله چې شا هپو ر دی په خیر ا و سلا متی ر و غ رمټ بیر ته کا بل ته
ر ا و کر زي .

**۳۵۸م :**

د و هم سا سا نی شا هپو رد ا فغا نستا ن په لمر ختیز و سیمو کی د کیدا ر یا نو سر ه
جګړ ه پا ی ته و رسو له، او کید ا ر یا نو د د ه تا بعیت و ما نه .

### د ۳٦۷ ، یا ۳٦۸ ــم شاوخوا :

کوشانی کیدا ر یانو ددو هم ساسانی شاهپو ر دسلطی دځنځیر شلو لو او بیر ته خپلو الك کیدلو د پار ه په جګړه لاس پو رې کړ .

په دې جګړ ه کیخو ر اشاندار ه بر یالیتو ب دافغانستان دکیدار ي دو لت په بر خه سو ، دو هم شاهپو ر دوه وا ر ه سختی ساتې و کړې، چی په لو سر ی ماته کی ئی یو لښکر بېخی له منځه و لاړ ه تباه سو او په دو همه ماته کې ساسانی شاهپو ر په خپله و تښتید، او په دې تر تیب دافغا نستان کیدار یانو یا کوچنی کو شانیانو تر لسو کـالو و ر و سته بیر ته خپله خپلو ا کی وګټله، او د هندو کش په جنو ب کې ئی بیاله سر ه یو خپلو الك او آ زادت سلطنجوړ کړ .

### ۳۷۵ ــم شاوخوا :

د کیداري ز وی «پیر و » په پښو ر کې د کوچنیو کو شانیا نو د پاچهی پر تخت کښینو ست. دده نو م پر یو ه سکه په بر همنی ر سم الخط « پیر و ز ه Pirosa» هم لیکلی سوی د ی ، ښایی چی « پیر و زشه» وی، په سکه کې ئې دسر جو غــه ددو ښکر و پــه شان چی ښې او کیڼې خوا و ته کـاږ ه دي ښکاری . د پ یرې په ویښتانو ئی مر غلرې پیبای دی، په غو ږ و یې مـ الی ځر یږی، او په غاړ ه ئی غاړ ګی ده .

### د ۳۸۵ ــمــ شاوخوا :

« یفتلیا ن » یا هغه آ ر یا یی نژ ا دهسپین پو ستی قبیلې چی تر میلا دی پنځمی پېړی د مخه چینی منابعو د «هو ا ــ Hoa» یا «هوا تون ــ Hoa-tun » په نامه ا و د وی د پاچهی تر جو ړ ید وو روسته ئې د «یی تا ــ yeta» یا «ا پتا ــ Epta » په نامه یاد ی کړی دی، دآمو (ا کسو س ) پرهغه غا ړه د مر کزيآ سیا په ځمکو کی او سېدلې او دا کسو س دسیموز یا تی بر خی ئې په لا س کی و ې .

دې قبیلو دچین د کا نتو ن په ا یا لت کی د «ییتات ــ yiptat» او په کو ریا کی د «یوپتل yoptal » په نا مه مشهر تمو ندلی و ، چی یو نا نیانو اورومیانو د «افتهالیت Ephthalites » یا «خیو نیت ــ chionites» » او پارسیانو د «خیون ــ Khion» یا «هون ــ Hion» » یا "Hun" په نامه بللې د ی ،او بیا په پهلوی ا و عر بی او دری ژ بو کی د «هیتا ل ، هیطل ، هپتل ، هیفتال ا و هیا طله » په نو سو یا دی سوی ا و په سنسکر یت کی و ر ته «شو ته هونه» یعنی «سپین هو نا ن» و یلی سوی د ی .

زموړا و سنی نا متوا فغا نی مؤر خ،پو ها ند حبیبی بیا د «هپتل» یا«هیفتال» کلمې د «ا بد ل »او «ا بد ال»د کلمو سره چې د پښتنو مشهوره «ابدالی»قبیله و ر ته منسو به ده له یوې ر یښې څخه ګڼلې دی .

**۳۹۹-م :**

د چین نا متو بو دا ئی ملنګ (را هب ) چې «شی فا هیان» نو میده،د نادر و دینی کتابود را غونډولو په غر ض د چین له چانګان څخه را رهی سو ، او د کا شغر له لا ری د لمر ختیز ا فغا نستا ن په سیمه کې دبر نی ا با سیند غاړو ته را و رسید . د ه د ګند ها را په ولایت کې سوات د «سو هو تو ــ Su-Hu-To »اوپیښور د «فو لو شا ــ Fo-Lu-Sha»او تکسیلا د «چو چاشی لو ــ Chu—cha—sh—Lo»ا و دجلال آباد هډه د«هیلو Hi—Lo »او بنو د «پو نه Po—Na »او ر و ه د«لویی Lo—i »په نو مو یاد کړی او لیدلی دی، اوترڅور لسو کالو مسا فر ی و ر و سته په (۴۱۴م) کال بیر ته نا نکن ته و لا ړ ،خپله سفر نامه ئې ولیکله،او یو شمیر هندی کتا بو نه ئی په چینی ژ به تر جمه کړ ه ، او په ٨٦ کلنی مړ سو ده په پیښور کې د کنیشکا نه خو اد و دان سو یو بود تو نو (سعا بد و )ا و هلته دبود ا د کچکول په با ب ، ا و بیا د جلا ل آ بادد هډ ې د هغه ز ر نګا ر بو د تو ن په با ر ه کې د پر څه لیکلی چې دبوداد کوټې (جمجمه) د پاره و دان سوی و ،او هم ئی دننګرهارپه مر کز کی د هغه بر ج یا د و نه کړ ې د ه چې دبو دادغابن د ساتلو د پا ر ه ودان و ،او هم ئې په همدې و لایت کی د بو دا د لکړی د پا ره د بو د تو ن نو م ا خیستی دی .

**د ۴۲۰-او -۴۲۵-م تر منځ :**

یفتلیا ن دآ مو له شمال څخه دآ مو جنوب ته راپو ریوتل ، او د با ختر په سیمو کې میشته سول .

**د ۴۲۵-م ـ شاوخوا :**

د یفتلیا نو لو مړ نی قبیلوی مشرد «ایتا لیتو» یا« ا فتا لینو س » په لقب چې د«مشر »مفهو م ئې د رلو د پا چا سو ، ا و په تخا رستا ن کی ئې د پا چهی خو ل پر سر کښېښود ،اوداد یفتلی د ستر د و لت د جو ړ ید و لو مړ ی خښته و ه . چې د آ ر یا نا په ختیز شما ل کی کینهو وله سو ه ، ا و تر هغه و ر وسته بیا یفتلیا ن ورو ورو د کا بل ا و کند هار ا و ز ا بل تر سیمو پو ر ی خپا ر ه سول ، او د کو شا نیا نو او کید ار یا نو ا و سا کیا نو غو ندی دد ې سیمودآر یائی نژادو خلکواو پښتنو سره ګډ سول ، لکه چې د یفتلی قبیلو یوه څانګه په غز نی کې د«زاولی» په نامه یاده سوه، او ددوی سیمې ته«ز ا بل »او «ز ا بلستان » وو یل سو .

**۴۲۷-م:**

یفتلی دولت په باختر کی دونی قوت و موند، چی دلو ید یز ساسانی دولت ساری سو ، او یفتلی پاچا ددوو سوو او پنځو سو ز ر و عسکرو سره له باختره دلمر لو ېد و پر خوادساسانیانو مقابلی ته وخوځېد ، اوتر مارجیانه پوری بې له کم جد ی مقاومته پرمخ ولاړ۔ خو د مرو ر و د په شاو خو ا کې د ساسا نی پاچا بهرام گورد لو ی لښکر سره مخامخ سو ، هغه و ، چی یفتلی پاچا په جگړه کی وو ژ ل سو ، او یفتلی لښکر مجبور سو چی را پر شاسی ، او بهرام گور د یفتلی پاچا سر صع خول د آذر بایجان د شیز د ښار د « آذر گشتا سپ » آ تشکد ې ته اهد ا کې ء .

**۴۴۳-م:**

« مهر پور » نو می یفتلی پاچا چی د « ایتالیتو » تر وژل کېدو ور و سته دباختر پر تخت کښېنستلی ، او خپل نظامی قوت ئې له سره را غو نډ کړ ی و ، دبهرام گورد زو ی دو هم یزد گرد مقابلی ته پاڅېد . کله چه هم په لوم ړ ی سر کی دپار س سا سانی پاچا دوهم یزد گر د مخ پر مخ راغی ء ، خود تالقان په شاو خوا دمر غاب په ناوه کی سا سا نی لښکر سخته ما ته و کړ ه ، او دوهم یزد گرد دخپل وېش ( سرحد) خواته پرشاسو ، او یفتلی پاچا« مهر پو ر » بیر ته هغه سیمی و نیوا ې چی ددو هم یزد گرد پلار له یفتلیا نو څخه نیو لې و ې ا و هغه سیمی دبا ختر د یفتلی دولت تر لاس لاند ی سو لې .

**د ۴۶۰م- شاو خوا :**

یفتلی غښتلی او پیاو ړ ی پاچا « آ خشنو ر » یا « خشنو از »دآریانا پر تخت کښېنوست، دا پاچا دیفتلیانو دتېر و پاچهانو په نسبت پوه ، مدبر او فعال سړ ی و ، چی دده ادا ر ی ، نظامی او سیاسی کار و نه دیو ې نقشې او پلان په اسا س اجر ا کېد ل .

دآ خشنو ر په ز مانه کی دیفتلیانو دو لت څلو ېښت ایالتو نه او دوه مر کز و نه یو د ژ می په بلخ کی او بل ددو بی په بدخشان کی در لوده ، او دآخشنور پاچهی دلمرلوېدو خواته دپارس تر سرحد و پور ی ، او دلمر ختو پلوته دختن او چین و پش. ته ر سېد لې و ه ، او ده دپنځمی میلاد ی پېړ ی تر لوم ړ یو کلو پور ی نژد ې نیمه پېړ ی پاچهی و کړ ه .

**د۴۸۰م- شاوخوا:**

آخشنور یفتلی پاچا دپار س سا سانی پاچا « فیرو ز » ته چی دافغا نستا ن پر خا و ره ئی یر غل کړی و، تریو ې سختی جگړ ې ورو سته سخته ماته ور کړه ، ساسانی پاچاا و دهغه ز وی « قباد » ئې دځینو نورو ساسانیانو سره چی ښځ ی هم پکښی و ې بندیان و نیول، او د « فیر وز » لو رئې هم

بندی په لا س کښېوتله، او بیرته برپالی دخپل هیواد زړه « باختر » ته‌را وگر ځېد. خودپارس د مغلوب پاچا او پاچا د کور نی‌او نورو ساسانی بندیانو سر ه ئې‌ډېر ه احتر امانه رو یه‌وکړه ، او ساسانی مغلو ب پاچا « فیرو ز » هم دیفتلی دولت سره دمځا لفت عفوو غو ښتله ا و لو ړه ئې‌وکړه چی که‌وبخښل‌سی‌اوروغ رمټ‌خپل هیوادته‌ور سېږی، بیابه‌ددوو هیوادترڅا کلی‌وېش‌تېرې و نه‌کړ ی اود جګړ ې دتاو ان او باج په‌ډول به‌څه پیسې هم دآ ریا نا یفتلی د و لت ته ور کړ ی ، اودپیسو تررا رسېدلو پوری به‌خپل زو ی « قباد » د یر غمل‌په تو گه په یفتلی د ر بار کې پر یږ د ی .

آخشنور دده عذر و مانه ،او دسر حد ی وېش دټاکلو دپاره ئې اسر و کیء چی په شپږو میاشتو کې‌د ی‌دو ېش پر یوه ټاکلی ځا ی‌یو ډبر ین څلی جو ړ سی ، هغه و ، چی د څلی تر جو ړ ېدو ورو سته ساسانی مغلوب پاچا « فیروز » او نور سا سانی مشران او بندیان دنوموړی څلی سره دآخشنو ر او نورو یفتلی مشرانو په و ړا ند ی پر خاورو پر ېو تل ، ا و د ر و غی ترو ن ئې و مانه ، او آخشنور هم اجاز ه ورکړ ه چی « فیروز » او ملگر ی ئې خپل هیواد ته ولاړ سی ، یواز ی دفیروز زو ی « قباد » دبر غمل په‌تو گه دآخشنور په‌د ر بار کی دو ه کاله پاته سو ، څوچی دوه کاله ورو سته دجګړ ې دتاوان او باج پیسې دپارس ددو لت له خو ا یفتلی دو لت ته را ور سېدلې ، او « قباد » آز اد سو .

## د۴۸۳م-شاو خوا :

سا سانی پاچا « فیرو ز » چی آخشنور بخښلی و ،دخپل زوی « قباد » تر آزاد ېدو وروسته ئې خپل ترون مات کیء ،او بیائې دیفتلی دولت سره دمقا بلی دپا ره لښکر جو ړ کیء او تر ټا کلی‌و ېش ئې تیر ی وکیء ،خو په‌د ې‌لښکر کښی کی‌هم دز یاتوبد مر غیو سره مخامخ سو . لښکر ئې په ښتی بیابان کی دیفتلی سر تېرولو له خوا ېخی پو پنا سو ، او پخپله « فیروز » دځینو نورو ملگرو سره په هغی سر ښتی‌کند ه کی چی یفتلیانو ددو ی په لا ر ه کی کیندلې و ه،ولو ېدل او مړه سوه ، دا پېښه په «۴۸۳ م» کی و ه . تر هغه ورو سته دپار س ساسانیان دافغانستان دیفتلیانو دولت ته باج ور کوو نکی سو ل ، او دآر یا نا هغه ځمکی چی له څه و خته به ساسا نیانو ور باند ی تېر ی کاو ه،بیرته د کالنی خرا ج سره دیفتلی دولت لا س ته و ر غلې .

**۴۸۷-م :**

د ساساني فیروز زوی «قباد» چې د شهزادګۍ په وخت دوه کاله دیر غمل په‌توګه په یفتلي دربارکي ساتلی سوی و، دافغانستان دیفتلي پاچا آخشنور په نظامي مرسته د ساسانیانو پر تخت کښېنوست، او دیفتلیانو دولت‌ته ئې باج ورکاوه، او د باج ورکولو دپاره ئې مخصوصې‌سکې په کوشاني یفتلي‌رسم الخط وهلې وې.

د«قباد» سره دیفتلیا نو روابط دومره دوستانه و وچې آخشنور خپله لور چې د فیروز دلور له نسه‌وه، قباد ته ورساندینه‌کړه.

**۴۹۸-م :**

ساساني پاچا «قباد» دخراساني «مزدک» دمذهب دمنلو په ګناه دمتعصبو مذهبي عناصرو له‌خوا خلع او بندی کړه‌سو، خودماند یئې په مرسته له بنده‌یخاني ځخه وتښتېد او یفتلي پاچا آخشنورته ئې پناه راوړه او کومک ئې ځینې وغوښت، آخشنور دده ښه هرکلي وکړ، او د مرستي وعده ئې ورسره وکړه.

**۴۹۹-م :**

قباددافغانستان‌دیفتلي‌پاچاآخشنورپه‌نظامي کومک‌بیاد پارس‌دساسانیانوپرتخت کښېنوست.

(ځینو مؤرخینو د قباد دجلوس کال «۵۰۱م» لیکلی دی).

**د ۵۰۰م-شاوخوا :**

تر آخشنور وروسته د یفتلیانو د یوه بل نامتو پاچا «تورامانا Turamana»

پاچهي د هند وکش په جنوبي سیموکي منځ ته راغله.

دی د غزني د شاو خواد زاولستان یازابلستان د«زاولي» یا«زابلي» قبیلې له مشرانو ځخه و، چې ځینو اوسنیو پښتنو څېړونکو دده نوم پښتو «توره من» یعني شمشیري بللی‌دی.

دی د زابلستان د یفتلي ټبرله نومیالیوپاچها نو ځخه و، چې د هند خواته په‌بریالیتوب تللی، او د هند د ګوپتا دولت ئې ربړدولی او د هند په «ساکالا Sakala» (دپنجاب په اوسني سیالکوټ) کي‌ئې خپل هندي‌پایتخت ټاکلی دی.

د «توره‌من» نوم د هند په دروکتیبوکي یادسوی دی، یو د «ساګر — سګهر — sagar» دسیمي د «اران — Eran)) په کتیبه کي چې دده دپاچهي لومړی کال ته اشاره‌کوي، بل د «سلت رنج — saltrange» دسیمي د «کورا Kura» په‌کتیبه‌کي چې په هغې‌کي «مهارا جاتوره مانا ساهاجاولا» یاد سوی دی او«ساها» همهغه د«شاه» لقب او «جاولا» د«زاولي» ټبر نوم دی، یعني «زاولي شاه مهارا جاتوره من؛

او دریمه کتیبه چې دده یادونه پکښې سوې په «گوالیار» کې ده چې د«توره من» د زوی «میرا کولا» د پاچهۍ په پنځلسم کال پورې اړه لري.

ده په هند کې له «بهانو گوپتا Bhanugupta» او د «ولابهی valabhi» پاچا او د هندد ډېرو نورو محلي امیرانو او شهزادگانو څخه باج اخیست.

**۵۰۲-م:**

«توره من» زابلی پاچا مړسو، او زوی ئې «میرا کولا mihira Kula» د یفتلي شهنشاهۍ په تخت کښېنوست، چې نوم ئې دده د پاچهۍ په پنځلسم کال دهند د «گوالیار» په کتیبه کې یاد سوی دی، او پوهاند حبیبي دده نوم هم پښتو بللی چې «میر» د لمر معنا او «کول» د پښتو «کهول» «خاندان» دی او «سیرکولا» یعنې «دلمرکهول» او ځینو څېړونکو خولا «سهرگل» گڼلی دی.

«میرا کولا» مرېږه پر هغه چې پلار گټلې ځمکې ئې وساتلې د«ساکالا Sakala» له ښاره ئې چې دیفتلي دولت دهندی نیولو سویو سیمو مرکزو، دپلار دفتوحاتولمن تر کشمیر پورې ور سوله او کشمیر ئې ونیو.

ځینو څېړونکو دی په هندکې هممغه یفتلي پاچا گڼلی دی چې په تاریخ کې د «گولاس Gollas» په نامه یاد سوی او دوه زره جنگي پیلان ئې درلوده، اوباخ، بامیان او باد غیس ئې نظامي مرکزونه وو.

میراکولا په هندکې په ډېر تشدد پاچهي وکړه او دده ستر بریالیتوبونه ځینوهندی منابعو په وحشتنا که خونړیو پېښو تعبیر کړی دی.

دمیرا کولا نوم دکند هار دروزگان د شا لی درې په کتیبه کې هم سته چې دده په وختو کې په یوناني خط د «سترزاو لشاه» په عنوان یاد سوی دی.

**۵۱۰-م:**

د هند شهزادگانو، لکه«بهانه گوپتا» اودبنگال محلي امیر، او «گوپاراجا» اونورو امیرانو یفتلي پاچا میراکولاته لاس یوکړ او تړوله په گډه دده سره وجنگېدل، څوچې تریوې سختې جگړې وروسته دلو مړی ځل دپاره میرا کولا ماته وکړه او د کشمیر خواته راپرشا سو، خو بیا ئې هم تر ډېرو کلو پورې په هند کې نفوذ درلوداو پاچهي ئې کوله.

**۵۱۷-م:**

دچین نامتو کر ځند وی(زائر) چی «سو نګک ین» نو مېد او د «تو ن هو ا نګک» او سپدو نکی و ،دشمالی تا تا ر یا نو د سلا لې د ملکې «تای هو» په امر دبو دائی مذهب دکتابو دراغو نلو ولو په نیت له ختن څخه دافغا نستان ختیز وسیمو ته را ر هی سو، او دده داسفر د یفتلی پاچهانو دحکو مت په دو ره کی و، نو ځکه ئې دیفتلیانو د د ربا ر دطر ز ا و دد ر باری تشر یفا تو ،او دملکې او ښځو او نار ینهو و ،دکالیو ا و وضع ا و د هغه وخت ددو دداو دستو ر او نو ر و په باب کی ښه معلو مات غو نډ کړی دی، مثلاو ایی چی:

«یفتلیا ن دبو دا نمانځنه(پر ستش )نه کو ی،اوباطل خدا یان لری ، څا ر وی و ژ نی او غوښی ئې خو ری»

**۵۲۰-م:**

«سو نګک ین» چینی کر ځند وی په افغانستا ن کی د ګند هار ا سیمه و لید له،او دده له اثا ر و څخه داسی اتکل کیږی چی په هغه و خت کی دختیز افغانستان او داسو له غاړو څخه بیاتر ار غنداو پو ری دمر کزی قوی اداره دیفتلی پا چها نو په لا س کی و ه او هغه یفتلی پاچاچی دهسو نګک ین» د ر اتګک په و خت کی ئې په ګند ها را کی پا چهی کو له، «لی لی Lea-lih »نو مېد ، او د «سو نګک ین» په قو ل ډیر ظا لم و ،اوپر بو دائی عقیده نه در لو د له ،او هم داعتمادنامې دمنلو په و خت کی ئې «سو نګک ین »ته چندا نی التفات نه و ،کړی، اوسو نګک ین تر سختو خبر و کو لو و ر و سته دهغه له دربار ه و تلی دی.

**۵۲۱-م:**

«سو نګک ین» چینی کر ځند وی و رو سته تر هغه چی دجلال آباد په هډه کی ئې دبو دا د کو تپی(جمجمه )بو د تو ن چی «نا- کا-لو- هو» نو مېد و لیداو په ننګر ها ر کی ئې «کیکا لا م» (ښا یی چی مهترلام وی) و کوت او هم ئې دبو د اد یر ل س تپو ته ییز مچو خه او ا تلس فتپه لکړ ه و لید له ،او بیا ئې دنا کی په ښار کی دبو د ا و پښتنه ا و یو غا ښ و کو ت ، او د «کو پا له »په سمڅه کی ئې کتیبه(ښایی چی ددر و نتې دآشو کا کتیبه و ه) و لید له نو بیر ته چین ته و لاړ.

## د ۵۲۸م-شاو خوا :

دهند بو می امیرانو او راجگانو د «ماند اسور - Mandasor » دمحلی امیر «واسودهارمن» په مشری دیفتلی «میر اکولا » پرضد یوه اتحادیه جوړه او په دیرزیات قوت دوهمه پلاورسره و جنګېدل او هغه ته ئې سخته ماته ورکړه چې ترهغه تاریخ وروسته نو په هند کی دیفتلیانو ددولت حکومت مخ پر کمزوری سو .

## د ۵۳۰م-شاوخوا :

دهند نورو راجگانو په یوه اتفاق یفتلی «میر اکولا » ته پاڅېدل چې په نتیجه کی دافغانستان دیفتلی دولت اغېزه وروور و د هندله زړه څخه را تېرله او یوازی د کشمیر په سیمه کی محدود ده پاته سوه .

## د ۵۴۴م-شاوخوا :

داسی اټکل کاوه سی چې « میر اکولا » په هند کی د یفتلیانو وروستی واکمن پاچا به په همدې وختو کی په هند کی مړوی ، او د ده دمړینې سره په هند کی دیفتلیانو ددولت د سیاسی سلطې کمبله هم ټوله سوه ، که څه هم ترهغه وروسته هم ځینی یفتلی طایفې د اباسین پر هغه غاړه اوسېدلې .

د یفتلیانو د هغو سکو له مخی چې په هند ، کابل ، غوربند او نوروځایو کی پیدا سوی دی د یفتلی پاچهانو بڼې د پښتنو د غلجیو کوچیانو بڼو ته ډېری ورته دی، په تیره بیا جگی پزی ئې .

د هغه وخت له سکواو بودتونو څخه څرگند یږی چې یفتلیانو د بود اسلذهب منلی نه و، بلکی د لمر رونیا ، د نور مید اا و آتشکدې ئې نما نځلی ، لکه چې د د وی پر یوه سکه باندی د آتشکدې شکل د دوو نیزه لرو نکو ساتونکو سره کیندل سوی دی .

## ۵۶۰م :

د لومړی ځل د "پاره‌دآسوپر څنګ و د «ترك »نوم و اوریدسو، او دا هغه وخت و، چې لو یدیز و ترکانو دسرحدی یفتلیانو سره لاس واچاوه، دالاس اچول ترهغه وروسته وه چې د«توکیو» لویه امپراتوری چې له منگولیا څخه داو رال تر غروپوری خپره وه په(۵۵۲م) کال کی تجزیه سوه ، اودوې جلاجلا پاچهی جوړې سوې، یوه د ختیز و ترکانو په نامه چې ځانته ئې د« خاقان » لقب وټاکه او بله دلویدیز و ترکانو په نامه چې ځان ته ئې د« یبغو» عنوان غوره کی .

لو یډ یز ترکان د سرد ریا او آموغاړو ته راشیوه سوه، اودد وی دو هم « یبغو » چی «ایستامی» یا «سن یبگو» نومېد، و غوښته چی دآریانا پرخاوره تېری وکی، سغد یان او باختر له یفتلیانو څخه و نیسی، خودسرحدی یفتلیانو د کلکې مقاومت سره مخا مخ سوه .

**۵۶۶-م :**

څنګه چی لو یډ یزو ترکانو یوازی د افغانستان د یفتلیانو سره مقابله و نه سوه کولای، نود ساسانیانود دولت سره ئې چی دیفتلیانوځوکلن د ښمن او باج و رکوونکی و، د ساز ش لاره جوړه کړه، او « سن یبگو » چی د لو یډ یزو ترکانو « یبغو » و، د پارس ساسانی پاچاخسرو نوشیروان ته پیشنهاد وړاندی کړ، چی دیفتلیانوپرضد لاس سره یوکړی، څوچی لو یډ یز ترکان دساسانیانو سره یوځای یو دبل په مرسته پر یفتلیانو یرغل وکی .

د لو یډ یز و ترکانو د یبغو دا پیشنهادساسانی پاچاته ډېره خوښه ی وسا نه اودیفتلیانوپر خلاف د ترکانو او ساسانیانو ترمنځ یو نظامی تړون و تړل سو، څوچی په همدې کال د لمر لو یدیځ او شمال له خوا ساسانیانو او ترکانو د افغانستان پر شمالی سیمو یو ځای او یوو خت یرغل وکړ، او ترسختو جګړ وو روسته دیفتلیانو د و لت له منځه و لاړه او په نتیجه کی د افغانستان شمالی سیمی دد وو متجاوزو قوتو ترمنځ وویشلې سوې، د سرد ریا او آمو ترمنځ ماوراءالنهر د تاشکند او سمرقند دښارو سره لو یډ یزو ترکانو و نیول او هری او باختر ساسانیانو ته په لاس ورغلل.

**۵۷۶-م :**

«ایستامی» یا «سن یبگو» د لو یدیزوترکانو یبغو مړ سو، او د هغه زوی « تاردوخان » Tardou پر تخت کښېنو ست، اود ساسانیانوسره په جګړه اخته سو، باختر ئې له ساسانیانو څخه ونیو، اوپه دې ډول د ترکانو حاکمیت دآمو له ښی کنډ څخه راواو ښت او په باختر او تخارستان کی خپور سو، خو داد اري طرزئی دملوك الطوایفی بڼه درلود له اود خان نشین په نامه باختر پر څو برخو وېشل کېده، چی د چینی دنامتوګرځند وی او مؤرخ هیون تسنګ په قول ۲۷ خان نشینه و، چی ددې تو لو خان نشینو مرکز د کندوزښارو .

**۵۸۲-او ۵۸۴م - ترمنځ :**

« تاردوخان » د« ایستامی » زوی او د لو یډ یز و ترکانو یبغو ځان ته د « خاقان» لقب و ټاکه، او د «یبغو » عنوان ئې پر یښود ، او په په دې تر تیب ئې پخپلومغز وکی

د ختیز و ترکا نو سره د رقابت مکر و پاله ، چې محمد افغر د ده ترسرې ینې و روسته په لو یدیزو ترکانو کې د ښلتون او نفاق سبب سو، او په نتیجه کې لو یدیزترکان د چین د« سوی» دا مپراتوری تر تهد یدلاندې راغلل .

**د۶۱۱ - او۶۱۸م - ترمنځ :**

د لو یدیزو ترک نو بل ییغو «شه کوی خان »دخپل نفوذ او سلطنلمن له « التا ئي» څخه د خز رتر بحیرې او د هندو کش تر غرو پو رې خپره کړه .

**د۶۱۸ - او۶۳۰م - ترمنځ :**

تر « شه کوی خا ن »وروسته د هغه ورور چې «تو نګ ییغو » نو مېده، د خپل ورور پرځای کښېنو ست، د ده د« تارم » پر سیمې سربېره تخا رستا ن او باختر هم تر خپل حکم لاندې کړه، خو له همدې کـاله دا ـو یدیزو تر کـانو دامپرا توری کمبله مخ پر تو لېدو سو د .

**۸-هجری شمسی** «هیون تسنګ» د چین نامتو ګرځندوی چې ۲۶ کلن و، دبودائی

**۸- هجری قمری** زړ ومذهبی کتابواوآثا رزدرا غونډولو د پاره له چین څخه لمرلو یدیزو

**۶۲۹ - میلادی** هیواد وته په ګرځېدو پیل وکړ، پنځلس کاله وګرځېد ، ډېربودائی

مذ هبی آثارئې غونډ کړ ه او پر ۲۲ آسانو ئې بار چین ته یووړه ، چې په هغو آثاروکی ۱۲۴ ټوکه دبودائې د«لوی مذ هب»کتابونه هم وو ، اوهم ئې په افغانستان او نورو لـرلو یدیزو هیوا د وکی خپل دستر ګولید لی حال پخپل کتاب « سی - یو - کی «Si-yu-ki» یعنی « دلو یدیزې نړی یاد ښتونه » و لیکه .

په افغانستان کی د « هیون تسنګ » ګر ځېد ه په دی ډول و ه :

**۸- ه ش د کب ۱۴** «هیون تسنګ» له سمرقند ه دافغانستان له لاری دهند خواته

**۸ - ه ق** و خوځېد، او دا کسوس په جنوبی مجرا کې یې اووه و یشت ا یالتو نه

**۶۳۰- م د مارچ ۵** وشمېرل چی دیفتلی خانانو او مشرانوتر اغیزی او سلطې لاندی وو ، او دد ې خلګوژ به ئې چی پنځه ویشت توری یې درلول او له کینې خوا څخه ښی خواته افقی لیکل کېد ل وارو ېد له ، او داور څر ګند ه سوه ، چی دا ژبه د نورو هیو ا د ود خلکو دژ بی سره توپیرلری .

دی د همدې کال د کب په ۲۹ـ دمارچ په ۲۰ نېټه خلم ته ورسېد .

**۹ - ه ش د وری ۳۱** « هیو ن تسنګ » په بلخ کی « نوا سنګها را مه » یا

**۹ - ه ق** « دبلخ دنوبهار بو دتون(معبد)وکوت،اوپه هغه کی یې دبو دا

**۶۳۰-م-دا پر یل ۲۰** د سینځلو لو ښی چی له سروزرو ، او ښکلو ډ برو څخه جوړ

سوی و ، او دبودا یو غابن ، او یوه مجسمه ، او یوجارو چی لاستی یې په جواهر انو ښکلی کړ سوی و ، ولیدل .

ده بلخ د « Po-Ho » په نامه یادکړی دی ، او د همدې کال د غویی په لسمه او داپریل په دېرشمه باسیانوته تللی او هغه یې د «فان - ین - نا Fan-yen-Na » په نامه بللی دی ، او په بامیانو کی دیوه خپلواک پاچا یادونه کوی چی دپاچهی دسیمی اوږدوالی یې له لمرختوښخه دلمر لوېد وخواته دوه زره «لی» (د ۰ ۰ ۶ میلوپه شاوخواکی ) او پسور یې له شمال ښخه دجنوب پلوته یوسل میله ګڼلی دی .

ده په بامیانکی دبودا دوه مشهور بتان یوولاړ او بل پروت یادکړی او نور مقدس آثار یې لیدلی دی ، او هم لیکی چی دبامیان په لسود یروکی دزروتنو په شاو خواکی راهبان او سېدل ، او ټول دبودایی « دکوچنی مذهب » پیروان و ه .

بیادهمدې کال (دغو ایی په شلمه او دمی په لسمه) هیو ن تسنګ له با میانو کاپیساته ورسېد چی دا ځای د« کیا - پی سی» په نامه یاد وی او لیکی چی داسیمه د ( ۰ ۱۲ میلو ) په شا و خو ا کی و ه ، او خلکو بی وړین کالی اغو ستل ا و پاچا یې د « کشتریه Kshattria — » له طبقې ښخه زړ و راو یوه سړی و ، او نژ دی پر لسو نو ر و ولایتو یې حکومت کاوه ، او دبودا له مخلصانو پیر وانو ښخه و ، چی هر کال به یې د ۱۸ فټو په لوړ و الی دبود ایو ه زر ینه مجسمه جوړ و له، او دسو کشامها پر یشا د Moksha-Maha-Parishad په نامه به یې لو یه مذ هبی جر ګه ر اغو نډ و له ، بی و زلانو، کو نډ و ښځو او ښځمږ و نار نیه و و ته به یې صدقې او خیر ا تو نه و رکو ل.

دده په هیو اد کی نژ دې سل دیر ه او دبو دا «دکو چنی مذهب »شپږ ز ه ر ا هبان و و ، او هم دنو ر و مذهبو د پیر و انو زر بو دتو نو نه (.معابد) موجو د و ه .

د کاپیسا پاچادهیو ن تسنګ سر ه تر در و میلـو پو ری دو پښ خو اته تللی او و ر سر ه دلا ری مل و .

دهیو ن تسنګ په و ینا «لان پو - Lan-Po» یعنی لغمان او «نا - کی - تو - لو Na-Kie-To-Lo » یعنی ننګر ها ر ا و « کین - تو - لو - Kien-To-Lo » یعنی ګند ها را له پښو ر ه ښخه نیو لې دابا سین (اند و س )تر سینده پو ری د کاپیسا د پاچا تر لا س لا ند ی و و .

بیا د همدې کال (دز مری په ۲۴ ، او داګست په ۱۵ ) هیو ن تسنګ لغمان ته تللی

او هغه سیمه یې «لان - پو» بللې وه ، او (دز سری په ۲۹ داگست په ۲۰ ) ننگرهار ته رسېدلی او دا ولایت ئې د«نا - کی-تو - او » په نامه یاد کړی دی، او (د لړم په ۱۰ دنومبر په اوله ) دگندهارا (کین-تو - لو) سیمې ته ورغلی دی .

**۹-ه ش-دمرغومی ۱۱** هیون تسنګ دمردان دسیمې په شمال کی «اودیانه udyana» ته تللی و ، او دهمدې کال (دکب په ۱۰ - دمارچ

**۹ - ه ق**

**۶۳۱ -م-دجنوری اوله-** په اوله )دسوات سیند ته رسېدلی و او هغه سیمه یې د «سو - فا - سا - تو - Su-fa-sa-to » په نامه یاد کړې ده .

**۱۸-یا -۲۲ هش** داسلام لښکر دلو مړی ځل د پاره خراسان له لاری دافغانستان

**۱۸- یا ۲۲ ه ق** په خاوره کی پل کېښود ،او دعربو د لښکر لومړی سالار

**۶۳۹-یا ۶۴۲ م** حنف د قیس تمیمی زوی خراسان ته راغی ،

د اسلار د عبد الله بن عامر له خوا د دریم ساساني یزد گرد په نیولو مامور سوی و ، او دی په یزد گرد پسی د « طبسین » له لاری چې دعربو لیکوالو خراسان ور بللی دی، خراسان ته راورسېد ، خراسانیانو ورسره کلکی جګړې وکړې ، خوده تر سختو جګړو وروسته هرات ونیو ، اود هرات حکومت ئی « صحار عبدی » ته ورکی او پخپله په یزد گرد پسی چی خراسان ته ئې پناه راوړې وه مرور و د ته ولاړ ، سرورود ، بلخ او دافغانستان نوری شمالی سیمې ئې له نیشاپور څخه نیولې تر تخارستان پوری ونیولې ، او ربیع د عامر زوی ئی دتخارستان حاکم وټاکه .

**۲۳ -ه ش** دعربولومړنی لښکر دلمراو بد یز ویشله خوا دافغانستان خاوری ته

**۲۳ - ه ق** رانه ووت ، او دا دحضرت عمر د خلافت په وروستی کال کی و،

**۶۴۳ - م** چی داسلام لښکر دکرمان له لاری دسیستان شاو خوا ته راورسید .

دعربو دلښکر سالاران دوه تنه وو ، یو عالم دعمرو تمیمی زوی او دوهم عبد الله د عمیر زوی چی دخپل لښکر سره ئې د سیستان پر پایتخت « زرنج » یرغل وکیء ،اود دې ځای خلک ئې کلا بند کړه، خو چی په پای کی دباج او خراج په ورکولو روغه وسوه .

**۲۴ - ه ش** هیون تسنګ دچین نامتو ګرځند وی له هنده د کشمیرا وجالندر او

**۲۴ - ه ق** تکسیلا او ویهند له لاری افغانستان ته را وګرځېد او د همدې کال

**۶۴۴ - م** د مارچ په ۱۵ لغمان ته را ورسېد، او دجون په ۱۵ « فلنه -بنو» ته

ولاړ ، او دجون په ۲ . پکتیاته تللی او هغه سیمه یې « او پو کین ـ افغان ـ پکتیا »بللې ده ، او دجون په ۲۵ ئې غزنې لیدلی او د « تسو ـ کیو ـ تو » په نامه یې یاده کړې د ی، او دجو لائې په‌او له کابل ته راغلی ، او هغه ئې « او ر تسپانا » بللی ، او دجولای په پنځمه کاپیساته ، او دجو لا ی په ۲ . اند ر اب ته ،او د ا گست په ا و له تخار ( تخارستان ) ته ، او دسپتمبر په دو همه منگان ( منجان )ته او د سپتمبر په‌لسمه بدخشان ( کی پو ـ لکین)ته ، او دسپتمبر په ۲۵پامیر ( کوی ـ لنگ ـ نو ) ته تللی د ی ،او په پا ی کی دعمد ې کال‌د سپتمبر په شپړو یشتمه دیار کند او ختن خواته تروړش تېرسو .

**۲۸ ـ ه ش** عبدا لله د عامر ز و ی چی د حضر ت عثمان‌له خوا خر ا سا ن ده ته
**۲۹ ـ ه ق** ور کړه سوی و ،نیشاپو ر ته‌را ور سېد ، اوداحنف بن قیس ، او مهلب
**۶۴۹ ـ م** بن‌ابی صفر ه په ملا تړ یې‌د قهستان ، ابر شهر ، طو س او دخراسان

د سر خس ښا ر و نه و نیو ل ، ا و د هر ا ت د حا کم سر ه ئې په‌پنځـو س‌کځوړو در مونور وغه‌وکړه چی‌یوسیلیون درسوته رسېدل،اوهم‌یې دکاله‌د ریسوه زره درمو نه وسنل .

**۲۹ ـ ه ش** عبد ا الله د عا مر ز وی‌چی دخر اسان و ا لی و ، مجا شع دسعو د سلمی
**۳۰ ـ ه ق** زوی‌سیستان ته‌ولېږ ه،خو سیستانیا نو و ر سر ه جگړ ه و نښلو له ، ډ ېر
**۶۵۰ ـ م** مسلمانا ن ئې‌وو ژ ل، خو چی‌مجاشع‌مجبو ر سوبیرته‌ولاړ ،اوحضرت عثمان

د ریم‌خلیفه دهغه پرځای ربیع دزیا دحا رثې ز وی‌دنوی لښکر سر ه‌دخراسان و الی عبدالله ته ر ا و ا ستاو ه چی سیستان‌ته ئې ولېږی،عبد الله د عا مر زوی‌هم ر بیع سیستان ته‌ولېږ ه، سیستا نیا نو د هغه‌سر ه‌هم سختې‌جگړې‌وکړې،خوچی‌پای کی‌دسیستا ن‌پا چا «ا یر ا ن»درستم زوی د سیستا ن دښار ا نو او مؤبد ا نو سر ه تر مشو رې‌وروسته‌رو غی ته‌غاړ ه کښېښو و ه ، ا و ربیع ته ئې ا ستا زی و ا ستا وه ا وپیغا م یې و رولېږ ه چی :

«مو ږ په جگړ ه کی کمزو ری نه‌یو ، ځکه چی د ا ښارد مړ نیو پهلوا نا نو د ی، خود خد ا ی تعالی سره جگړ ه نه سی کېد لای‌ا و تا سی‌دخد ای لښکر یا ست...نو ر و غه‌ښه‌ده خو چی دد و ا ړ و خوا و ، و ژ ل له منځه لیری سی ».

ربیع همداسی‌جواب ورو لیږ ه چی :«عقل همداایجابوی،لکه دهقا ن چی و ا یی‌او مو ږ

هم روغه ترجگرې خو ښو و(۱) ». ځکه نو ربیع دزیا دزوی د زرنج ښار ته درېسیله نژدې پخپلې اړهکرګاه کې یو مجلس جوړ کړ چې دمجلس غولی دسیستا نیا نو په سرو فرش و، او دعربو د سردار بالښتو نه او متکاوې هم دسیستا نیا نو دسرو جسد و نه وو ، هغه وخت د زرنج حکمران د سیستا ن دسؤبدانو او مشرانو سره هلته ورغی، وېلېده چې ربیع دزیا د زوی یو غټ ، غوښن او جګ سړی ، وازه خوله ، ځړېد لې پنډ شونډان، لوی غاښو نه د جګړې دډګر پروژ لوسو یو جسد وئېځنګ ځلګولی ، تکیه ئې کړې ، او ودده ملګری هم پرسرو باندې ناست وو ، د زرنج حکمران خپلو ملګرو ته ربیع ورو ښو داووېو یل :

« وایي چې شیطا ن په ورځ نه لیده کېږی دادی وګورئ ، په ورځ ئې و وینئ ».

ربیع چې د زرنج د حکمران د خبری ترجمه له ترجمانه وا ورېده له بې له دې چې په قهر سی ډېر یې وخندل ، بیا یې نو رحکمران ته دکښېنا ستلو ستا سر و کړ ، حکمران و نه منله او و یو یل چې : مو ږ پر دې فرش نه کښېنو ، ځکه چې داپاک نه دی ، نو بیا هلته لیرې کښېناستل او در و غی خبری اتری ئې شروع کړې ، او داسی تړون وسو ، چې هر کال به له سیستا نه زرواره زردرمه امیر المؤمنین ته لیږل کېږی او هم به په همهغه کال یوزرو صیفه ( بلوغ ته نژدې سریان ) چې دهر یوه به یو زرین کټوری ( جام ) په لاس کې وی، د سوغات په توګه ورکوی .

ربیع دوه نیم کاله پرسیستان حاکم و ، او تر بست پوری پرمخ راغی ، خودبست خلګو ئې فرمان ونه مانه ، له هغه ځایه بیرته و ګرځېد او د عامر زوی ته ورغی .

**۳۰ - ه ش** عبد الله دعامر زوی او دخراسان والی حج ته ولاړ ، او په خراسان

**۳۱ - ه ق** کی ئې قیس د هیثم زوی پر خپل ځای خلیفه کړ ،

**۶۵۱ - م** په همدې کال په مرو کی در یم یزدګرد د ساسانیانو وروستی پاچا د سرو د حکمران « ما هو یه » په اشاره وو ژل سو .

---

(۱) د اسلام په آوایلو کی عربو دخراسان مشران :مخ رو یی او مرزبانان د « د هقا ن » په نا مه بلل ،او « د هقا ن » ته ئې احترا م درلود، دهغه وخت د دهقان کلمه د او سنی « خا ن » مترادفه ګڼل کېداى سى .

**۳۱ - ه ش** هراتی « قارن » چې د هرات له ملي مشرانو او آزادي غوښتونکو
**۳۲ - ه ق** شخه و، د عربو د سلطې پرضد پورته سو، د دې ملي مشر پرغل
**۶۵۲ - م** دو مري قوي و، چې د عربو سرد ارقيس د هیشم زوی ئې سخې ته
ونه دریدلای سو، او دبصری خواته وتښتید.

قارن هرات او دنیشاپور یوه برخه بیرته له عربو شخه ونیوله، او هم ئې دېر عربان بندیان کړه، خوله نیشاپور څخه دعربو بل قوماندان عبدالله دخازم زوی په نیمه شپه کې د ځلورو زرو سپرو سره ناځاپه دقارن پر لښکر چې نیمځوا به وه، یو هولنا که یرغل وکړ، او هغه داچې د دې ځلورو زرو سپرو دخپلو نیزو په څوکو بې غوړ تو کران ځړولي او اور ئې ورته کړی و، او په د دې توګه بې د قارن پر لښکر هجوم راوړ، د قارن لښکر وارخطا سو، خو بخپله قارن دخپل ژوند تر وروستي ساه پوري کلک مقاومت وکړ څو چې په همغه جګړه کې ووژل سو، او د هرات ملي لښکر یا ن چې بې مشره پاته وو، سره تیت سول.

په همدې کال احنف د قیس زوی له زیات لښکر سره دمرغاب خواته را وخوځید، خود سرور ود ملي مشر او امیر « باذان » دهغه سخې ته‌ودرید، سختی جګړې ئې ورسره وکړې، څو په پای کې ئې ځان په ښار کې کلابند، او احنف په دې وخت کې درې لیکلي پیشنهاد ونه وروړاندی کړه:

« یا اسلام ومنه، یا تسلیم سه او جزیه راکه، او یا جګړې ته‌راووزه ».

باذان لومړی پیشنهادونه ومانه، خو دد دې دوو نورو پیشنهادو په باب کې د خبرو دپاره خپل ورارہ « ماهک » دیوه لیک او ترجمان سره احنف ته ورولیږل.

باذان بخپل لیک کې دعربو مشر ته لیکلي و، چې:

« زمانیکه د دې هیواد له نامتو سپرو شخه و، او په دې سیمه کې‌بې ښاما ر (اژدهار) وژلی دی، او څنګه چې دد دې سیمې خلک ئې‌له ښامار څخه ژغورلي‌وه، نو خلکو د هغه په عوض کې دا سیمه ده ته ور کړه، که ته غواړې چې روغه وکړې نو لومړی شرط دادی چې داسیمه زما په نامه و پیژنې، او بل دا چې زما کورنۍ باید دخراج څخه معافه وی، په‌دې صورت کې‌به نو تاته شپیته زره‌درهم‌درکړه سي ».

احنف دده پیشنهادو مانه او دلیك په جواب کې ئې ورته وایکل:

« ستا لیک را ور سپد ، په مطلب ئې پوه سو م ، ستا غو ښتنی و منل سو ې ، پر تا ا و ستا په کور نی خراج نسته ، خو د مسلمانانو سر ه کومک پر تاسی تو لو لا ز م د ی ، او مو ږ دو اړ ه به پر د ې تړ و ن ټینگ ولاړ یو ».

دا لیک د ۳۲ ه ق کال د محرم په میاشت د یکشنبې په ورځ لیکلی سو ی او د احنف او پنځو نورو لویو عربو سردارا نو له خوا مهر سوی و ، او په د ې توگه یې دخراسان دملی مشر « باذان» سره رو غه و کړ ه .

**۳۲ - ه ش** دسیستا ن خلک له سره بیاد عربو د سلطې پرضد پاڅېدل اوربیع نایب یې

**۳۳ - ه ق** لەزرنجه وشاړه ، ځکەنوحضرت عثمان دحضرت پیغمبرله نژدې اوغوره

**۶۵۳ - م** یا را نوځخه عبد الرحمن دسمر ه زوی دحسن بصری اوزیاتونورو فقهاو

سره سیستان ته راولیږ ل . د زرنج امیر چی «پیروز» یا « ایران » نو میده،د ر و غی له لا ری ور وړاندی سو ، او دد وو میلیونو در مواو د دوو زرو بلوغ تەنژ دې مر یا نو په ورکړه ئې روغه ورسره وکړ ه .

بیا نو عبدالرحمن د سمره زوی‌د «داور» (اوسنی زمینداور) ولایت تەولاړ، او دهغه ځا ی خلگوته هم دروغی له لاری وروړاندی سو، او هلته د «زور» په نامه یوبودتون د«زوردغره» په لمن کی ودان و (۱)چی عبدالرحمن د سمره زوی په هغه بود تون کی یو بت و لید چې یا قو تی سترگی ئې درلودلی ، نو عبدالرحمن دهغه لاسونه پر ېکړ ه ، ا و ستر گی یې ځینی وکښلې او دهغه حکمران ته ئې وویل :

« دا سره زراو جواهر وا خله ، زما مقصد داو ، چی تاسی ته وښیم چی دابت د آزار لو او یا مر سته کولو واک نه لری » .

د ځیړو نکو پو هانو په وینا دابت دلمر دربـ النوع هیکل و ، چی دهغه وخت پرسکو با ندی د لمر نما نخښی دبو د تون د نښی په تو گه د « داور» د کلمې سره کیندل سوی و .

مستر مارتن د « ایشیا ټیک سو سایټی آف بنگال » دمجلې په یو ه گڼه کی خپل نظر

---

(۱)جبل زور- یادزور غر - او سنی مو سی کلا لمرلویدیزی خواته پروت و، چی اوس هم هلته دو، کلی یو د«کښته ده زور » او بل د«پورتەده زور » په نامه یاد یږ ی ، او د بت ځای پر یوه لوړه غونډۍ « د کافر کلا» په نامه مشهو ر د ی .

ددې بود تون په باب کی دا سی څرگند کړی دی چی دا هغه بود تـون دی چی چینی
نا متوګرځند وی «هیون تسنګ» هغه د«سو نا گیر— Sunagir » په نا مه یادکړی دی.

۳۴- ه ش عبد الرحمن د سمره زوی چی دحضرت عثمان د شهادت اوحضرت علی
۳۵ - ه ق ته د خلا فت در سید و وار و ېد ه ، نو په سیستا ن کی ئې امېر د
۶۵۵ - م ا حمر یشکری زوی پر ځای نایب پر ېښو و ه ، او په خپله عبد ا لله
د عا مر زوی ته چی دخرا سان والی و، ور غئ ، او له هغه ځایه بصرې ته ولا ړ ، اوسعاویه
ته یې د پرسو غا تو نه ورا ندی کړ ه .

حضر ت علی چی معاویه ته د سمر ه دزوی د تګ وارېد ه نو عبدا لر حمن دجرو طا یی
زوی سیستان ته و ا ستاوه ، خو هغه د حسکه بن عتاب سره په جګړ ه کی و وژ ل سو .

۳۵- ه ش عبد الر حمن د عمره زوی د معاو یه له‌خوا سیستا ن ته را غئ ، او
۳۶ - ه ق درخج او زابل له لاری یې پرکا بل یر غل وکئ .ده خپل یو شل
۶ ۵ ۶ - م کلن سالا ر چی سهلب دابی‌صفره زوی نو سېد او « فارس الفرسا ن »
یعنی د سپرو سپور ئې لقب و ، جګړې ته وګوماره .

ځنګه چی د کابل پاچا هم جګړن اوپهلوان سړی و ، نو پخپله د جګړې په ډ ګر کی
جنګېد ه اود تاریخ سیستان د مؤلف په وینانژ د ې شل زره مسلما نان دده په لاس شهید ا ن
سو ه ، او هیڅوک دده مخی ته درېد ای نه سو ، څو چی مهلب ئې مخی ته را و وت .

کا بلشاه اته ویشت زره سپاره پر پیلا نو او اسانو درلود ل ، مهلب یو لوی پیل پخپله
نیزه ووا ژه اوپخپله د کا بلشاه سره مخامخ سو، سخته جګړه ئې وکړه ، څوچی کا بلشاه روغی
ته غاړه کېښېښووه ، او مهلب د کابل بریمن (فاتح) و پېژاند ه سو ، او د سمره ز وی ده ته
سپه سالاری ورکړ ه .

پـه هـمدی کـا ل د مـرو حکـمـر ا ن « مـا هــو یــه » هــغـه څـو ک پـه
(۱ ۳ ه ق— ۱ ۶۵ م ) کال د سـا سا نیا نوو رستـی پا چـا دریـم یـزد گر د لـه
سنځه یو وی‌ء ، او دعر بو سر ه‌ئې لا س یو کی ء،د څلر م خلیفه‌حضر ت‌علی‌در بار ته و لاړ ،
او دهغه سره یې نوی تړ و ن و تاړ ه؛ او هم یې‌له خلیفه څخه دخر اسان‌دمر و ددهقانا نو
او سپر و په‌نامه در ضایت یوفر مان و اخیست؛ خو چی‌مر و ته راو ر سېد د نیشاپو ر په
سر حد و کی خر ا سانیان عر بو ته پو رته سو ه .

٣٦ - ه ش حضرت‌علي چې دخراسا نیانو دپور ته کېد لو خبر وا ر و بد ه د
٣٧ - ه ق هغو دآرامو لودپاره ئې جعده‌دهبیرهٔ مخز ومی‌زوی دو الی په‌حیث
٦٥٧ - م نیشاپو ر ته را و استاو ه،چې‌بیامر و ته‌و لاړ،جعده‌دحضر ت علی
زوم‌او د خاله زوی و .

برا ز دما هو یه زوی دمر و دهقا ن (یعنی خان) دمر و تږلو د هقانا نو ته لیکو نه و استول چې جعده ته خراج ومنی.

جعده په‌خراسان کې ډېر فتو حات‌و کړ ه.

٤٠ - ه ش عبدالله دعامر ز وی‌چې دمعاو یه‌له خو ادبصرې او خرا سان امیرو ،
٤١ - ه ق دخان‌له‌خو اد خر اسان‌و لایت‌قیس‌دهیشم‌سلمی زوی ته و سپار ه.
٦٦١ — م قیس‌دشمالی‌خراسان تر نیو لو و ر و سته‌تر بلخه پر مخ‌ولاړ، او دبلخ
مشهو ر بو دتو ن «نو بهار» ئې و ران کې،خو د بلخ د خلکو سره‌ئې ر و غه و کړ ه ،
او عطادسائب زوی ئې پر بلخ مقر ر کې ، او هغه‌دبلخ څخه یو فر سخ لیری پر در ولویو
و یالو باندی‌پلو نه‌جو ړ کړه‌چې په«قناطر عطا » سر ه‌ئې شهر ت و مو ند .

(ځینو مؤ ر خانو د قیس تر کل کېدل په ٤٣ ه ش = ٤٣ ه ق،او٦٦٢ م کی گڼلی‌دی ).

٤٣ - ه ش ابو رفاعه عبدالله دحا رث عدوی‌ز وی‌چې‌یو صحا بی او په اصل کی
٤٤ - ه ق دبصرې‌و ،دکابل په جګړ و کی شهید سو ،چی اوس ئې‌زیارت په
٦٦٤ - م کابل کی‌په«شهیدای»صالحین‌مشهوردی.دی‌دحضر ت پیغمبر له‌یارانو
څخه و ،او له‌پیغمبر ه ئې‌ر و ا یت هم کړی دی. دسیستان په جګړ و کی د عبدا لرحمن
ابن سمر ه سر ه‌ملګرې و ، او په کابل کی و و ژ ل سو.دده نو م‌ابو ر فاعه‌تمیم داسیدز وی
هم یادسوی‌دی، او کنیت ئې ابو قتاده عد وی هم ر او ړ ه سوی دی . په همد ې کا ل
مهلب دعبد الر حمن ابن سمر ه سپه سا لار دکابل تر فتح و ر و سته‌دافغانستان‌دلمر ختیزو
هیو ادو په نیو لو ما مو رسو ، او د «بنه »او «الاهو ر» سیمی ئې د ملتان او کا بل تر منځ
و نیو لې او د جنو ب خو اته تر «قیقان» یا «کیکانا ن» پو ری چې د بلو چستا ن یو ښا رو
پر مخ‌ولاړ ،اودادعر بو لو مړ نی‌لښکروچی ،دکابل‌له‌لاری‌داباسین‌تر غاړ وپوری‌و ر سېد.

۴۴-هـ ش عبدالرحمن دسمره زوی‌چی په افغانستان کی تر ډیر و مادی او معنوی
۴۵-هـ ق موفقیتو و روسته دمعاو یه در بار ته ورغیء ،نو دده پر ځا ی ربیع
٦٦٥ -م دزیاد زوی‌دسیستان‌امیر و ټاکل‌سو ،او پخپله عبدالرحمن‌په (۵۰ هـ ق
-۶۷۰م) کال په بصره کی مړسو ، او د ه په بصره کی یو مسجد د کابل د و دا نیو
په‌ډول د کابلی ختیګرو په و اسطه چی له‌ځانه سره‌یوولی وو ، ود ان کړی و .

او په‌همدې (۴۵هق - ۶۶۵ م ) کال ز یاد دابوسفیان (یا- ابیه )ز وی پر بصره
او خراسان او ددغو ولایتو پرنو رو سیمو امیر و ګمار ل سو ، او هغه له خپلی خواحکم
دعمر و غفاری ز وی چی ډیر ښه‌او هوښیار او مبارز صحا بی‌و ،خر اسان ته ر ا و ا ستاوه ،
او غفاری لو مړی مسلمان دی چی دبلخ لەسیند مـیا دآسو له سیند ه پې او بەچښلی دی،او
دلومړی‌ځل‌دپار ه‌یې‌دغو ر پر غرو یر غل‌و کیء او دغو ر خلک‌ئې‌دځان‌تابع کړ ه .

و ایی چی ز یا دده ته ولیکل:«امیر المؤمنین معاو یه ز ما څخه سره ز را وسپین ز ر
غوښتی دی ، نو ته ئې بایدخلکو ته ونه‌وېشې، او رو ائې‌ستوې ».
غفاری‌په جو اب کی و ر ته و لیکل:

«ماته دخدای‌کتاب دامیر تر لیک دمخه‌ر ارسیدلی‌دی ».

بیائې‌نو ټول‌سره‌او سپین ز رخلکو ته‌وو یشل،او پخپله‌په(۵۰ ق-۶۷۰م) کال دخراسان
په مر وکی و فا تسو .ځینی‌مؤ رخان دزیا دمقرریدل‌په ۴۵ هـ ق ـ ۶۶۵ م کال ګڼی ).

۴۵-هـ ش ز یا دد ابیه‌زوی چی دمعا و یه له‌خو اد بصرې،خرا سان‌ا و سیستان
۴۶- هـ ق اما رت‌ده‌ته‌سپارلی‌سوی‌و ، ده‌په‌همدې‌کال‌له‌خپلی‌خوار بیع‌حارثی‌سیستان
٦٦٦ - م ته‌و استاوه ،چی‌یو عا دل‌او ښه‌سړی و،او دد ه‌دښه خوی‌په‌وجه‌دسیستا ن
ډیر خلک د ا سلا م په دین وګر و هېد ل ا و ده هم خلک د علم ا و قرآ ن ا و تفسیر
ز ده کړې ته وګو مار ل .

۴٦ - هـ ش ر بیع‌حارثی دسیستان اموی‌امیر بستا ورخج ته و لاړ، ا و درتبیل(۱)
۴۷ - هـ ق سره وجنګېد،ا وهغه‌ئې مات کیء،او تر ډیر وولجو ا خیستلو وروسته
٦٦۷ - م بیرته سیستا ن‌ته‌و لا ړ،او په‌سیستان کی‌ئې‌دخر ا ج دفترا و دحساب
د و د منځ ته ر ا و و ست .

(۱)ر تبیل -دکابل‌او ز ابل‌دپا چهانو لقب‌و ، ځینو مو ر خانو «ز نبیل »هم‌لیکلی‌دی.

٥٠ - ﻫ ش   زیا ددا بیه زوی اود خراسان‌اوسیستان امیر، په همدې کال عبید الله
٥١ - ﻫ ق   دابی‌بکره زوی‌ته د سیستان‌حکومت‌وسپاره اواسرې‌ورته‌وکی‌ءچی‌دهغه
٦٧١ - م   ځای‌تول هر بدان (داورنما نځونکو مشران) ووژنی، او دهغه
اورتو نونه (آ تشکدې) و رانې کړی. ځکه‌نودسیستان‌دهقانان او گبران یاغیان سوه
او د هغه ځای مسلمانانو د شام خلافت ته ولیکل ،ځنگه چی دوی له هغوسره تړون
کړی دی، نو باید هغوته ضرر و نه ورسول سی هغه‌و، چې د خلافت له د رباره
هدایت‌ر اورسېد چی‌دیا غیانو سره‌دی په جزیه روغه وسی، او عبید الله‌دابی بکره
زوی هم هغسی وکړه. بیا د بست، رخج او کابل لوری‌ته راغی‌ءاو د رتبیل
شاه سره ئې جگړه و نښلوله، خوچی په پای‌کی ئې په دوو میلیو نودرمو روغه وکړه
او رتبیل دده‌سره‌سیستان ته‌ولاړ، اوله هغه ځایه یې رتبیل دزیاد بن ابیه‌په‌امر
بصرې ته‌ولېږه اوپه بصره کی بې زیاد د پرونا زا وه ،او د پروسوغاتوسره ئې بیرته
سیستان ته واستاوه.

په همدې کال دبا د غیس او گنج روستا خلگ دعربو په‌مقابل کی پورته سوه،او
خپل زاړه‌دین ته وگرزېدل ،ځوچی شداد خالد اسدی زوی پر دوی یرغل وکیء،
ځینی ئې ووژل او ځینی یې‌مریبان کړه ،خومعاویه مریان‌آزاد کړه، اودادمریانو
لومړی ډله وه چی‌خراسان ته بیرته‌ورکړه اوستانه سوه.

٥٢ - ﻫ ش   زیاد دابیه زوی‌په‌بصره کی‌مړ سو ،اومعاویه‌خپل ٢٥ کلن وراره،
٥٣ - ﻫ ق   عبید الله‌د زیادزوی‌ئې دوالی په‌حیث خراسان ته‌را واستاوه
٦٧٢ - م   او هغه‌بیاخپل‌ورور عبادد زیادزوی‌دسیستان‌حکمران وټاکه.عباد
چی سیستان ته‌ورغی‌ء،له‌هغه ځایه‌دکند هار او کابل خوا ته لښکر ویوست،په جگړ وکی
بریالی سو ،او د پری ولجې ئې‌لاس ته ورغلې، او ځنگه چی‌عبادد کندهارد خلگوجگی
خولی ولېدلې نو ده هم هغسی خولی جوړه کړه، او تر هغه وروسته هغه خولی په
«عبادیه» مشهوره سوه، خوعوا م سوبه «تېش خولی» بلله.

٥٣ - ﻫ ش   عبید الله د زیادزوی‌لومړی‌عرب و ،چی‌له‌شپاړ سوزرو سپرو سره
٥٤ - ﻫ ق   د آ موتر سیندماوراءالنهر ته‌پوری ووت ،او سهلب دابی صفره
٦٧٣ - م   زوی ئې‌دځلو رو زروتنوسره‌بخاراته‌واستاوه‌چی‌بخارایې‌چور کړه.

۵۴ -هـ ش دمعاو یه لهخواخراسان دحضرت عثمان زوی سعیدتهاو دخراسان
۵۵ -هـ ق خراج د زرعتهکلابی زوی اسلم ته ور کړه سو .سعید بخارا او
۶۷۴ -م سمرقند هم ونیو ، خو د سمرقند د ښار په وره کی ئې غښی
پر سترگهو نښت،او یو مسترگه یی‌بابلوو له،او اسلم‌دمرو پر خراج سل‌زره‌درمه‌ز یات کړه.
دهمدې سعیدپه و ختو کی وه، چی عربان دمعاو یه په فرمان په مرو کی میشته‌او دمځکو خاو ندان‌سوه.
«ځینی مورخان خراسان ته دسعید مقرر یدل‌په (۵۶-هـ ق =۶۷۵ کی گڼی)».

۵۸- هـ ش معاو یه د سعید پر ځای عبدالرحمن دزیاد زوی پرخراسان وگماره ،
۵۹ -هـ ق اوهغه‌له خراسان څخه اته میلیو نه درمه راټول کړه ، خو هغه ټوله
۶۷۸-م حجاج‌بن یو سف ځنی وا خیستل ،عبدالحی گردیزی‌په خپل کتاب
زین الاخبار کی لیکی : «چنین گفت مالك بن دینار: که عبدالرحمن صد سال زندگانی خویش را روز هزار درم ساخته بود جز ضیاع و تجمل . وحجاج اوراېجا یی رسانیدکه روزی بر خری نشسته بود ، مالك اورا پرسید که: «آن همه مال توچون شد ؟» گفت : «بشدواین خرنیز عاریت است » .

۵۹- هـ ش معاو یه د ۷۸ کالو په‌عمر تر ۱۹ کالو ، دری میا شتوا و ۲۲ ورځو
۶۰ - هـ ق خلافت وروسته مړ سو ، اود ده زوی‌یزید ئې پرځای کېښنو ست،
۶۷۹-م او تر یوه کال وروسته یی خراسان ته سخه وکړه .



۶۰ - هـ ش یزید دپلار ترمړینی ور وسته «سلم» د زیادزوی خراسان ته
۶۱ - هـ ق را ولېږه ، او دخراسان او سیستان ولایتو نه ئې ده ته وسپارل .
۶۸۰ - م داهغه‌کال، وچې دخراسان آزادی غوښتو نکی دعربی تسلط پر ضد
راپا ریدلی وو،اود همهغه‌کال په ژمی کی د دوی او لسی مشرانو دخراسان په یوه ښارکی‌جرگه کړی‌وه،چی‌ددو یی‌دپاره دعر بو پر ضد داغیزمنا کو هڅو لاری‌چاری‌وسنجوی .
دزیاد زوی «سلم» چې خراسان ته راغئ ،نود خراسان د آزادي غوښتو نکو د دی هڅو د شنډ ولو دپاره ئې شپږ زره جگړن دابی صفره دزوی «مهلب» په مشری وگمارل چې دشپې ناڅا په د آزادی غوښتو نکو د جرگی ښار کلا بند کی ، عربی جگړنو هم پر هغه ښار شوا خون وروی‌ء، هغه ښار ئې کلابند کئ ، خو آزادي غوښتو نکو د پنځوسو میلونو په‌اندازه نغدی‌او جنس‌دعر بو سالارته‌ورکړه او خپل اولسی مشران ئې‌له خطره‌وژ غورل.

**٦٠ - ه ش** سلم دزیاد زوی خپل دوه ورونه یو یزید د زیاد د زوی ئې د امیر

**٦٢ - ه ق** په حیث اوبل ئې بوعبیده دزیاد زوی دسپه سالار په حیث سیستان ته

**٦٨١ - م** ولیږل، او هغه دوه ورونه چې سیستان ته ورسیدل، له هغه ځایه دیوه لوی لښکر سره دکابل خواته چې خلکو ئې دعربو له تسلط څخه سرغړولی و، وخوځیدل. خو په لارکې د کابل دخلکو دلښکر سره مخامخ سول، او تر یوې خونړۍ جګړې وروسته دعربو زیات جګړن تباه اوبیا بند یان سول، او پخپله یزید دزیاد زوی دعربو امیر هم ووژل سو، او بل ورور ئې بوعبیده چې دعربو دلښکر سپه سالار و، د آزادی غوښتونکو په لاس بندی کښېیو تیء.

سلم دزیاد زوی دخراسان او سیستان والی چې دخپل یوه ورور دوژلو اود بل ورور دبند یګرت خبرو اور ید، نو دخپل بندی ورور دخلاصولو دپاره ئې دعبدالله زوی طلحه چې دخلف خزاعی نمسی اوپه «طلحة الطلحات» مشهورو، سیستان ته واستاوه او د طلحه ور ورعمرئې دلښکر دمشر په حیث ورسره کیء. طلحه چې سیستان ته ورسید نود کابل دآزادی غوښتونکو سره ئې په خبروا ترو پیل وکیء، اود پنځه سوو زرو درمو په ورکړه ئې بوعبیده اودعربو نور بندیان را نیول او سیستان ته ئې بوتلل.

سلم دزیاد زوی دیزید ترمړینې پورې دخراسان والی و، او په سروکې اوسید.

**٦١ - ه ش** د سیستان امیر طلحة مړسو، او د هغه زوی عبدالله ئې پر ځای

**٦٣ - ه ق** کښېنوست.

**٦٨٢ - م**

طلحه خپل زوی ته وصیت کړی و، چې: «ما دلته په سیستان کې ښخ کیء، زه پردی خلکو ګران یم، زما دوستان به ماهېر کلونه یا دوی - او هغه څوک چې خلک ئې په نیکی یادوی هغه مړنه دی، اود ادچا خبره بې ځایه نه ده چې وایی: «زر کاله ژوندی اوسې!» داځکه چې دسړی بقاد هغه دښو یادونه ده، او زه هیله لرم چې زه به هم په دی بزرګ ښار او پدې بزرګانو او آزاد سر دانو خلکو کې یوله هغو څخه یم».

د تاریخ سیستان د مؤلف په قول رشتیا هم چې طلحه د خلګو سره ډیره ښه رویه درلوده او د سیستان خلک له ده څخه ډیرراضی وه. خو د طلحه تر مړینې وروسته په سیستان کې دعربی نژادوسردارا نو ترمنځ اختلاف پیښ سوءا و هریوه ځانته یوه سیمه و نیوله - ځکه نود کابل اوزابل پاچا رتبیل ته بیا موقع په لاس ورغله چې پر سیستان یرغل

و کړی، نودیوه‌غښتلی لښکر سره ئې پرسیستان‌حمله وکړه ،اود سیستان مرکز زرنج ئې ونیو.

**۶۳ – ه ش** دلومړی خور دمیا شتی په نیما یی کی دمعا ویه زوی یزید مړ سو ،

**۶۴ – ه ق** اودده پرځای دده زوی دو هم معا و یه کښینو ست ، خو دا ما رت

**۶۸۳ – م** سو د ئې ډیره لنډه وه ،چې‌په یوه قول‌څلو یښت و رځې‌او په بل روایت

شپږ میا شتی وې ، او تر‌هغه وروسته ئې استعفا وکړه ،او د استعفا په وخت کی ئې

د خپل خلف دتیا کلو په باب خلګو ته وویل :

« څنګه چې زه‌د عمر بن خطا ب‌په څېر د شوری اهل څوك نه پېژ نم چې تاسی‌دهغه

بیعت ته وبولم ، او په خپله هم ځان ددې کارو ړنه بولم ، نو ځکه ځان‌گوښه کوم

او هرڅوك چې تاسی صا لح بولی‌ءپه خلا فت ئې‌و ټا کی‌ء !».

هغه و ، چې‌دده تر استعفا وروسته د عراق، حجا ز ، یمن او مصر خلګو د زبیر دزوی

عبدالله سره چې مور ئې « اسما » دا بوبکر صد یق لور وه بیعت وکړی‌ء ،او هغه دبصرې

اوخراسان او سیستان ولایتو نه دعبدالله زوی حارث ته وسپارل ،چې حارث بیادځان

له خوا د عبد الله زوی عبد العزیز سیستا ن ته ولیږ ه .

د خراسان پخوا نی وا لی د زیاد زوی سلم مکې ته ولاړ ،خود تګ په وخت کی

ئې خر اسان د ځان له خو ا د عامر زوی « عرفجه » ته وسپا ره ،او بیا څنګه چې دمکې

پر لاری د خا زم زوی عبداللهٔدده‌سره خدمت کاوه،نو بیا ئې د خراسان فرمان عبدالله

ته ور کړی‌ء ، او عبد الله سروته را غی‌ء ؛د عرفجه‌سره ئې‌جګړه وکړه، هغه ئې مړ کړی‌ء

او خراسان ئې ونیواود بیعت پا نی‌ئې‌دزبیر زوی عبد الله ته ولیږ لې ،او خپل زوی

محمد ئې په هرات کی امیر وټا که .

په‌دې ترتیب د خا زم زوی عبد الله اته کاله او پنځه میا شتی او پنځه ویشت

ورځې په خر اسان کی پا ته سو .

**۶۳–ه‌ش** په شام کی‌دمروان‌زوی‌عبد الملك دپلار تر مړینې‌وروسته دروژې‌په

**۶۵–ه‌ق** میا شت خلیفه سو.ده دخراسان له خلګو څخه‌بیعت وغوښت ،خوځراسان

**۶۸۴–م** خلګو نه یوازی دوی پخپله بیعت ونه‌مانه ، بلکه دخراسان‌وا لی‌دخازم

زوی عبد الله ئې هم وپارا وه‌چې په خراسان کی د خپلوا کی اعلان وکړی ،اوهغه

هم دخرا سان خپلوا کی اعلا ن کړه .

عبد الملک د خازم د زوی عبدالله پر ځای د عربو یوبل سردار چی « بکیر»دوشاح ـ یا ـ وساج زوی وتاکه ، او بکیر د خپلو قبیلو سره د عبدالله پرضد پاڅېد ، او ددې دو وعربی‌سرد ارانو ترمنځ تر ډېری مودې پورې خونړی جګړې جاری‌وې څو چی په ( ۷۱ ه ق ــ ۶۹۰م ) یا په (۷۲ هــ ۶۹۱م ) کال‌د خازم زوی عبد الله دد ورقیه د زوی وکیع له خوا ووژل سو ، اودهغه سرئې د مروان زوی عبد الملک ته واستاوه .

**۶۹ـ هش** د مروان زوی‌عبد الملک دخراسان ولایت‌د ورقا زوی « بحیر »
**۷۱ـ هق** ته ورکی . هغه که څه‌هم ښه سړی و ، خو ددولتی چارواو ابنکرد
**۶۹۰ـ م** اداري څخه‌عاجز و ، ځکه نوعبد الملک هغه لیری کی .



**۷۰ ـ هش** دمروان زوي‌عبد الملک دخراسان او سیستان ولایتونه د عبدالله
**۷۲ ـه ق** زوی « امیه » ته ورکړه ، امیه اووه کاله په خراسان کی
**۶۹۱ـ م** والی و ، او په ( ۷۸ ه ق) کال ئې‌خپل زوی عبد الله دسیستان امیر وټاکه .

په همدې کال کی‌د مروان زوی عبد الملک ددوشاح زوی بکیر د تخارستان والی مقرر کی .

**۷۳ـ هش** د خراسان‌اوسیستان د والی « امیه » زوی عبد الله سیستان
**۷۴ـ ه ق** ته‌راغی ، او هغه‌ځا یه بست‌ته‌راو خوځېد او د زابل دپاچار تبیل
**۶۹۳ـم** سره په جګړه اخته سو ، خورتبیل پوخروارزرد سوغات په توګه عبدالله ته‌ور واستول‌او تړون ئې وکړچی جګړه به نه کوی . عبد الله هم په دوه میلیونه درمه ور سره روغه وکړه ، او درې لکه درمه ئې هم دځان دپاره واخیستل .

دا خبر چی دمروان زوی عبدالملک ته ورسېد ، هغه ئې له سیستانه عزل کی ، او پر ځای‌ئې د طلحه زوی موسی سیستان ته ولېږه .

**۷۶ ـ ه ق** د مروان زوی عبدالملک د خراسان او سیستان‌و لایتونه دیوسف زوی
**۷۸ ـ ه ق** حجاج ته ورکړه چې دعربو یوډېر ظالم او سفاک سردارو ، او ده له
**۶۹۷ ـم** خپلی خوا دخراسان دچارو دا دارې دپاره دابی صفره زوی‌مهلب ، او د سیستان دچارو دپاره دابی بکره زوی عبیدالله وګمارل .

عبیدالله دلو ی لښکر سره چی ـیه سالار ئې د بسطام زو ی حریش و ، سیستان ته راغی .

**۷۷** - ه ش دابی بکره زو ی عبیدالله سیستان خپل ز و ی « بو برد عه » ته وسپاره ،

**۷۹** - ه ق او په خپله ئې دحجا ج په امر دبست له لا ر ی پر ز ابل او کابل یرغل

**۶۹۸** - م و کی‌ه، خود « ر تبیل» جگړ نو چی په منظم ډو ل پر شاتله،دعربو لښکر

ئې په ځانو یسی را کمېن، ځو چی له هر ی خو ائې لا ر ی پرو تړ لې اوله هر پلوه ئې وربانډی یر غل و کی‌ه ، خو نړ ی جگړ ې و نهتلې او دعر بو دلښکر ز یا ته بر خه یو پنا سو له ، چی له همد ې جهته عربو خپل هغه لښکر « جیش الفنا » و بالـه ، او عبیدالله مجبور سو چی ر تبیل ته اوو ه لکه ( ۷۰۰۰۰۰ ) در همه د جگړې تاوان ور کړ ی ، او خپل در ې زامن یرغمل ور پر یږد ی او هم‌لوکلی تړون وکړ ی چی تر څو چی‌د ی په سیستان کی‌و ی، بیا به در تبیل سره جگړ ه نه کو ی . ترد ې تاوان او تړون ورو سته نو دعر بو سالار خپل ځان او نور پاته لښکر له تباهی څخه وژ غوره ، خو بیا هم دعر بو د لښکر یا ته جگړ ن یو څه له لو ږ ی او تند ی سره سو ه ، او ځینو نورو چی ډوډ ی پیدا کړه دونی ئې ډېره وخوړ له له څو چی له ډېر و خوړ لو څخه هلاک سول ، او یوه کو چنی ډله په خورابدحال دعبیدالله سره بست ته ورسېد ل او عبیدالله په همد ې کال له ډ یری خوا شینی ا و غصې څخه سر او په بست کی ښخ سو .

**۷۸** - ه ق امام اعظم ابو حنیفه‌نعمان د ثابت زو ی‌چی نیکه‌ئې د کابل دېر و ان

**۸۰** - ه ق د سیمی و ، په کوفه کی‌و ز یږېد (۱).

**۶۹۹**-م د ی داهل‌سنت او جماعت له ځلور و امامانو څخه‌یو ستر‌امام او داسلامی

---

(۱) دا چی امام اعظم په اصل کی د کابل و ، په ز یاتو تار یخی ماخذو او تذکرو او مناقبو کی را غلی‌د ی چی مشهوره ئې دا دی :

الف : الخیرات الحسان فی مناقب الا مام الا عظم ابو حنیفه ا لنعمان : د حجا ز دمفتی علا مه ابن حجر الهیتمی تالیف ،چی په ( ۹۷۳ ه ) کی مر د ی .

ب : مناقب‌الامام حنیفه ـ دابو الموید‌الموفق‌المکی تالیف ـچی‌په( ۵۱۸ ه) کی‌مر د ی .

ج : مناقب ابی حنیفه ـ دابن البز از الحنفی الکر در ی،چی‌په (۸۲۷ ه ) کی‌مرد ی. ✽

( دپایلیک پاته په ۱۷ مخ کی )

مشهور تشریعی « حنفی مذهب » مؤسس و ، چی دا مذهب ترا وسه د ده په نامه یاد یږی او په دنیا کی تر نیموزیات مسلمانان په همدې مذهب دی .

(دامام اعظم دژوند مفصل حالات « دافغانستان نوسیالی » په کتاب کی چی مالیکلی او لوسړنی برخه ئې د « عرفان » په مجله کی پر له پسې خپر یږی لوستلای سیء)

**۷۹ - ه ش** د یوسف زوی حجاج چی در تبیل له خو ادعربو دلښکرد تباهی خبر

**۸۱ - ه ق** وار و ید،لهقهره ډیر سور او شین سو،او د سروان د زوی خلیفه عبدالملک

**۷۰۰ - م** په اجازه ئې یو خورا لوی مجهز لښکر جوړ کړ چی په هغه کې شل زره دبصرې جگړن او شل زره دکوفی نو،یالی غښتلی و ، او هم ئې د یوسل او شلو زرو سپرو له سنځه‌ل‌س زره تکړه سپاره و چو نړل ، او داشعث د نمسی او د محمدزوی عبدالرحمن په سالاری ئې د سیستان له لاری افغانستان ته را وا ستول . د عبدالرحمن په‌را استولو کی حجاج دوه مقصده درلوده ، یو داچی عبدالرحمن دحجاج‌له خو را سخت‌سرو رقیبا نو څخه و ، غوښته ئې په دې پلمه ئې له ځا نه لیری کړی ، او بـل دا چـی عبدالرحمن دافغانستان دجنگیالیو او توریالیو خلکو غښتلو منګولو ته وسپاری ، چی که هره خوا مغلوبه سی دحجاج به پکښی ګټه وی .

د عربو دا لښکر چی ډیر مجلل او مجهز و ، او خورا زیات ځلبل ئې درلود، نود «جیش الطواویس » یعنی دطاوو سانو دلښکر په نامه یاد سو، او هم‌حجاج دوه میلیونه د رهمه ورسره مرسته‌وکړه ، او هغه ورځ چی ئې دا لښکر کوت د هغه یوه سپا ره ته ئې

---

✿ د : الدر رالمنظم فی مناقب الامام الاعظم ـ دنوح افندی تالیف چی‌په ( ۱۰۷۰ ه) کی مړ دی . ـ ددې کتاب خطی نسخه دمصر داز هر د کتبخانی په ۳۳۸ لمبر کی قیدده .

ه : العقود الجماد فی مناقب ابی حنیفه نعمان دصا لح د مشقی لیکنه . خطی نسخه ئې داز هر په کتبخانه کی سته .

و : سکینة الفضلا ـ ۱۲ مخ .

ز : لغتنامه : دد هخدا تالیف ـ ۱ / ۴۳۹ مخ .

ح : ـ حدیقة الا قالیم ـ ۳۶۷ مخ،د مرتضی حسین بلگرامی تالیف.

ط : ـ مفتاح التواریخ ـ ۱۷ ، ۱۸ مخونه.

ی : ـ امام اعظم و افکاراو ـ دسولانا عنایت الله ابلاغ تا لیف .

ک : افغانستان بعداز اسلام ـ دپوهاند عبد الحی حبیبی تا لیف ـ او نور . . .

پنځه پنځوس زره درهمه وبخښل .

**٨٠ - ه ش** عبد الرحمن دطاووسا نو دلښکر سره سیستان‌ته راو رسېداودسیستان
**٨٢ - ه ق** دخوارجو دستر سپه سالار دعدي‌دزوي«همیان» سره مخامخ سو ،
**٧٠١ - م** او دعربو دطاووسانو دلښکر او دسیستان د آزادۍ غوښتونکو ترمنځ
ترخونړۍ‌جګړې، وروسته آزادۍ غوښتونکي پرشا کېد وته مجبور سوه ،
او عبد الرحمن دزرنج ښار و نیو او خوراز یات آزادۍ‌غوښتونکي ئې ووژل‌او دهغو
سرونه ئې حجاج ته واستول . بیا ئې پربست یرغل وکیء، اودرتبیل‌سره‌په‌سخته‌جګړه
اخته سو ، ډېری او لجې ئې په لاس ورغلې او بیر ته سیستان ته ستون سو .

په دې وخت کې دحجاج یو لیک ورته راورسېد چې لیکلي ئې وه : « له خلکو
سالونه واخله ،دهند او سند خواته یرغل وکه ! ».

عبدالرحمن په‌جواب کې ورته و لیکل چې :

«پرهند او سند یرغل کوم، خو له خلګو څخه په ناحقه مالونه نه‌اخلم، او نه په
ناحقه وینې تویوم ».حجاج یو بل له پېغور‌ه‌او تهدیده ډک لیک عبد الرحمن ته
راواستاوه چې بې له ځنډه‌باید پر زابل او کابل یرغل وکی ،تولی ودانۍ‌ویرانې
کړي، او د هغو سیمو ښځې او نارینه بندیان کړي .

عبد الرحمن که څه هم په ښکاره د رتبیل جنګ ته ورو‌خوځېد ، خو په پټه
دحجاج دادو هم لیک‌دی‌او دد، دلښکر نو رسالاران،لکه‌بوطفیل،عامر او عبد المومن ربیعی
د حجاج پر ضد سخت پارولي وو ، څو چې یوه ورځ عبد الرحمن او دده سالارانو
خپل لښکر ته‌په ډاګه وویل :

«که لښکر بریالی سو ، او لجې او مکافات ئې دحجاج دی، او که لښکر ماته وکړه
نو بیا سپاهیان دحجاج په نظر کی سپک او بې همته دی، حال داچې داهیواد (افغانستان)
ستاسې سپاهیانو ابدی هدیره ده ، او بیا به خپلې کورنۍ په سترګو ونه وینیء،اوپه‌دې
مځکه کې دحجاج لښکر کښې په رود نیل کې د فرعون لښکر کښې ته ورته ده ،
نو راځیء چې‌د کابل پرځای کوفې ته‌ولاړسو او حجاج‌له‌خپل هیواده‌وشړو !».

دې خبر و دعربو پر لښکر دونې اغېزه وکړه، چې دستې ئې دعبد الرحمن‌سره
بیعت وکیء او در تبیل‌سره‌ئې روغه وکړه،اوهغه ئې له خراج څخه معاف‌کیء . بیا

نو عبد الرحمن حجاج ته یاغی او د هغه سره جگړې ته چمتو سو ، او په همدې کال له سیستانه دحجاج سره دجگړې په نیت و خوځید .

۸۱ - ه ش  عبدالرحمن په بصره او کوفه کې دحجاج سره یو اتیا جگړې وکړې
۸۴ - ه ق  چې دسیستان دتاریخ دمؤلف په قول په اتیا جگړو کې پرحجاج
۷۰۲ - م  بریالی سو ، او په یو اتیایمه جگړه کې ئې ماته وکړه او بیر ته دسیستان مرکز زرنج ته راغی .

حجاج له بصرې څخه دوه زرسپاره د عباس :زوی عبد الرحمن په مشری په ده پسې سیستان ته راولیږل ،او هم ئې دخراسان امیر مهلب ته و لیکل چې په عبد الرحمن پسې سیستان ته لښکر و استوی ، مهلب هم یو لوی لښکر دخپل زوی «مفضل» په مشری سیستان ته و استاوه ، ځکه نو عبد الرحمن چې یو وخت دعربو دطاوو سانو دلښکر سپه سالار و ، له سیستانه بست ته ولاړ، او له هغه ځایه ئې دز ابل د چا رتبیل ته پناه یوړه .خو په همدې کال مهلب دخراسان امیر مړ سو ، او حجاج د هغه زوی «یزید» د پلار پر ځای دخراسان امیر و ټاکه ،او هغه څلور کاله دخراسان امیر و .

۸۳ - ه ش  دتمیم زوی عماره دحجاج استازی دزابل د چا رتبیل ته راغی
۸۵ - ه ق (۱)  او دحجاج له خوائې یو لیکلی تړون هغه ته وړاندی کی ،
۷۰۴ - م  دحجاج له خوا داتعهد سوی و :

«ستا هیو ادته به زما لښکر نه درځی ، او ستا څخه مال نه غواړم ،زمو پر ترمنځ به روغه او دوستی وی . په دې شرط چې دعربو دطاوو سانو د لښکر پخوانی سپه سالار عبد الرحمن او د هغه ملگری او بو العنبر زما استازی ته و سپاری،، که نه وی نو سل زره جگړن به ستا خوا ته در و خوځوم ». رتبیل لو مړی د حجاج غوښتنه و نه منله ، او د عبد الرحمن ور سپارل ئې د ځان د پاره یو ډول سپکاوی گاڼه ،خو وروسته دا بی سبع د زوی عبید په مشوره چی رتبیل ور باندی ډیر باور او اعتبار درلود ،او هم ئې د حجاج په مهر تړون لوکه، در تبیل په نامه راوړی و، عبد الرحمن او د هغه ملگری ابو العنبر ئې د حجاج استازی ته و سپارل ،خو دکندهار د ارغند او په رخج کی عبد الرحمن خپل ځان وو اژه ، او هغه

---

(۱) ځینو مورخانو(۸۴ ه ق - ۷۰۳ م ) کال لیکلی دی .

داسی و، چی د حجاج استازی عبد الرحمن او د هغه ملګری پښه په پښه سره تر لی پر بام بیده وو، عبد الرحمن د شپې خپل ځان له بامه لاندی پر مځکه را وا چا وه ، ملګر ی ئې هم ور سره راو لوید او دوا ړه مړه سوه .

د تمیم زوی عماره د دوی دوا ړه سرو نه پر یکړه حجاج ته ئې ولیږل، او حجاج دعبدالرحمن سر د مشق ته وا ستا وه ،چی بیا له هغه ځا یه هغه سر عبد الملک مصر ته د عبد العزیز سر وان حضو رته و لیږه ، خو چی په دی ډول د عبد الرحمن تن په رخج او سر ئې په مصر کی ښخ سو، لکه د هغه وخت یو شا عر چی دد ه په باب و یلی و :

هیها ت مو ضع جثه من رأ سها

رأ س بمصر و جثة با لر خج

په همدې کال حجاج د خرا سا ن و لا یت د مهلب زوی مفضل ته و سپاره ،او هغه د پنځلسو ز رو جګړ نو سره د افغا نستا ن په شما لی سیمو کی دآ مو تر سینده پو ری ورسید ،

او هم په دی کال کې حجاج د تمیم زوی عما ره د سیستا ن وا لی وټا که ، خو په همدې کال ئې بیر ته عزل کیٔ .

**۸۴ ه ش** خلیفه عبدا لملک مړ وان مړ سو او د هغه پر ځای ئې زوی «ولید» دخلافت
**۸٦ ه ق** پر کر سی کښینو ست ، او هغه هم خرا سان او سیستا ن او عرا قین
**۷۰۵ م** حجاج ته و سپارل او حجاج بیا د مسلم باهلی زوی قتیبه چی د عربو له نو میالیو او بر یا لیو سر دا رانو څخه و، د خرا سان او سیستا ن والی وټا که ، او هغه د همدې کا ل د رجب په میا شت سیستا ن ته را غیٔ ،او له هغه ځا یه دخپل ور ور عمر په وا سطه له رتبیل شا ه څخه د جنسی باج پر ځای نغد ی سکې و غو ښتلې ، خو رتبیل شا ه و نه منله او جواب ئې ور کیٔ چی :

« موږ له اطا عته سرنه غړ وو ، خو هغه باج ور کوو چی د حجاج سره د روغې په تړ ون تا کلی دی نو تا سی هم هغه باج وا خلئ ، نو رتیری او ظلم مه کو ئ که په روغه را ضی سئ ستا سی خیر دی ، که نه وی نو هیله لر و چی بری به ز موږ په برخه وی ».

هغه وخت چی عمر و د رتبیل جو اب خپل و رو ر قتیبه ته ورسا وه ، نو قتیبه خپل لښکر ته وو یل :

«داسېځکه شو سه ده ، په دې خا و ره کې دا مېه ز وی عبدا لله ، او دا بې بکره زوی اود عر بو نو ر ز ړ و ران و ژلې سو ی دی، او سوړ هم نه سو کولای چې در تبیل دجګړه یزو د و کو شخه ځا نونه و ژ غو ر و . ز سوړ خو را که اوز سوړ وا ښه به وسو ځی ، او پخپله به په تینګو کلا ووکې د ننه ځا نونه و سا تی . نو ښه د اده چې د جنسی ما لو په ا خیستنه قنا عت و کو » .

ځکه نو قتیبه امر وکړ چې په هم هغه جنسی باج دی قنا عت و سی ،ا و پخپله هم له سیستا نه خر ا سان ته و لاړ ، او له هغه ځایه د افغا نستان په شما لی سیمو کې تر جوز جان او بلخ اوتا لقان پوری کله په جګړه اوکله په ر وغه پرمخ ولاړ .

ګر د یزی په ز ین الا خبا ر کې لیکی:

«هغه و خت چې قتیبه خرا سا ن ته را غی ءپه خرا سا ن کې یو ښکلی بڼ و، چې دمهلب ز وی یز ید جوړ کړی و ، قتیبه هغه وران کړ او دا و ښا نو غو جل ئی ځینی جو ړ کړ ء چا پو ښتنه ځینې و کړه چې داولې؟

قتیبه په جو اب کې ور ته و و یل چې: «ز ما پلا رسار وان و ، اودیز ید پلار با غو ان !»

**۸۵ - هش** قتیبه دبا دغیس یوز ړو راوآز ادی غوښتو نکی مشر«نیزک» ته چې د هغی **۸۷ - ه ق** سیمی ولسو ال هم و ، او د عربو بند یا ن ورسره و ه ، دسختی لهجې لیک **۹۰۵ - م** دخپل استا زی«سلیم» په لاس ولیږه ،اوپه هغه کې ئې نیزک داسې تهدید کړی و،چې «که دعر بو هغه بندیان چې درسره دی ایله نه کړې، نو قسم په خدا ی ترڅوچې ژ و ندی یم ستا سره به له جګړې شخه لا س و ا نخلم ، څو چې تا لا س ته ر ا و لم.

د با دغیس او لسی زړ و ر مشر «نیز ک» د هغه لیک له لو ستلو ډېر په قهر سو، ا و د قتیبه استا زی ته ئې و و یل :

«د ما غو ندی سړی سره دا ډ و ل خبری کو ل له ا حتیا طه لیرې دی».

خو د قتیبه استا زی چې هو ښیار سړی و ، د نیز ک زړ ه ئې په پستو پستو خبر و نرم کړ او و رته و بویل: « زما په ګمان دد و ا ړو خواو وخیر په ر و غه کې دی».

نو نیز ک و ر ته و و یل چې : «په دې صو ر ت کې با ید قتیبه دا و منی چې هیڅکله باید د د ه جګړ ن با د غیس ته ر ا نه سی، او نه باید دبا دغیس له خاوری تیر سی».

د قتيبه استا زی د نيز ک داپيشنها د قتيبه ته و رسا وه، او قتيبه هم په د ستی تو گه هغه پيشنها دومانه ، او نيز ک هم د عربو بند يا ن خو شی کړه، او د با د غيس د آ زاد پربښو و لو په شرط ئې دقتيبه سره دروغی تړو ن و کړ .

**٨٦ - هـ ش** قتيبه خپل و رور عمرو بيا سيستان ته وليږه، هغه‌ځو ر ځی‌په‌سيستان کی
**٨٨ - هـ ق** و ، بيا بست ته و لاړ ، او له هغه ځا يه ئې د رتبيل سره تر يوې جگړې
**٧٠٦ - م** و روسته‌په اته سوه زره درمه رو غه و کړه .

په همدې کا ل قتيبه د آمو د سيند شما لی سيموته د سغدد ا سير«طر خو ن» سره‌په جگړې ولاړ ،چی په دې جگړه کی د با دغيس مشر« نيز ک» چی د طر خو ن ر قيب و، هم د قتيبه ملگری و، او غوښته يې چې خپل ر قيب‌دقتيبه په ملا تړ له منځه‌يو سی ، خو کله چه قتيبه د طر خون سره دفد يې او يرغمل په اخيستلو رو غه و کړه،نيز ک له قتيبه څخه خوا بد ی سو .

هغه و ، چی نيز ک له قتيبه څخه ا جا زه و اخيستله او د برژ رئی ځا ن تخا رستا ن او بلخ ته ورسا و ه، خو قتيبه پر خپله اجا زه پښيما نه سو، او دعبد الله ز وی سغيره ئې پسی و استا وه،چی نيز ک ونيسی، مگر تر هغو چی مغيره بلخ ته‌رسېده، نيز ک دخلم درې ته‌تللی و، او د قتيبه دا هڅه ئې دقتيبه سره در و غی دتړ ون دما تېد ود ليل و با له، او د قتيبه او عر بو د لښکر پر ضد ئې ملا وتړ له ، او د جگړې اعلا ن ئې و کړ ،او د هغې سيمی او لسی مشرا نو ته،لکه دبلخ دو لايت سپهبد، دمر و ملی مشر «با ذان » دتا لقان ولسوال سهر ک يا سهرب ، دفار ياب و لسو ال تو رسل،او د جو زجان مشر جوز جانی ته ليکونه و لېږ ل ، او دعر بو د سلطې پر ضد ئې تړو ل ديو ې او لسی اتحا د يې جوړ و لو ته راوبلل او هم ئې دهند وکش دجنوب حکمرا ن کا بلشا ه هغه ا تحا د يې تـه را وبـاله ،او کـا بلشاه و رسره و عـده وکړه چی که او لسی قو تو د هند وکش

په شمالي‌سیمو کې‌سا ته‌و کړ ه، دهند و کش په‌جنوب کې‌به‌د کابلشاه د حکمر انی‌سیمه‌ددوی د پناه تیا تو بې وی .

هغه و ، چی د هندوکش دشما لی سیمو تولو او لسی مشر انو او امیر انو دنیزك هغه بلنه و منله او قول ئې سر ه و کیء چی درا تلو نکی کال په دوبی کی به‌په گډ ه‌د عربود تیر ی کو و نکو سر ه په جګړ ه لاس پو ری کوی .

**۸۸ - ه ش** قتیبه د تالقان‌دامیر سر ه چی‌دنیزك سره‌ئې‌دعربو د تسلط پر ضد په‌اولسی
**۹۰- ه ق** اتحا دیه کی دګډون‌و عده کړې وه، په‌جګړ ه‌لاس پوری کیء، ده‌بر آزادی
**۷۰۸ - م** غو ښتو نکی ئې وو ژل‌چی د طبری په‌قول‌دڅلو رو فر سخو په‌او ږ دو کی ئې دو ژلو سو یو آ ز ا د ی‌غو ستو نکو جسد و نه‌و زړول ، او پخپله قتیبه دفا ر یا ب خواته وخو ځېد .ددو لت آ باد او شبر غان دا میر انو سره ئې روغه وکړ ه او په ډ ېر تلو ار د بلخ خوا ته‌و لاړ ،او هم‌ئې‌له نیشاپو ر ا و دخر ا سان له نو رو ا یالتو څخه ملا تړ( قوت الظهر) ر او غو ښت .



په همد ې‌کال دبلخ دبرمکیا نو دمشهو ری‌کو رنی نامتو نیکه « خا لد »دبر مك زوی و ز ېږ ېد ، او د ی دبر مکیا نو د ک اله لو مړی شخصیت دی چی تو لو مو رخا نو ېېږ ندلی ا و ددې کو رنۍ د لومړ ي‌نیکه په نامه ئې یا د کړی د ی .

د بلخ دبرمکیا نو کو رنۍ تر اسلام‌دمخه دبلخ دمشهور بود تون«نو بها ر»متو لیان‌و ه‌اوهر څوك چی به ددې بو د تون متو لی سو ، هغه ئې «بر مك » باله ، نو د ا سې اټکل کېږی چی « بر مك » د کو م تیا کلی سړی نو م نه و ، بلکه دیوه « کهول » نو م و .

**۸۹- ه ش** قتیبه ورو سته تر هغه‌چی‌دمرو ،فار یاب ، جو ز جا ن او تا لقا ن ا میر ان
**۹۱ -ه ق** ئې د ځان کړ ه،د هغه نوی ملا تړ سر ه ئې چی له شما لی خر اسا نه‌ورته
**۷۰۹ - م** ر ا رسېدلی‌و، پر بلخ یر غل وکیء،دبلخ‌سپهبد ته ئې هم ساته ورکړه، او دنیز ك دما تو لو د پا ر ه ئې د خلم ددر ې‌خوا ته لښکر و یو ست ،خو څنګه چی‌دنیزك لښکر دهغې درې‌په‌خو له کی په‌یو ه تینګه کلا کی پروت و، او قتیبه هم‌بله لار درې‌ته‌د ننوتلو دپاره نه درلودله اودهغه ځا ی په جغرا فیا ئې وضعیت هم ښه خبر نه‌و ، نوډ ېر ه سو د ه هلته پا ته سو،څوچی د هغې سیمې یو خا ئن خا ن چی « روب خان» نو مېده، دځانی

ګټې او د ځان ژغورلو د پاره ئې وروسته تر هغه چې له قتیبه څخه دامان قول واخیست
د نیزک د جنګي کلا هغه دننوتو لار ور وښووله چې د دریو بلې خواته وه، او د روب خان
د دې ملي خیانت په وجه د عربو لښکر وو کولای سوه چې د آزادۍ غوښتونکو او مړی دفاعی
سورچل ته لار ومومي، او پر سمنګان یرغل وکي. نیزک خپل درانه سالونه کابلشاه ته واېږول
او پخپله ئې د «ګرز» په غرنۍ جنګي کلاکي سورچل ونیو، د قتیبه وروره عبدالرحمن ورپسې
ولاړ، خو څنګه چې د ګرز دره هم بې له هغې یوې لارې چې هغه هم نیزک نیولې وه،
بله دننه وتلو لاره نه درلوده، نو د قتیبه لښکر تر دوو میاشتو پورې د ګرز په دوه فرسخی
کې پاته وو، او د هغې کلا د نیولو توان ئې په ځان کې نه لید، خو چې په آزادۍ غوښتونکو
د کوي ناروغی ګډه سوه او له بلې خوا ئې خوراکه مخ پر لږېدو سوه.

نو قتیبه یوه حیله وسنجوله او هغه داچې ډېره حلوائي پخه کړه او ډېر وډه وډه یو
سړی ئې د سلیم ناصح په واسطه د نیزک لښکر ته واستوله، او د نیزک سره ئې د دروغی
خبرې اترې پیل کړې، نیزک خپل باور څرګند نه کی، او د قتیبه هغه قول ئې یاد کی،
چې له ده سره ئې کړی و، خو سلیم ورته وویل: «زه تاته دامان قول او ډاډ درکوم
ایا ته ئې منې؟» نیزک ورته وویل: «یه!»

په دې وخت کې د نیزک د جګړه نو یوې ډلې چې په حلواخوړلو بوخت وه
ناري کړې:

«هو!»

نیزک چې د خپلو جګړه نو روحی کمزوري احساس کړه، نو د روغې تړون
او د قتیبه نیدلو ته ئې غاړه کښېښووله، مګر هغه وخت چې د قتیبه داستازی سره د قتیبه
سره د لیدلو د پاره له جنګي کلا څخه راووت، دستي د عربو د لښکرو د ګمارل سوو یو
جګړه نو له خوا چې په لاره کې ورته پټ وو، ونیول سو، او بندي ئې قتیبه ته بوت،
خو چې تر څلوېښتو ورځو بند وروسته د حجاج له خوا د ده د وژلو امر راورسېد،
او قتیبه د خپل استازی سلیم د هغو وعدو پر خلاف چې نیزک ته ئې ورکړې وې، نیزک
او د هغه ورور په دار غړه غړه کړه، او د نیزک سر ئې حجاج ته واستاوه، او هم ئې
د نیزک نژدې دوه زره آزادۍ غوښتونکي ملګري ووژل، او په دې توګه د عربو
د لښکر د تېري له مخې یو ډېر زړور آزادي غوښتونکي مدافع لیري کړه سو.

**٩٠ - ه ش** دخراسان او سیستان والي دیوسف زوی حجاج، قتیبه ته امر وکړ،
**٩٢ - ه ق** چې سیستان ته ولاړ سي، رتبیل سره وجنګېږي. قتیبه سیستان ته ولاړ،
**٧١٠ - م** او دهغه ځای خلګ او پوهان ئې په مهربانۍ سره ځان ته را وبلل،
او له بلې خوائې د رتبیل سره د جګړې د پاره یو غښتلی لښکر چمتو کړ، او د دې د پاره چې خپل اوږد مقاوسنګر تبیل ته وښيي، نو زجوړې کار ګر غوایي او د وه زره بز ګړوې د کرنې د سامان سره د ځان سره بوتله او چې د رتبیل لښکر ته نژدې سو، نو سمځکه ئې یوې کړه، تخم ئې و پاشه او رتبیل ته ئې داسې وروښوول چې ګواکې ژر بیرته نه ګرځي رتبیل هم روغه وړسره وکړه او تړون ئې وکړ چې د کاله به د وه میلیونه درمه ورکوي. قتیبه هم هغه ومنله او سیستان ته ستون سو، اوله هغه ځایه خراسان ته ولاړ.

**٩٢ - ه ش** قتیبه خوارزم ته ولاړ، اوفرغانه ئې ونیوله. او په هغه دې کال
**٩٥ - ه ق** دیوسف زوی حجاج مړ سو.
**٧١٣ - م** حجاج شل کاله امارت وکړ، او په دې موده کې ئې یوسل او شل زره انسانان ووژل، او داشمېر بې له هغو وژل سوو څخه دی چې دده د لښکر سره په جګړو کې وژلي سوي دي.

هغه وخت چې حجاج مړ سو، دده په زندانو کې پنځوس زره بندیان وو، چې دیرش زره ئې نر او شل زره ئې ښځې وې.

د روضة الصفا دمؤلف په قول دحجاج زندانو چتونه او بامونه نه درلوده، په ژمي پر بندیانو واوره او باران اوربدل او په دوبي ور باندې لمر ځلېد ئ.

**٩٣- ه ش** د عبدالملك زوی خلیفه مروان مړسو، او د عبدالملك زوی سلیمان
**٩٦- ه ق** داموی خلافت پر کرسۍ کښېنوست. په خراسان کې قتیبه د هغه
**٧١٤ - م** پر ضد پاڅېد او دسلیمان له خلافته ئې سرو غړاوه، ځکه نو په خراسان کې دعرب د جګړ نو یوه بله ډله بیادو کیع په مشرۍ چې د قتیبه رقیب و، د قتیبه په مقابل کې پورته سوه.

د قتیبه په لښکر کې اووه زره عجمي جګړن هم وو، چې مشر توب یې د خراسان دنامتو سالار «حیان خراساني» په غاړه و.

حیان چې ددوو عر بو سردارانو تر منځ اختلاف ولید، نو ده هم دملی احساساتو تر اغیزې لاندې خپلو عجمی جګړ نو ته وویل :

« عر بان دخپلو د یني او امرو پر خلاف یوله بله سره جنګیږ ی ، نو پر ې ئې بږ د ی ، چې یو بل سره ووژنې . خو تا سی ا ې عجمیا نو ! ولی د قتیبه دپاره ځان وژنی؟

آیا دا آفت ستاسې دپاره ګټور د ی ؟». هغه‌و ، چې تر هغه و رو سته عجمیان هم‌دوکیع پر خواسوه،او قتیبه ئې دیوو لسوتنوخپلوانو سره‌وو اژ ه،او دهغو سرو نه ئې‌سلیما ن‌ته‌وا ستو ل.

هغه و خت په شما لی خرا سان کې د عربو د جګړ نو شمېر دا ډو ل و :

| | |
|---|---|
| له بصر ې څخه | ۹۰۰۰ |
| له‌بکرڅخه | ۷۰۰۰ |
| له‌بنی‌تمیم‌څخه | ۱۰۰۰۰ |
| دعبدالقیس‌له‌ټبرڅخه | ۴۰۰۰ |
| له کو فی‌څخه | ۷۰۰۰ |
| له‌آزادسووعجمیانوڅخه | ۷۰۰۰ |
| داز دله قبیلې څخه | ۱۰۰۰۰ |

ټو ل : ۵۴۰۰۰تنه.

**۹۶ - ه ش** دعبدالملک زوی سلیمان دخراسان فرمان‌دابی‌سودالغدانی زوی وکیع

**۹۷ - ه ق** ته‌واستاوه ، وکیع یو هو لنا که سیاست را واخیست، په لږ جر م به یې

**۷۱۵ - م** دوژلو امر کاوه ، او دده سخته رویه داسې ځا ی ته ورسیدله چې یوه ورځ یې یونشه سړی ورته راووست ، ده سملاسی امر وکی، چې سر یې پرېکړ ی ، چاورته وویل چې دنشه سړی وژل نه واجبیږ ی ، بلکه باید دشلاخو په وهلو یې حد پر ځای سی ، وکیع ورته وویل:«زما سزا ورکول‌یې‌له تور ې، شلاخه‌اولرګی نه پیژنی».

دهمد ې تشدد له امله سلیمان‌تر لسو میا شتو وروسته وکیع عز ل کی، او پر ځای یې دمهلب زوی یزید خراسان ته را ولېږه او دهغه لوسړی کار داو ، چې‌خپل زوی مخلد یې دوکیع محاسبې ته وګوماره ، او هغه یې بندي کی، او ورته وېویل :

« دخدای مال‌را که !»

خو وکیع جو اب ورکی، چې :

« ایا زه دخدا ی خز انه دا روم ؟ »

بیا نو یزیدخپل زوی په خراسان کې د خان نایب پرېښوو ، او پخپله د ملو زرو جنګیا لیو سره ګرګان او دهستان ته ولاړ ، اوخپل وروړ مدرك یې د سیستان والي وټا کی.

**۹۵ ـ ه ش** دمهلب زوی یزید دخراسان والی ګرګان‌ته ورسید، د ګرګان خلکو

**۹۸ ـ ه ق** غره ته وتښتېدل، یزید ورپسې لښکر ویوست ،دوولس زره تنه یې ځینې

**۷۱۶ ـ م** ووژل ، او لوړه یې وکړه ، ترڅوچې دګرګانیانوپه وینوژرنده ونه ګرزوي

او په هغه ژرندو یې وړه ونه کړي. او له هغو اوړو څخه ډوډۍ پخه نه کړي او هغه

و نه خوري،ترهغو به‌له‌وژلولاس وا نه‌خلي ، خلك یې وژل‌اوو ینی یې‌بهولی ، خو ژرنده

نه خوځیده ، څوچې دیزید دمشیرانو په مشوره په وینو او به ګډې کړه سوې ، ژرنده په

وګرزیده ، اوړه یې وکړه او له اوړو یې ډوډۍ پخه سوه ، یزید وخوړه او خپله لوړه یې

پرځای کړه ، خوبیایې هم له ګرګانیانو څخه شپږ زره تنه سر یان او د سر یانو په تو ګه

خرڅ کړه .

**۹۶ ـ ه ش** دعبدالملك زوی خلیفه سلیمان مړ سو ، او پرځا ی یې یو ډېر عادل

**۹۹ ـ ه ق** او پرهیزګار خلیفه دعبدالعزیز زوی‌عمر دخلافت پرمسند کښېنوست.

**۷۱۷ ـ م** ده دخراسان او سیستان امارت دعبدالله حکمي زوی جراح ته وسپاره ،

اوهغه‌بیاله‌خپلې‌خوادمنذر زوی سباك ـ یا ـ سیال سیستا ن ته‌ولېږه چې ښه سړی او دپاك

زړه خاوندو ، اوده په‌وخت کې‌د سیستان خلك هوسا وو .

همدارنګه جراح د معمر یشکری زوی عبدالله ما ورأالنهر ته وا ستاوه چې هغه د چین

ترحدودو پوری پرمخ ولا ړ.

**۹۷ ـ ه ش** په‌دې کال دخراسان نامتو قهرمان ابومسلم خراسانی وزیږېد .

**۱۰۰ـه ق** دا دزیاتو مورخانو وینا ده، خو ځینې دابومسلم‌زیږ یدنه په (۱۰۲ ه ق ـ

**۷۱۸ ـ م** ۷۲۰ م) کال کې ګڼي .

همدا راز دابو مسلم خراسانی دزیږیدودځای په‌باب کې اختلاف دی، یوشمېر مورخان

دابو مسلم مسقط الرأس د افغانستان دشمالی سیمې دانبار دښار (اوسنی سر پل) د سپید زنګ

(سپید دژ ) کلی بولی ، ځینې یې د مرو د «ما خان » کلی ګڼي ، او ځینو هم اصفهان

لیکلی دی .

د پلار نوم یې «بنداد هرمزد» و ، او مورېې «وشیکه» یا «وسیکه» یا «وشیله» نومېدله.

دابو مسلم لومړی نوم «عثمان» و ، خو وروسته دامام ابراهیم په مشوره یې نوم «عبد الرحمن» سو.

ابو مسلم په ونه ګردی ، په بڼه غنم رنګه سلیح ، اوخوشرنګه متین ، دتیزو سترګو او پلن تندی او اوږدو ویښتانو او لنډو پونډیو خاوند و.

هیڅ کله یې تو کی نه کو لې ، او نه یې خندل سګردجګړې په وخت کې ، په لویو کاروا ولویوفتو حاتو یې هیڅکله خوښی نه ښرګند وله،او له خطرناکو پیښو ،او ددښمنا نو له بریښخه نه په قهر پدی ء او نه ویر جن کېدی ء .

عباسي خلیفه سأمون‌دده په حق کې ویلي دي چې :«دنړی دېرلوی پاچهان دري تنه دي چې ددولت درونډ بار ئې پراوړو وړی دی :

«اسکندر ،اردشیر ،او ابو مسلم » د خراسان ددې سترقهرمان کارناسی به په وروسته کلو کې را وړه سی .



په همدې کال کې د عبدالعزیز زوی خلیفه عمر خپل دوه تنه په کار پوه کارداران خراسان‌ته راولېږل چې یودنعیم زوی سپه سالار عبدالرحمن ، او بل دعبد الله قسری زوی عبد الرحمن د ما لیا تو په کار پوه و ، او د خراسان خلګو ته یې ولیکل :

« ای‌دخراسان خلګو !ستا سی‌دحربی چا رو دپاره سی د نعیم زوی عبد الرحمن،او ستا سی د ما لی چا رو دپا ره سی دعبدالله زوی عبدالرحمن‌وګومارل ـ خو د دوی سره د پېژندو سا بقه نه لرم ، یوازی دهغوخبرو په استنا د چې ما دد وی په باب کې اورو پدلی دي دوی سی وټاکل ،که ستا سی د خوښی سرسم‌وي‌نو دخدای‌شکر پرځای کیء، که‌نه وی نو له خدا یه‌سر سته و غواړیء ـ ولا حول و لا قوة الا با لله».



همدا راز په همدې کال کې‌داسلام د پېغمبر حضرت‌محمددا کا له کورنی ښځه‌دعلي زوی محمد چې دخلا فت‌مدعی‌و، او دا مو یا نو پر خلاف یې د آل عباس د خلا فت تحریک شروع کړی و ، یوه ډله مبلغین‌ئې‌دآل‌عبا س د خلافت د تبلیغ اوهغه خلا فت ته د خلګود بلنی لپا ره خراسان ته را ولېږل چې د هغی ډلې یو مخړی د طهمان هر وی زوی ابوعلی‌شبل و ، او د او یا تنو نو سیا لیو په‌نو مو یې لیکو نه را واستو ل اودهغو په وسیله یې خلګ خپل بیعت ته را و بلل . دا مځکه چې دعلي زوی امام محمد د خپلې‌بلنی د منلواو خپر پدلو دپاره‌خراسان‌خورا ښه‌سرکز باله،له همدې جهته یې‌دتبلیغی‌ډلې غړو ته‌ویلي‌وو ، چې :

« د کوفی خلګ شیعه ګان د ي ،دبصری او دبصری شاو خوا خلګ په عثمان ګر و هېدلی دي ، تل خپل ځانونه مظلو مان بولی او وا يی : « د خدای په بند ه هغه دی چې مظلو م او مقتو ل وي نه ظا لم او قا تل » .

د جز یر ې خلګ ټول خو ار ج او فر اری عر ب، په شکل عجم او مسلما ن خو په ا خلا قو کې مسیحیا نوته ور ته د ي، د شام خلګ یوا زی دآل سفیان تا بع او د آل مر وان پرستونکی د ی او دنو رو سره پخوا نی کینه او بغض لر ی ،خو د مکې او مد ینې پر خلګو دا بو بکر ا و عمر سینه غالبه ده او نو رو ته بې شه نه د ی پر یښی ، نوتا سی ا ې یا رانو ! یوا زی خرا سا ن ته مخه وکی ، چې خلګ یې د شمېر له مخی زیات او دز و راو ثبات او ز ړ ورتوب له مخی ټینګ دي .هلته پاك ټټیر و نه او سپېڅلی ز ړ و نه سو ندل کېږی چې ټول د تبلیغ منلو ته چمتو د ي او هری خو ا ته چې وبلل سی هغې خواته ځی که څه هم دباطل خو اوي .دوی غښتلی ځګر ن،روغ بد نو نه اوکروړ هیکلو نه ،هیبتنا که ږیری او بر یتو نه ا وډ ډ ږ غونه لري، لکه داچې ددوی ږغو نه له یوه بېر وو نکی ځایه راو زی، ځکه چې د پر رعب را و ستو نکی دي .

زه د ا سی پیش بینی کو م چې دنړی نو ر بخښو نکې د پو ه به د خر ا سان له ختیز ه ر و ښا نه سی ، خلګو ته به لار ه و ښیی ا و جها ن به رو ښا کړي ».

هغه و خت چې دا د ا عیا ن او مبلغان خراسان ته را و ر سېدل، دبنی تمیم د قبیلې یوه سړ ي د هغه و خت ا میر سعید خذ ینه په خبر کی ، ا میر د و ی و ر و غو ښتل ا و وې پو ښتل ، د و ی و ر ته و و يل چې د سو د ا ګر ی د پا ر ه ر ا غلی د ي ، او ځنګه چې ځینو خلکو ددو ی دو ینا تصد یق و کړ نو دوی نجات و مو ند .

**۹۸ -ه ش** عمر دعبدالعزیز زوی دبغداد خلیفه مړ سو،او پر ځای یی دعبدالملك زوی یزید **۱۰۱-ه ق** کښېنو ست، هغه خراسان او عراق دعبدالملك زوی مسلمه ته ورکړه ،او **۷۱۹ - م** مسلمه بیا دځان له خوا دعبدالعزیز زو ی سعید خراسان ته راو لیږه ، سعید ښکلی څهره در لودله او در نګه چوغې (قبا) او تاو سوېوو ېښتانو سره ډېر ښکلی ښکا ر ېده، ځکه خراسانیانو چې د ی ولید، و بو یل : « د ی لکه « خذ ینه » یعنې دهقانه - یا - د کور میرمن غوند ی ښکار ی ، او له همد ې جهته تر هغه ورو سته په « سعید خذ ینه » مشهو ر سو .

تبصر ه : د « خذ ینه » کلمه د پښتو د « ښځینه » سره چې د ننګرها ر په لهجه

« خځینه » ده ډېره نژ دې ښکاري ، نو ښایي چې دهغه وخت په خراسانیانو کې د پښتو کلماتو رواج درلود .



په همدې کال کې داسلامي فقه او تفسیر لوی پوهاند « ضحاک د مزاحم هلالي زوی » چې درې زره شاگردان يې درلوده د افغانستان په شمالي سیمه کې وفات سو .

۹۹ ـ ه ش دعبد الملک زوی یزید د بغداد د خلیفه خراسان او عراق او سیستان
۱۰۲ـ ه ق د هبیره زوی عمر ته ورکړه ، او هغه ښځینه ( خذ ینه ) سعید نومې له
۲۰ م خراسانه وروغوښت او پرځای یې د عمرو الحرشي زوی سعید
خراسان ته راولیږه ، خود مخه‌تر هغه چې ښځینه‌سعید له خراسانه ولاړسي، ده دخراسان
یو آزادې غوښتونکي او وطن پالونکي سالار ته چې« حیان خراساني» نومید په شیدو کې
زهر ورکړه او هغه يې وواژه .

دا ننگيالي سالار د قتیبه په لښکر کې دا ووزرو عجمي جگړ نو مشرو ، او دخپل هیواد
په گټه يې خپل عجمي جگړن د قتیبه له لښکر څخه بیل کړي او ځانته ورا ړولي وو .
( ځینو سورخانو د عمرو الحرشي دزوی سعید راتگ خراسان ته په ( ۱۰۳ ه ق
ـ ۷۲۱ م ) کال کې گڼلي دی ).



او په همدې کال د سیستان خلک دا موي دولت پرخلاف پورته سوه .

۱۰۱ـ هش د عمرو زوی سعید له خراسانه معزول
۱۰۴ـ ه ق او پر ځای د سعید کلابي زوی مسلم د هبیره د زوی
۷۲۲ ـ م عمر له خوا وټاکل سو .



۱۰۲ـ ه ش د سعید کلابي زوی مسلم له آمو څخه پوریووت او دآمو د ها
۱۰۵ـ ه ق خوا دخلکو سره یې دشپږ وزرو سر یانو او مینځو په اخیستلو روغه
۷۲۳ ـ م وکړه او تر هغه‌ورو سته مروته وگرزېد ، او د سیار زوی نصر
يې د تخارستان حاکم وټاکه .



په همدې کال کې دعبد الملک زوی هشام د امویانو دخلافت پر مسند کښېنوست.

۱۰۳ـ ه ش د عبد الملک زوی هشام خراسان او عراق او سیستان د عبدالله قسري
۱۰٦ـ ه ق یا قشیري زوی خالد ته ورکړه ، هغه په عراق کې میشته سو ، او
۷۲۴ ـ م خپل ورور اسد يې خراسان ته راولیږه، اسد دريې کاله په خراسان

کی پاته سو ، او تر هغو چې خالد ژوندی و ، بل څوک د والی په توګه خراسان ته را نغی ، اسد یو متعصب او خود خواه سړی و ، د عربو زیات سالاران لکه ،د نعیم زوی عبدالرحمن ، او د سیار زوی نصر ، او د درهم زوی بحر او نور یې ونیول ، په شلا خویې ووهل ،سرونه او ږیری یې وورخریل ، لاسونه یې ورنال کړه او ټول یې خپل وروړته ولیږل .



او په همدې کال کی دهماد زوی حیله دخالد له خوا سیستان ته دوالی په حیث واستول سو، او یو کال هلته و .

**۱۰۴ - ه ش** دعبدالله زوی خالد دخراسان امیر له خپلی خوا دعریف (یاغریف)

**۱۰۷ - ه ق** زوی یزید سیستان ته ولیږه ، او یزید بیاد ابی کشه زوی بلال دزابل

**۷۲۵ - م** ر تبیل ته واستاوه، خور تبیل هغه ونه مانه او بلال بیرته سیستان ته وګرزید .

او هم په سیستان کی د سیستان خلګو دعربو امیر شرط (امنیه قوماند ان) چی بشر الحواری نومید په زرنج کی وواژه او سیستان دسیستان دخوارجو په لاس کښېووت ،او د عریف زوی یزید مجبور سو، چی دهغه ځای قضاهم د سیستان دحدیثو لوی عالم دعبد الله زوی سعمرته وسپاری .



په همدې کال کی دعبدالله زوی اسد چی د خالد له خوا په خراسان کی والی و ، پر غرجستان پرغل وکیء ،اود هغه ځای مشرچې «نمرون» نومید مسلمان سواو داسد سره یې روغه وکړه ،بیانو اسد دغور پرغر وچپاو جوړ کیء اود هغه ځای د خلګو مالونه یې چور کړه ، بیا یې نوخپل نظامی مرکزله «بروقان» څخه چې دبلخ په دوه فرسخی کی و، دبلخ ښارته رانقل کیء اود بلخ دښار په بیاودانـو لولاس پـوری اودبلـخ د«اسدآباد» ښاریې ودان کی اود بلخ دښاردودانی نوری چاری یې دبلخ یوه مشر ابوحالدبرمک ته وسپارلې ،او په دې توګه دبلخ ښار ترسرووروسته دخراسان او ساورا النهر لپاره د عربو اداری او نظامی قواو دو هم مرکز وګرزید. خوسره له دې هم اسد دبلخ دخلکو په منځ کی ښه نوم نه درلود ،اودی یې «تور کارګه باله » .

**۱۰۵ -ه ش** دعبدالله زوی خالد دسیستان حکمرانی دعبدالله شیبانی زوی اصفح ته

**۱۰۸ - ه ق** ورکړه ،اود حجش زوی محمد یې دسپه سالار په حیث ورسره ولیږه .

**۷۲۶ - م**



په همدې کال کی دبلخ اموی حکمران دعبد الله زوی اسد د ختلان دامیر او د ترک د خاقان سره دجګړې په نیت هغی خواته ولاړ ،خوماته یې وکړه ،ته بیرته بلخ ته راوګرزید، اوبلخیانو

په هغه سلنډی وهلې اودبلخ کو چنیانو به داسی ناری او چتولې :

از ختلان آمذ یه — بـر و تـباه آمـذ یـه
آوار با ز آمذیه — خشک نزار آمذیه (۱)

داتوته ددری ژبیداشعارولهلر غو نیو تو تو څخه پاته ده .

**۱۰۶ - ه ش** یو چینی گرځند وی چی «هو ـتچه او» Hauei-Tche-ao نومید
**۱۰۹ - ه ق** افغانستان ته راغی ءچیددهدسیاحت نامی‌نقل‌یی‌د« تواین هوانگ» په
**۷۲۷ - م** سموڅوکی موندلی‌دي ،اودیدباميان پهباب داسی لیکی :

«دباسیان پاچادبل هیو ادترلاس لاندی نه دی ،دپلیو اوسپرو ډېر غښتلی لښکر لری،او نور پاچهان نهسی کولای پرده یرغل وکی » .

✲ ✲ ✲

په همدې کا ل دعبد الله شیبانی زوی اصفح پهسیستان کیدعربو حکمران دزابل درتبیل جگړې ته‌ولاړ ، څه موده پهبست کیو ،څو درتبیل سره ترسختو جگړو وروسته ما ته وکړه، ډیر تاوان ورو اوو ښت ،اوبی‌نتیجې سیستان ته‌وگرز ید، اوځنگه چې‌پر سر تپی سو ی و، چې سیستان ته‌ورسید مړسو ،اود عبدالله زوی خالد دهغه پر ځای د حجر ا لکند ی ز وی محمد سیستان تهرا و لیږ ه .

**۱۰۷- ه ش** دعبدالملک‌زوی خلیفه هشام‌خراسان د عبد الله‌زوی اشرس تـه ورکیء
**۱۱۰ - ه ق** چې یو فاضـل‌سړی و،خو خر اسان تهچېر اغیء خوی یېو گرزېد ،
**۷۲۸ - م** پهنارو اوسرسو ، پر خلگویېډېرظلمونهاو ستمونهوکړه ،څو چېدخر اسان خلک ورته پورته‌سوه ، اوددهلهلاسه هشام ته‌فر یادي‌ولاړل، نو هشام دی معزول کیء.

**۱۰۸- ه ش** د عبدالله زوی خالد سیستان د بلال بردة زوی او ابی موسې ا شعری
**۱۱۱ - ه ق** نمسی عبد الله ته ورکیء ، عبد الله د ښه خوی خاوند و ، او د خلگو
**۷۲۹ - م** په منځ کې یې دعدل کمبله و غوړوله، په زرنج کې‌یې مصلی ودا نه کړه ،چې‌دا مصلی‌د (۳۳۵ ه)کال‌ترشا وخوا پوری‌هم پهزرنج کی‌آباده وه ،اودقضا منصب یې دحسین زوی‌بوحریر عبدالله‌ته‌چې‌دحدیثو لهسترو راو یانو او صالحو پوهانوڅخهو ،وسپاره، او په همد ې کال پهسیستان‌کی خو راسخته زلزله وسوه، چې په هغی سختی‌زلز له دچاپه‌یادنه‌وه .

(۱) په بله نسخه کې : بیدل فرا ز آمذیه

په همدې کال د عبد الرحمن زوی جنید د قیمتی جوا هرو دوې نفیسی غاړ گی داسلام خلیفه هشام او د هغه سپر منی ته ورکړې چې دهغو په بدل کی هشام دخر اسان حکمرانی جنید ته و سپارله .

**۱۰۹ـ ھ ش** د عبد الرحمن زوی جنید د هشا م له خوا د لسو زرو بصری جگړ نو
**۱۱۲ـ ھ ق** سره چې سا لار یې د مسلم زوی عمر وو ،او دلسو زروکوفی جگړ نو
**۷۳۰ـ م** سره چې سا لار یې دنعیم زوی عبدالرحمن و ، خرا سا ن ته راغیء ،
ده دخپل لښکر لپاره له عرا قه دیرش زره غشی او دیرش زره سپرونه راوړ ی‌وو .

ده دحریم زوی عماره داتلسو زرو جگړنو سره تخا رستا ن ته ولیږه ، چې و ر پسې یې دبسام لیثی‌دزوی ابراهیم په سالاری‌لس زره نور عسکر هغی خوا ته وا ستول ، خو قا طعی نتیجې ته ونه رسېد ل ، مگر په ماوراًالنهرکی چې دتـر کـ د خاقان سره‌و جنگېد خا قان یې مات کیء، څوچې په(۱۱۶ هق)کال په‌سرو کې‌مړ سو



په‌همدې کال‌دافغانستان یو نامتو محدث‌او فقیه« مکحول‌کابلی » دابی مسلم سهراب زو ی او دشاذل‌نمسی په‌دمشق کی و فات سو .

دی‌په‌کابل‌کی ز یږ ید لی او تر ۳۶ ه وروسته د عبد الرحمن بن سمر ه له خوا له کابل څخه د بند یا نو په ډله کی مصر ته بو تله سو ، هلته آزاد سو ، فقه یـې و لـو ستله اود حد یثو دزده کړې د پاره عراق اوسدینې او دمشق ته ولا ړ او هلته په (۱۱۲ ه) کال وفات سو . خو ځینو سور خانو دده مړ ینه په (۱۱۸ ه ) کال کې گڼلې د ه .

دز هري په قول په خپل وخت کې په‌فتوا کې ترده یو ه سړی نه و ، او څنگه چې کابلی و ، د نورو پښتنو په شان یې د«قاف» مخرج په «کاف» ، اود«حا» دا یې په «ها»اد ا کاوه . دی داسلام له خورا نوسیا لی، فقه هاو وڅخه تېر سوی دی .

**۱۱۳ـ ھ ش** خلیفه هشام دخراسان ولایت دعبدالله هلالی ز وی عاصم ته‌و سپا ره ،
**۱۱۶ـ ھ ق** خو هغه دافغانستان دیوه آزادي غوښتو نکی مشر حا رث دسریج دزو ی
**۷۳۴ ـ م** سره مخا مخ سو .

حارث‌دافغانستان په‌فاریاب(او سنی‌اندخوی )کی پور ته‌سو ، او دخلیفه خلع یې‌اعلان کړه ، تور کالی یې‌واغو سته،تور بیرغونه یې پو رته کړه‌اود شلورو زرو جگړنو سره یې پربلخ یرغل‌وکیء دبلخ اموی‌حکمران‌دسیار زوی‌نصر دلسو زروجگړ نوسره ئې په مخ ودر ید ،خو ما ته یې‌و کړه،او

حارث بلخ ونیو ،او دجوزجان ،فاریاب، تالقان اوسرو پر ټولو ښارو یې لاس برسو ، او لښکر یې شپیتو زرو تنو ته ورسېد ، اوپر سرو یې حمله وکړه، خوپه دې جګړه کې مات سو، اودېر جګړن یې د آ سو په سیند کې ډوب سوه .



په همدې کال عراقین او خراسان او سیستان دعمر زوی یوسف ته ور کړه سو ه ، او هغه د عاصم عقیلی زوی ابراهیم سیستان ته ولېږه چې ښه عادل سړی و .

**۱۱۴ - ه ش** د خراسان ا سارت بیا د عبد الله زوی اسد ته وسپاره سو او هغه د
**۱۱۷ - ه ق** شلو زرو جګړ نوسره د سریج دزوی حارث او دآل عباس دداعیانو ددفع په
**۷۳۵ - م** غرض راو خوځېد ، په ترمذ کې ئې حارث مات کیء ، او هم یې دآل عباس دد اعیانو یوه ډله جګړن ونیول او و یو ژل.



په همدې کال د افغانستان یو ډېر نامتو فقیه او محدث چې په مدینه کې د تابعینو له امامانو څخه ګڼلی سوی و ، مړ سو.

داامام په ابو عبد الله نافع کابلی مدنی مشهور و ، چې تر ۳۶ ه کال وروسته د سمر ه د زوی عبد الرحمن له خواله کابله دمر ییانو په ډله کی بیول سوی و ، او د عمر د زوی عبد الله له سوالیو څخه و چې په مدینه کی یې وده سو ندلې وه ، او له ثقه او داعتماد وړ محدثانو څخه بلل سوی و ، چې اموي خلیفه د عبدالعزیز زوی عمر د ی دسننود تد ریس لپاره مصرته ولېږه . ده له مشهو رو ا صحابانو ،لکه : ا بو سعید خد ری ، او دعمر زو ی عبدالله څخه دحدیثو روایت کړی و، او بیاله ده څخه زهری، ایوب سختیا نی اودانس زوی مالک روایتونه کړی دی.

**۱۱۵ - ه ش** دیزید زوی عمار دآل عباس دپیرو انو په مشرتوب داموییانو د خلافت
**۱۱۸ - ه ق** پرخلاف دتبلیغ لپاره خراسان ته راغی ،ده په مرو کی خپل نوم واړاوه اوځان
**۷۳۶ - م** یې په «خداش» مشهور کړ ،خوپه خرا سان کی اموی و الی دعبدا لله زوی اسد دهغه لا س اوژبه ورپرېکړه اوپه سترګو یې ړوند کړ .



په همدې کال دخراسان والي اسد د بلخ په ښار کی مرکز ونیو، اود حکومت د یوا نو نه یې هغه ځای ته یووړه ، له هغه ځایه یې پرتخارستان یرغل وکړ اوهغه یې ونیو.

۱۱٦ - هـ ش دخراسان والی اسدله اوو زرو جگړنو سره دترکـ د خاقان لښکر په
۱۱۹ - هـ ق ماوراء النهر کی مات کیء،او (۱۵۵) زره پسو نه اونو رشاروی یې په
۷۳۷ - م غنیمت ونیول ،خود جوزجان د «ورد» نومی ځای پهجگړه کی دباد اوواوری
توپان دعربولښکر چیمشر یې د حنظله بهرانی زوی جعفرتباه کیء او تیښتی تهاړسو .



په همدې کال دخراسان والی اسدیو بل لښکر دعمرو خزاعی د زوی مصعب په مشری ختلان ته واستاوه ،او دهغه ځای آزادی غوښتونکی امیر «بدر طرخان بامیانی» یې دامان په وعده ځان تهور وغوښت ،بدرطرخان همدهغه پر وعدهباور وکیء ، اوله یو میلیون درهمو سره اسدته ورغیء ؛ خواسد ورته وویل :

«تهدبامیان غریب سړی یې له ختله ووزه» .
بدر طرخان جواب ورکیء :

«ته خرسان تهدلسو کوچنیو اوښا نوسره راغلې، اوکه اوس لهدیځایه ولاړسی ستاما لونه پنځه سوه اوښان نهسی وړای - نوساچی خپل زلمیتوب دلته تیرکړیاو دامال سیپه توره گټلی ځنگه پهتش لاس لهدی ځایه ووزم ؟»

اسدلهدیجوابهسور اوشین سو، اوسره لهدی، چې دامان وعده یېورکړیوه، هغه یېو واژه .

۱۱۷ - هـش دخراسان والیاسد دمهرگان دجشن پهورځ پهداسی حال کی چېدهرات
۱۳۰ - هـ ق لهحاکم ځخهیې دیومیلیونو درهمو پهقیمتسوغاتو نهمنل ،نورسهدامرود
۷۳۷ - م میوه یې دهرات دحاکم خواته ارتاوکړه ، لهدی ارتا وهسره د ننه تیپ وسپنهل سو او لههغه ځخه دبلخ په ښار کی مړسو .

داسد ترمړ ینی وروسته دهشام لهخوا دټول خراسان فرمان دامارت دسیار دزوی نصر په پهنامه بلخ ته راو استول سو، اوهغه دابومسلم خراسانی دراتلو تروخته دخراسان امیرو .



پههمدې کال دماهان زوی بکیر دآل عباس دخلافت دمدعی دعلیدزوی محمد لهخوا خراسان ته راولیږل سو، اولههغه سره دعباسیانو خلافتته د بلنی د شعار رنښه د علی د زوی محمدلکړه وه ،نوځکه پهخراسان کیدآلعباس ټولپیروان وربانديراغونډ سوه .

۱۲۱ - ش ابومسلم خراسانیچیغوښتهیېدامو یانو اوعباسیانو ترمنځ لهاختلافاتو
۱۲۴ - هـ ق ځخهدخپلو خلگو پهگټهاودعربولهسلطیځخه دآزادیدو پهلاره کی
۷۴۱ - م اوبیادیوهخراسانی دولت دجوړولو دپاره استفاده وکړي ،راپاځید

او داسې تصمیم یې ونیوه ، چې لومړی د عباسیانو په واسطه د اموي دولت تسلط له خراسانه لیرې کړي ، او تر هغه وروسته د خپلو خراسانیانو په ملاتړ اوهوت خراسان د عباسیانو له سلطې څخه هم وژغوري ، ځکه چې د امویانو پر ضد عباسیانو دسرمتي لاس ورکړی ، کوفې ته ولاړ او هلته یې د محمد عباسي د زوی امام ابراهیم سره چې د پلار تر مړینې وروسته د عباسیانو امام و ، وکتل ، او خبرې یې ور سره وکړې ، د اموي خلافت پر خلاف یې تړون وکړی ، او «په خراسان کې د آل عباس د طرفدارانو د امیر» په عنوان بېرته خراسان ته راغی ، او د امویانو پر ضد یې په کار لاس پورې کړی .

**۱۲۲ ـ ه ش**
**۱۲۵ ـ ه ق**
**۷۴۲ ـ م**

د زید زوی امام یحیی چې د حضرت علي د زوی امام حسین کړوسی کېده، او د اموي عمالو د ظلمو او ستمونو پر خلاف پاڅېدلی و ، او په خراسان کې یې ډېر پیروان درلوده ، د دې کال د برات په میاشت د جمعې په ورځ په هغه جګړه کې د محمد زوی سورة په لاس شهید سو ، چې د احوز هلالي له زوی سلم سره یې د جوزجان د ارغوی (اوسني قراغوی) کلي ته نژدې وکړی ، او هدیره یې د « امام خورد » په کلي کې ده چې د اکلی د اوسني سرپل د ښار ختیزې خواته یو نیم کیلومتر لېرې پروت دی ، امام یحیی وروسته تر هغه چې پلار یې امویانو وواژه ، خراسان ته پناه راوړه او په بلخ کې د عمرو د زوی حریش په کور کې پټ سو .

ولید د یزید اموي زوی د خراسان والي نصر د سیار زوی ته ولیکل چې امام یحیی ونیسی . نصر د بلخ حاکم عقیل ته امر وکړی . عقیل حریش را وغوښت او شپږ سوه شلاخې یې ووهه ، خو حریش د امام یحیی څرک په لاس ورنه کړی ، خو چې قریش د حریش زوی د خپل پلار پر مرګ وېرید ، او امام یحیی یې د هغه له ملګرو سره د بلخ حاکم ته په لاس ورکړی او هغه د سرو په کهنډز کې بندي کړی ، بیا د ولید له درباره د ده د خلاصېدو امر راورسېد ، او د سیار زوی نصر دوه زره درهمه او دوې غاترې ورو بخښلې ، امام یحیی له بلخه سرخس او بیهق ته ولاړ ، او د اویاتنو یا په بل روایت له یوسل اوشلو تنو سره د نیشاپور حاکم د زراره زوی عمرو ته پورته سو ، چې لس زره تنه لښکري درلود ، خو خراسانیانو له امام یحیی سره جګړه ونه کړه ، د عمرو لښکر ماته وکړه ، او پخپله ووژل سو ، امام یحیی د هرات او سرخس او بادغیس خوا ته مخه وکړه ، خو چې د سیار زوی نصر خپل لښکر د احوز هلالي د زوی سلم په سالارۍ د امام د مقابلې لپاره واستاوه ، او امام یحیی یې د جوزجان په جګړه کې وواژه .

۱۲۳ - ھ ش حرب دقطن هلالي زوی دخراسان اميرعبدالله دعمر دزوی‌له خوا د
۱۲۶ - ھ ق سیستان والي وټاکل سو . خوځنګه چي په همدې کال کې د معاويه
۷۴۳ - م زوی عبدالله‌چي دآل محمد(ص) له‌داعیانو څخه‌ؤ ، په‌عراق کي پاڅېد،
اوترهغو‌ځګړو وروسته‌سیستان‌ته‌راورسید،اوحرب‌دقطن زوی‌ونه غوښته چي‌له هغه‌سره وجنګيږي،
نوځکه یې‌سیستان داشعر زوی سوارته وسپاره ، او‌پخپله له‌سیستانه‌ولاړ .

حرب‌دقطن زوی شه سړی‌ؤ اودسیستان خلک ورځني ډیر خوښ وو ، او چې د خراسان
اميرعبدالله دعمر زوی‌په‌دې‌جرم‌دی‌بند کیء چي ولې‌دمعاويه د زوی‌عبدالله سره و نه جنګيد ،
نوله سیستانه یوه ډله شیخان اوسخ روبی دخراسان اميرعبدالله ته په عذر ورغلل او حرب
یې له‌بنده خلاص کیء ، اوبیرته یې سیستان ته بوت .

۱۲۴ - ھ ش ابومسلم خراساني دهیشم زوی مالک‌له ډېرشو زرو ځګړ نو سره‌سیستان
۱۲۷ - ھ ق ته ولېږه ، اوهغه‌داموي حکمران هیشم د عبدالله له زوی څخه چې
۷۴۴ - م دېرش زره شامي سپاره یې درلوده، سیستان ونیو ، او وروسته‌تر هغه چې
بوسیلیون درهمه‌یې څېنې واخستل ، هغه یې ېربهود ، چې‌شام ته ولاړسي .

۱۲۵- ھ ش ابو مسلم خرا ساني دبوې‌ډلي خر اسانیانو سره حج‌ته‌ولاړ،او په مکه کي
۱۲۸-ھ ق یې له امام ابراهیم‌سره چې یې دعباسیا نو داامامت ادعا درلود له،ولیده او
۷۴۵ - م تړون یې ورسره‌نوی کیء.امام‌ابر اهیم خپلوخرا ساني پیروانوته‌وویل:
«ما یه دې‌کار کي‌ډېر فکرکړی‌دی،خو ترابو مسلم سی‌ددې کارلپاره بل‌وړسړی ونه‌موند،
ځکه چې د کثیر زوی سلیما ن‌اسارت‌ونه مانه، ویویل‌چې زه دوه تنه هم نه‌سم اداره کولای
او دسلمه زوی ابر اهیم هم له‌دی‌کاره اوپه‌وکیږله ،نوله دې جهته می‌عبدالرحمن (ابو مسلم)
په‌خر اسان کي خپل نایب وټاکه، اوتاسي باید دده‌اطاعت‌اوسر سته وکیء».

خر اسانیا نو ومنله ،بیا نوامام ابراهیم‌دخپلونورو خبرو‌په ترڅ کي ابو مسلم ته داتوصیه
هم وکړه :

«که وېي وژلای سې ، په‌خراسان کي‌چي هرڅوک په‌عربي ژبه ونه غږيږي هر وسر و یې
وژنه ،هرکوچنی ماشو م چې‌پنځه لو یښتي‌قدهم‌ولري اوستهم وي‌باید مرګ‌ته وسپارل سيء
هغه و، چي ابو مسلم خراني دامام ابراهیم له‌خوا خر ا سان ته را ولېږ ل سو ،او امام ورته
بو نیاک ورکیء چې‌په هغه کي یې دخراسان خپل ټول پیروان،دابومسلم‌اطاعت ته رابللي وو.

اوپه همدې کال دعمروزوی سعید ته دخراسان دامیر عبدالله بن عمر له خوا دسیستان حکومت و سپاره سو ، چې هغه دهمدې د محرمې په میاشت سیستان ته راغی ، خو په سیستان کې د بنی تمیم او بني بکر قبیلو ترمنځ سخته خونړی شخړه رو انه وه ، ځکه نو یوازی د بنی تمیم قبیلې اعرابو د هغه اطاعت ومانه ، او د بنی بکر قبیلې یې له اطاعته سرو غړاوه .

څنگه چې په هغه شخړه کې او یا تنه بو ډا گان هم ووژل سو ، نو یې ځکه هغه پېښه په عربی ژبه «وقعة الشيوخ » و بلله .

**۱۲۵ـ ه ش** درو ژ ې په پنځه و یشتمه د پنجشنبې په شپه ابو مسلم خراسانی دمرو

**۱۲۹ـ ه ق** دسپید نگ په کلی کې تو ر کالي وا غوستل ، دلوی اور لمبې ئې پو رته

**۷۴۶ ـ م** کړ ې ، او د هغو لمبو په رو نا کې ئې دوه لو أ د «ظل» یعنی سیو ری په نامه ،

د غور لس گزی نیزې پر سر ، اوبل تور بیرغ د «سحاب » یعنی اوریځې په نامه د د یرلس گزی نیزې پر سر ، چې دواړه امام ابراهیم ورته را لیږلی وو ، په هوا کې ور پورل ، او دآل عباس د غوښتونکو په ورانديئې پراسلامي خلافت دعباسیانو کښېنول او دا سوی خلیفه گانو ایسته کول په ډاگه اعلان کړه ، او خپل ځا ن ئې دخراسان شهنشاه وباله ، اوخپلوملگر و ته ئې وویل :

«څنگه چې تاسی مظلو مان وا قع سوی یاست ، او د همدې دپا ره په دې لار کې جنگیږی ، نو خدای به سو بر ی په برخه کړي» .

بیانو ابو مسلم د لښکرپه تنظیم اود نظامی ا ستحکاما تو په جوړولو لاس پورې کې ، د خرا سان له آزادي غوښتو نکو او هغو خلکو څخه چې دا سویانو دحا کمانو له خوا و ر باندی ظلمونه سوي وو ، او دعباس د کو ر نی له طرفدار انو څخه ئې یو منظم لښکرجوړ کې ، اوهم ئې تر هغه ورو سته چې د سپید نگ حصار ئې ټینگ کی ، د «ماخان» پر کلی ئې بوږورخندق را و گر ز او ، چې فقط دننو تو دوې لارې ئې درلو د لې اود هری لار ی د ښار لودپا ره ئې خپل یو ا عتمادی امیرو ټا که .

دلښکرسا لاری ئې دهیثم زوی ابو نصرمالک ته ور کړه ، او عمومی ښارنه او ساتنه ئې ابو اسحق ته وسپار له ، دلښکر پر د یوان ئې د مظفر زوی کامل مقرر کې ، او دقضا اودلمانځه دا ما ست او و عظ پر منصب ئې د سجا شع زوی قا سم کښېناوه .

لومړنی سری چی دابومسلم تورېيرغ وسانه اوډ. اموياتوخلع ئې اعلان کړه د «نسا» په ښارکی دعبدالله زوی اسید و، تر هغه وروسته د مرورود خلکو اود مرو دښارا وسېدو نکو دابومسلم بلنه ومنله، تور بیرغونه ئې پورته کړه او دابومسلم دلښکر سره گډ سول.

ابومسلم چی داموي دولت دگومار لوحکمرانانوسره جگړې ته چمتوسو، نو لومړی ئې په خراسان کی داموي دولت لوی حکمران دسیارزوی نصرته فرمان واستاوه او هغه ئې دعباس دکور نی سره بیعت ته را وباله، خو نصرسیارد بلنی د منلو پرځای یو لوی لښکر دخپل یوه اعتمادی سړی یزید نامی په مشری د ابومسلم مقابلی ته ولېږه، او ابومسلم هم د هیثم خزاعی زوی مالک، اود قیس‌زوی مصعب دآزادی غوښتو نکو د لښکر سره د یزید مخی ته واستول، چی د «آلین» په کلی کی ددواړو خواوو ترمنځ جگړه ونښته، د یزید لښکرمات او پخپله یزیدونیول سو، خو ابومسلم هغه بیرته ایله کړ او نصرسیار ته ئې واستاوه، یزید چی نصرته ورغی نو دابومسلم او د هغه دپیروانو په باب ئې داسی ورته وویل:

«د ابومسلم پیروان خلک دخدای در سول اطاعت ته بولی، او کارئې په د پړې چټکی پرمخ ځی، او که می ته بادارنه وای نو هرومرو بیرته به را تلم او د هغو سره پاته کېدم.» ابومسلم دخپل دیوان مشر ته امرو کړ چی د جگړنونوسونه، دپلرو نوسونه، د کلیو نوسونه او دهغو نسبونه او شمېر دی په دیوان کی ولیکی، شمېر ئې او وزرو ته ورسېد، ابومسلم هر یوه‌ته‌لومړی یې پلادري زره‌در همه او بیا ئې څلورزره درهمه ورکړه.



دهمدې کال د ذیقعدې په لومړی نېټه دابومسلم یوسالار د خزیمه زوی‌خازم د مرورو دحاکم دجعفر زوی بشر چی دنصرسیار له خوا مقرر و، وواژه، او ددې بری زېری ئې ابومسلم ته ولېږه.



بیاد همدې کال په پای کی دنعیم ضبی زوی نضر دابومسلم‌له خواهرات ته واستول سو، او هغه هرات داموي حکمران د عقیل لیثی‌زوی عیسی له لاسه ویوست، پخپله عیسی دنصرسیار خواته وتښتېد، او د هرات د ابومسلم گمارلورته په لاس ورغی.

ابومسلم چی دو غلو ښت ورځی په سپید نگ کی تېرې کړې،بیائې نو خپله‌لښکرگاه

د همدې کال د ذیقعدې په ۲۱ دچارشنبې په ورځ د «ماخان» یا «ماخوان» سیمې ته یووړ.

**۱۳۶ - ه ش** دجمادی الاخر په یو وبشتمه د پنجشنبې په ورځ ابو مسلم
**۱۳۰ - ه ق** د مرو ښارته چې د خراسان دارالامارة و، ورسید ـا و د سیار
**۷۴۷ - م** زوی نصر چې په خراسان کې د اموي دولت والي و، له مرو

څخه و تښتید، او هر څو مره چې ئې اموي دربار ته ولیکل چې:

«زه په دی ابرو کې سوځو نکی لمبې وینم، که د قوم پوهان هغه و نه وژني او نوری لاهم بلې او پورته سي، نو لرګی به ئې د غټولو بدنو هډو کې وي. کشکې زه پوهیدلی وای چې بنی امیه و یښ دي که بیده؟

که زموږ قوم بیده وی ورته ووایاست چې پورته سئ دپا څیدو وخت دی» خو داموی دربار هڅه و نه کړه، یوازی اموی خلیفه مروان په جواب کښی د و مرې ورته ولیکل:

«هغه پیښې چې حاضر سړی ئې وینی غایب سړی ئې نه سی لیدلای، نو څنګه چې پوهیږې او کولای سی، دد ې درد درمان وکه».

دا جواب چې نصر سیارته را ورسید نو خپلو ملګروته ئې وویل:

«ستاسی د بادار له دې جوابه څرګند یږي چې بر ی به ئې په برخه نه سی».



په همدې کال د سیستان آزادی غوښتو نکی هم پورته سوه، چې شمېر ئې پنځوسو زرو ته رسیده، او خپل حکمرانان ئې یوپه بل پسې ټاکل، او دا پېښې تر (۱۳۱ ه ق = ۷۴۸ م) کال پورې په سیستان کې جاري وې.



او په همدې کال د کعب زوی موسی دابو مسلم خراساني له خوا ابیورد ته ولیږل سو، او هغه ځای ئې ونیو، او همدا رنګه ابوداؤد خالد دابو مسلم له خوا دبلخ په نیولو مامور سو، او هغه په جوزجان کې د عبدالرحمن قشیری دزوی زیاد دبلخ د حاکم سره وجنګید، د بلخ حاکم ماته وکړه، ترمذ ته وتښتید، او بلخ هم دابو مسلم دګومارلو په لاس ورغی.

**۱۲۷ - هـ ش** ابو مسلم خراساني دافغانستان تولي هغه سيمې چې اسلام ئې
**۱۳۱- هـ ق (۱)** منلې وه، دامويي دولت له تسلط او اداري څخه وژغورلې او
**۷۴۸ - م** آزادي ئې کړې، او پخپله له سرو څخه نيشاپور ته ولاړ

او له هغه ځايه دابو مسلم لښکر د بلخي برمک دنمسي او دخالد د زوی قحطبه په مشری د ايران خاور ی ته ننوو ت او تر اصفهان او همدان او نهاوند پورې پرمخ ولاړ.

هغه وخت چې خراسانيان د شاميانو دخورا زيات لښکر سره چې دعراق او ايران دامير يزيد د عمر د زوی له خوا دابو مسلم د پوپناکولو دپاره راليږلی سوي و، مخامخ سول، د شاميانو له جنګی استعداده او د هغو د لښکر له زيا تو الی څخه ابرغوندي پريشانه ښکاره بدل، خو بلخي قحطبه خپل لښکر را غونډ کړ اوپه يوه ډېره اغېزه ناکه وينا ئې د هغو پريشاني په هيجان بدله کړه او ورته و يويل:

«ای د خراسان خلکو! ايا تاسې پوهيږ ی، چې دڅنګه قوم سره مخامخ يا ست او ور سره جنګيږ ی؟

دوی د شام خلک او د هغه قوم پاېخور د ی چې د خدای کورته ئې اور اچولی دی (د حجاج او ابن زبير جګړې او د کعبې ورانولو ته اشاره وه)

ای خراسانيانو! خراسان ستاسې د نيکه ګانو هيواد دی ستاسې پلرونه د عدل او داد او احسان او ښه سياست په سبب تل پرد ښمنانو او بدخواهانو بريمن او غښتلي وو، خو هغه وخت چې ئې خپل خوی پر ظلم او دښمنی بدل کړ نو خدای وربا ندی غضب سو، سلطنت او عزت ئې ځيني واخيست، او دغځکی د سخ دپروسپکو اوبدوخلکو ته ئې وسپارل؛ خدای هغه خلک پرتاسې مسلط کړه، ستاسې هيواد ئې ونيو، ستاسې نعمتونه ئې چور کړه، او ستاسې ښځې ئې په جبر بوتلې او ستاسې اولادونه ئې مريېان کړل، اوستاسې پر تولو شيانو ئې لاس وسوند.

دوی په لومړی سر کی عدل او داد وښووه او ددوستی پر ترون ولاړ وو، خو وروسته ددوی رويه او سياست په ظلم او ستم اليشه سوه.

دوی درسالت دکورنی پرهيزګاران پېرولی او پر پشانه کړي او دخدای دحکم پرخلاف ئې حکومت کړی دی.

---

(۱) ځينو دا پيښه په (۱۳۰ هـ ق ـ ۷۴۷ م) کی ګڼلې ده.

اوس خدای وغو ښته چې تاسې پرهغوی مسلط کړي، څوچې د خپلو ظلومانو مقتولانو دوینو کسات او انتقام له دوی څخه واخلئ .

امام ساته ویلي د ی چې « تاسې به پر غلیمانو بری ومو مئ ، هغوی به ووژنئ اوتېت به ئې کړئ »

بیائې نو دابومسلم خراساني دلیک داجملې ورته ولو ستلې چې ده ته ئې لیکلې و :

« بسم الله الرحمن الرحیم . له ابومسلم څخه قحطبه ته :

اما بعد - ددښمن مخ ته پښې ټینګې کړئ ، او چې بری مو و موند له وژلو ئې لاس مه اخلئ خدای ستاسې سره مرسته کوي ...».

په دې وینا دخراسانیانو وینې په جوش را غلې ، اود همدې کال دذی‌الحجې په لومړ ی ورځ ئې پر شامیانو یرغل وکړ ، دهغو سپه سالار ئې چې « نباته‌بن حنظله » نومېد وواژ ه ، او قحطبه د هغه سر پر ې کړ ابو مسلم ته ئې و لېږه او بر ی دخراسانیانو په بر خه سو.



او په همدې کا ل دامو یا نو تښتېدلی امیر نصر سیار چې هغه‌وخت په‌ګرګان کې و ، له هغه ځایه هم وتښتېد او همدان ته نژ دې د ساوه په سیمه کې په پنځه اتیا کلنۍ مړ سو ، او دی‌په خر اسان کې د امو یانو و روستنی امیر و .

**۱۲۸ - هش** د خراسانیانو لښکرچې دابومسلم خراساني له خوا د قحطبه په مشر ی **۱۳۲ - ه ق** د شامیانو په تعقیب اود کوفې په نیولو مامو ر سو ی و ، د دجله او **۷۴۹ - م** فرا ت غاړو ته‌و رسېدو ، خو له د جلې څخه د تېر ېد و په و خت کې د خراسانیا نو دلښکر مشر قحطبه په او بو کې ډوب سو ، اوخراسانیانود هغه پرځای دهغه زوی « حسن » خپل مشرا وسا لا ر و ټا کـه ، او هغه د د یر شو ز رو جګړ نو سره د خالد دزوی محمد په مرسته چې پلار ئې دعراق او اکا ئې د خر اسان امیر و ، اود ابو مسلم شعار ئې لا د مخه منلی و ، کوفه ونیوله .

بیا نو حسن محمد ستې د خپل پلار دو صیت په اثر د ابو سلمه خلال همداني په‌لټون کې سو ، چې دا سو یا نو له ویر ې په کو فه کې‌پټ و ، هغه ئې له کوره راو بو ست ، دابومسلم فرما ن ئې وروسپا ر ه ، او دخپل پلار«قحطبه» پر مخصوص‌آس ئې‌سپور کی‌ه،او دا ومسلم‌دفرمان سر ه سم ئې د «وزیر» په نامه دتولو چارو واکې په لا س ورکړې ، اودی لو مړ ی سړ ی دی

چې داسلامي دولت دتاسیس له شروع څخه بیاتر هغه وخته دلو مړي ځل د پاره د «وزیر» په عنوان یاد سوی ، او وروسته ئې د «وزیرآل محمد» لقب ورنه .

ابوسلمه دابومسلم فرمان دکوفې خلکوته ولوست او هغوی ئې دابومسلم د هدایتو عملي کولو ته راو بلل ، بیائې نودابومسلم خراساني په حکم دهمدې کال دربیع الاول په لسمه او دا کتوبر په دیرشمه د جمعې په ورځ ابوالعباس عبدالله ملقب په سفاح د امام ابراهیم ورور(۱) د خلافت پر مسند کښېناوه او دهغه سره ئې بیعت وکړ ، چې په دې ترتیب له همهغې ورځې څخه دعباسیانو دخلافت بنسټ دخراسانیانو په لاس کښېښووه سو ، او ددې بنسټ لوی اولوړی باني ابومسلم خراساني و ، چې دخراسان له تخار او سمرقند ه ئې دکوفې تر دروازو پورې دامَوی دولت دستګر و حاکمانو سره مبارزه وکړه ، او له خراسانه ئې دامویانو دوا ک کمبله ټوله کړه ، او د «امین آل محمد» په لقب یاد سو .

خوابوالعباس سفاح د عباسیانو لومړی خلیفه سره له هغه چې دابومسلم خراساني دلښکر په زور، او دبوسلمه خلال همداني په مرسته خلافت ته رسېدلی و ، بیاهم دخلافت له هغې لومړۍ ورځې ددې دوو نوسیالیو له زیات نفوذ او قدرت څخه په تشویش کی و .

ابو مسلم ېې دځان یواځنی رقیب باله او هم ئې وزیر بو سلمه ته چې دی ئې خلا فت ته رسولی و، دشک او شبهې په نظر کتله ، او په زړه کی ئې غوښته چې دا دوه غښتلی او نوسیالی شخصیتونه له منځه یوسي .

څوځنګه چې ېې په ښکاره ، او مستقیماً اقدام نه سوکولای، نوددوه او خدعې له لاری راوړاندې سو ، او دخپل خلافت په همهغه لومړی کال ئې خپل ورور ابوجعفر منصور خراسان ته ولېږ ه ، چې په ښکاره خو له خراسانیانو څخه د بیعت اخیستلو دپاره تللی مګر په پټه ئې غوښته چې ابو مسلم دبو سلمه په نسبت بد بین ه کړي او د هغه دله منځه وړلو اجا زه له ابو مسلم څخه واخلي ، نو څکه ابو جعفر هغه وخت چې خراسان ته ورسېد ، او دخراسا ن دخلکو له اطاعت څخه یې خوښی ښکاره کړ ه ، ابو مسلم ته ئې وو یل :

« یا ابو مسلمه ! موږ د حفص له زوی بو سلمه څخه ګله لرو ، چې پراميرالمؤ منین باندې

---

(۱) امام ابراهیم د ۱۳۱ ه ق = ۷۴۸ م په کال کی دا موي خلیفه مروان له خوا د جران په زندا ن کی ووژل سو ، او سبب یې له هغه څخه دابومسلم دلیاك پیدا کېد ل و .

کبر کوی ، په سپکه ورته گوري ، او د هغه خلافت پرهيځ نه بولی ، او پرمو ډا عتراض کوی ، او دا خبرې ئې له حده تېرېسو ېدي...».

او دصميميت او خلوص په توگه ئې ز ياته کړه :

«والله چی اميرالمؤمنين ستاله خاطره هغه ته څه نه وايي ـ ځکه هغه تاوزير کړی دی »

ابومسلم د هغه په جواب کی فقط دوسرې وو يل چی :

« ز ه تا او امير المؤ منين ته اجازه کوم څه چی تا سی غواړی ، د هغهسره ئې و کړی »

هغه و خت چی دابو مسلم دا جوا ب سفاح ته ورسېد ، اوسفاح دابو مسلم له خوا ډاډ ه سو ، نود همدې کال درجب دسياشتی په يوه شپه ئې بوسلمه په پټه او اسرار آميزه توگه وواژ ه ، او د هغه پر ځای ئې دبرمک بلخی زو ی خالد د عباسی دربار وزير .و ټا که .

او هم ابو جعفر منصور چی له خراسانه بیر ته وگرځيد نو سفاح ته ئې و و يل :

«خوچی ابو مسلم ژوندی د ی ته خليفه نه يې ـ بايد هغه ووژ ل سی ».

سفاح چی په دې خبره کی د هغه سره موافق و ، نوابو جعفر ئې د هغه اسرار له څرگندولو څخه سخت منع کړ .



په همدې کال ا بو مسلم د ځا ن له خوا د عبا س زوی عمر ته د سيستا ن ا ما رت و سپاره ، او هغه بيا خپل و رو ر ابراهيم د سند پر و لا يت وگوماره ، خو په هغه ورځ چی سند ته خو ځېد ی،دسيستان په يوه بلوا کی وو ژل سو.



همداراز په همدې کال ابومسلم خپل يوباوري سالار مغلس عبدي سيستانی د يوه لښکر په مشری سندته ولېږ ه، اوهغه په دېبل کی اموي اميرمنصور کلبی دوره ر«منظور»سره و جنگېد هغه ئې وو اژ ه ،خو په هغه جگړ ه کی چی د منصو ر کلبی سره ئې و کړه دمنصورد لښکر په لا س کښېووت اودمنصور په امر ووژل سو ،او ا بو مسلم د هغه پرځای د کعب تميمی زوی موسی دسند والی و ټا که ، اودشلو زرو جگړ نوسره ئې سندته واستاوه موسی يوزړو رسړی اودته بیر خاو ندو.

**۱۲۹-هش** په بخارا کی دشیخ مهري زوی شریك دد برشو زرو جگړنو سره د آل

**۱۳۳-هق** علی په طرفداری دآل‌عباس په خلاف پاڅېد ، خوابوسسلم خراسانی دصالح

**۷۵۰-م** خزاعی زوی زیاددلسوزرو جگړنو سره ورولیږه ، او هغه‌شریك وو اژه او

ماوراء النهر ئې بیرته رعیت کړ .

په همدې کال دعباس زوی عمر چې د سیستان حکمران و ، وواژه سو ،او ابومسلم د هغه پرځای ابو النجم عمارسیستا ن ته واستاوه،خو بو عا صم بستي دیو لوی لښکرسره سیستا ن ته ولاړ او د ا بوا لنجم عما ر سره و جنګېد ،ابو النجم ماته‌وکړ ه او بو عاصم د سیستان خپلواك حکمر ان سو .

**۱۰۳-هش** په سند کی اموي‌امیر دجمهور کلبی زوی منصو رچې‌دابو مسلم خر اسانی

**۱۳۴-هق** اطاعت‌ئې نه مانه،دابومسلم‌دیوه سالارله‌خواچې‌د کعب‌تمیمی زو ی موسی

**۷۵۱ - م** نومېد،په‌یوه جگړه کی‌ونیول سو، اوبیا ئې‌وواژه اود هغه‌دوژلو سره په‌سند کی دامو یانو دنفوذ کمبله هم ټوله‌سوه ،اوهغه ټوله سیمه دابو مسلم حکمران ته‌پەلاس ورغله او موسی تر (۱۴۰ هق - ۷۵۷ م) پورې په سند کی دا بو مسلم له‌خوا حکمران پاته سو.



په همدې کال‌دابراهیم زوی ابو داؤد خالد دابو مسلم په‌امرپه‌ماوراءالنهر کی پر«کش» یرغل‌وکیء ،اود هغه ځا ی امیر ئې‌چې «اخرید»نومېدوو اژه ،او له هغه‌ځا یه ئې ډېر ښکلی انځو رسوی نفیس چینی لوښی او کا لی له ځا نه‌سره ابو مسلم ته چې‌په‌سمر قند کی‌و، یوو ړه .



اوپه همد ې کال ابو مسلم دسغداو بخارا دچارو تر سمون ورو سته مروته ولاړ ، او د سمر قند دحصار د جو ړېدو امر یې‌ورکړ،دصالح زوی زیاد ئې‌دسغد او بخا را والی‌و ټاکه .

**۱۳۱-هش** دصا لح زو ی زیاد چې دابو مسلم خراسا نی‌له‌خو دسغداو بخاراوالی و،

**۱۳۵-هق** دعبا سیانو په لمسون ئې دابو مسلم له‌اطا عته سروغړاوه ،او هم عبا سی

**۷۵۲ - م** دربا ر د نعمان ازدي زوی سباع چې‌دابو مسلم سره‌و، په پټه وگوماره چې په هر ځا ی کی‌چېر ئې‌لاس پر بر سي ابو مسلم ووژنی ،خو ابو مسلم په آ مل کی له هغی

دسیسې څخه خبر سو، سباع ئې دآمل حاکم ته و سپاره چې‌مل شلاخې (تازیا نې)ئې ووهی او بیا ئې وو ژ نی . پخپله ابو مسلم بخارا ته ولاړ، دهزیا د» ابنکر ئې مات کیء ، او پخپله ز یاد هم وو ژ ل سو ،بیا نو ! بو مسلم بیر ته مروته را و گر ځېد .



**۱۳۲ه ش** ا بو مسلم خر ا سا نی چې دخر اسا ن چارې سمې کړې ،نو له خلیفه‌سفاح

**۱۳۶ه ق** څخه د عرا ق او بیا له هغه ځا یه حج ته د تلو اجازه وغوښتله، سفاح په

**۷۵۳ م** ډېرې خوشا لی‌دده غوښتنه و منله ،څوچې له نژ دې څخه ابو مسلم تر

ځا رنی لاندې و نیسی .

په د ې و خت کې د خلیفه و ر و را بو جعفر منصو ر بیا خلیفه ته و و یل:

« و رو ر ه ! ز ما خبره وا وره ، او وئې منه . تر څو چې دا سړی (ابو مسلم)پر کا رو ي، مو ږ له هغه کاره هیڅ برخه نه سو اخیستلای .زمانصیحت‌وا ور ه ، او هغه‌ووژنه ،که‌نه‌وي سو ږ به وو ژ نی» .

خلیفه ور ته وویل : « د ده عظمت او قدرت اونفوذ دد ې کار ما نع د ی، سر بېره پر د ې د ی زمو ږ په‌لاره کې‌تر سر تېر سو ی د ی ، څنګه ئې وو ژ نو ؟ »

ابو جعفر وویل : « هر څه چه‌ده کړ ي زمو ږدقدرت او تبلیغ ا و ا غېز ې لا ند ی ئې کړ ی د ی ،که سوږ دده پر ځا ی خراسان ته‌بوه‌پیشو هم استولې وا ی ،هغدا تأثیر ئې پیدا کاوه ».

بیائې نو وو یل : « هغه و خت چې د ی تاته راسی زه به توره‌راو باسم‌او وبه‌ئې‌وژ نم».

خلیفه ور ته وویل : « دده دملګر و سره به‌څه کو ې ؟ هر و مر و به دد ه د کسا ت اخیستلو د پار ه پا څې».

ابو جعفر وو یل : « دده ملګر ي چې دده دوژلو واور ي تو له به تیت او پر ک شي »

خلیفه وو یل : « دده ملګر ي او پیروان دده پر ستش کو ي ،او دده تینګ و فاداران او فدا کار ا ن د ي »

ابو جعفر وو یل : « څوچی د ی ژ و ند ی و ي همداسې ده ، خو دده تر مړ ینې وروسته به هیڅ و نه ښور یږ ي ، نو که و کولا ی سې و ئې و ژ نه ، که نه تابه وو ژ نی ».

په پا ی کې خلیفه خپل ورور ته وویل : « ستا د ي په خدا ی قسم و ي چې دا خبره بیامه تکراره و ه ، او دا محال خیال له خپله سره لیر ی کړه ».

وایی چې په لومړ ی سر کې خلیفه و منله چې ابو جعفر د ی ابو مسلم دراتګ په و خت کې وو ژ نی ؛ خو بیا و بیر ید ، او و رته و یو یل :

هو ښ کوه - دا کا ر و نه کړې ، چې ز مو ږ دنعت ز و ال به په همد ې کا ر کې و ي.

په هر حال ابو مسلم ورو سته تر هغه چې دخلیفه سفاح اجازه ور ور سېد له ، نو دیو ې لویې ډلی‌خراسانیانو سره د سفاح در بارته‌ورغی ، دده ډېر ښه هر کلي و کی ، څوچې‌دحج‌وخت را ورسېد،او خلیفه‌خپل‌ورور،د « امیرالحاج » په‌حیث‌دده سره و لیږ ه او ابو مسلم‌ته‌ئې وو یل :

« که ز ما ورور دحج نیت نه د ر لود لا ی نو ته مې امیر الحاج تا کلی »

وایی چې ابو مسلم په جواب کې و رته وو یل :

« ایا دده حج ز ماتر حج د مخه سو ی د ی ؟ »

له همد ې ځایه دابو جعفر کینې دابو مسلم په ز ړه کې ځا ی و نیو ، او هم دابو مسلم له ورو ستیو خبرو څخه دابو جعفر په زړه کې د ا بو مسلم سره کینه لا ز یاته سوه .

ابو مسلم‌له زرو تنو سره حج ته ولاړ ، او بیرته له‌حج‌څخه درا ګـر ځېدو پـه و خـت کې ئې وا ر و ېد ه چې خلیفه سفا ح د همد ې کال دذ ی الحجې په د یر لسمه دیکشنبې په ورځ د کو ي له ناروغی څخه د عراق په انبار کې مړ ، او همهلته ښخ سو ی د ی .

د سفا ح تر مړ ینې ورو سته د عراق‌خلکو د هغه دوروړ ابو جعفر منصو ر سره بیعت و کړه او بیعت ئې مکې ته ور و لیږ ه ، ابو مسلم هم ورسره بیعت و کړه او د هغه خلا فت ئې و مانه ، خو په همد ې و خت کې دابو جعفر منصو ر اکا دعلي زو ی عبد الله په شا م کې پو ر ته سو ، او د خلا فت دعوه ئې وکړ ه ، او اوو لس ز ره خر اسا نی جګړ ن ئې د ځا ن سلګر ي کړ ه ، ځکه نو منصو ر ، ابو مسلم ته چې تر هغه و خته لا په مکه کـې و ، و لیکل چې له هغه ځایه شام‌ته‌ولاړ سي‌او د عبدالله سر ه د ې و جنګیږ ي . ا و لـه هغـه څخه د ې بیعت و ا خلي .

ابو مسلم هم و منله ، او شپږ میاشتې ئې د عبدالله سره جګړې وکړې ، څو چې هغه ئې د ۱۳۷ هـ ق کال د جمادی الاخری په اوومه مات کې ، او دا دابومسلم خراسانی ورو ستنۍ بریالی ضربه وه چې دعباسي خلافت مخالفینو ته ئې ور کړه .

**۱۴۳-هش** ابو مسلم خراسانی دعبدالله تر ماتو او وروسته غوښتنه چې خراسان ته

**۱۳۷-هق** راسي ، خو منصور چې دده د تګ خراسان ته دځان دپاره خطرناکه ګاڼه نوورته

**۷۵۴-م** وئې لیکل چې : « دشام او مصر والی اوسه ، اودا کارستاد پاره تر خراسان ښه دی ، او هر څوك چې غواړې پر مصر ئې وګوماره ، او پخپله په شام کې اوسه چې امیرالمومنین ته نژدې یې ، اوکله چې تا وغواړی ژر ور ورسیږې » . ابو مسلم دمنصور له دې لیکه ودر دېدی ، در دجواب ئې ورکړ ، اودخراسان د تلو نیت ئې وکړ ، خو منصور بیا هم څو دپاڼه یني او غوره مالي لیکو نه د خورا خوږو و عدو سره دخپلو باوري استازو په لاس او ځینی هم دابومسلم د ور تېرو دوستانو په واسطه چې یو له هغوځخه دز یدبجلي زوی جریرو وکولای سوه چې ابو مسلم و غولوی او دخراسان له تګه ئې را وګرځوی . له بلې خوا منصور دخراسان دولایت دابراهیم الذهلي زوی ابو داؤ د خالد ته سپارلی و ، نو ابومسلم بله لار نه درلوداله ، بې له دې چې د خلیفه منصور خوا ته و لاړ سی ، په تېره بیا چې ځینو خراسانیانو هم ده ته و یل چې :

« ته دآل محمد امین یې ، او خلك تا په همدې صفت پېژنی ، او د خدای اجر به تر دې لوی وي ، بل دا چې لوسړی تاموږ د نبی د اهل بیت او د بنی عباس اطاعت ته را وبللو او امر دې وکړ چې ددوی دمخالفانو سره و جنګېږو ، اوس چې خپل مقصد ته ورسیدو او ددوی پر اطاعت او مینه راغونډ یو ، غواړې چې زموږ کارو ران سی ، او زموږ پله تیته سی ؟ آیا سوږ ته دې نه وه ویلی چې که څوك په دې لاره کې ستاسی سره مخالفت وکی هغه ووژنئ که څه هم زه یم ؟ »

هغه و ، چې د همدې کال دشعبان په پنځه ویشته د سه شنبې په ورځ په مداین کې د خلیفه منصور لشکرګاه ته ورسید ، او خلیفه چې ده ته ولید ، و ئې نمانځنه ، داو ئې ور کړ

او ورته وبویل :

« حما م ته ولاړ سه ، او نن شپه را حت وکه ، چی د سفر ستړیا دې لیرې سی ، او سبا را سه !».

بله ورځ منصور څلورتنه سپاهیان د نهیلك دزوی عثمان په مشری ددربار د پردې شاته پټ کړه او ورته ویویل :

« چی ما لاسونه و تکول تاسی را وو زي ابومسلم په تورو ووهی ! »

هغهو ، چی ابو مسلم دربارته ورغی ، ودرید ، منصورده تو ره و غو ښتله چی وئې وینی ، ابو مسلم خپله توره له غاړې وایستله او دمنصور مخ ته ئې کښېښوو له ،منصور پوښتنه شینی وکړه :

« دا توره زماد کاکا عبدالله ده ؟ » ابو مسلم جواب ورکړ : « بلی، یا امیر المومنین !» منصور ورته وویل : « دا توره ز ماسره بنه ایسی ».

بیائې نو پهتنده او ناوړه لهجه دی « ابومجرم ! » په نامه وباله او ورته وبویل :

« ایا هغه ته وې چی په لیك کی دې خپل نو م زماتر نامه دمخه لیکه ؟ او سربیره پر هغه دې ځان دعباسيزوی عبدالله ته منسوب کړی ، او سربیره پر هغه تا زما خو

«امینه» دځان دپاره غوښتې وه ،او ځان دی دعباس دزوی عبدالله په فرزندی منتسب کړی و ؟ اوولی د ی د کثیر زوی سلیمان چی زموږ له سخو رو مبلغینو څخه و ، و واژه ؟

ابومسلم دهری پوښتنی جواب وایه،اوچیدسلیما ن خبر یتهراورسید وبویل:«هغه مغرور سو ی و، زما امر یې ونهمانه،نو ومیوو اژه ». منصور وویل :«بلی،دا سردنهمنلو سزا وژل دی،نو خدا ی دیساوو ژ نی کهتاو نه وژ نم ».

بیایې نو لا سو نه وتکول ،اوهغه پنځه تنه پټ گو ساړل سویسپاهیان دپر د ې له شاڅخه را ووتل ،پهدې وخت کی ابو مسلم منصورته وویل :

«ای امیر المو منینه ! ما دخپلو د ښمنا نو دپاره ژوندیوساته»منصور ورته وویل :« بې له تابل دښمن نهلر م »اوپههغه گرز چیپهلا س کی یې و ، لو مړی ده ابو مسلم پر سروواهه او پر سپا هیا نو یې لوغ کړه :

«لاسونه مو مات سه ، په تورو يې و هیء ! »

سپاهیانو یو په بل پسې په تورو واهه ، اود همدې کال د برات د میاشتې په ۲۶ د چارشنبې په ورځ يې همهلته دمنصور په مخ کې ووازه، بیا يې حلال کیء او سر يې ځینی پرې کیء ، او په دې ترتیب خلیفه منصور خپل هغه غبتلی ، سرسخت خراساني رقیب له منځه يو وړیء ، چې د آل عباس د خلافت منځ ته راوستلو او ټینګولو دپاره يې له درې سوو واوشپېتو زرو څخه تر شپږ سوو زرو تنو پورې خلک وژلي وو، او هغه وخت چې دعباسي دربار يو مخور د ابومسلم خراساني مړی و لید، نو خلیفه منصور ته يې وویل :«ای امیرالمؤمنینه ! همدا نن ورځ دخپل خلافت لومړی ورځ وګڼه ! ».

بیا نو منصور ددې د پاره چې دابومسلم د ملګرو له خوا زیان ورونه رسېږي ، ډېر سوغاتونه د یوه کال لـه تنخا سره د بخشش په توګه خراساني جګړنو ته ورووېشل،او دخراسان سپاهیانو چې هغه سوغاتونه او بخششونه په اجبار او اکراه سره اخیستل نو په خپل منځ کې به يې سره ویل :

«مو د خپل مشر سالار په پیسو خرڅ کیء».

مؤرخان دابومسلم خراساني د کړووړو په باب لیکي: چې دی يو سټر ، زړور، ځوانمرد ، غیرتمن او سخي سړی و،یوزر دوډۍ پخوونکي يې درلوده ، چې هره ورځ به يې درې زره منه اوړه پخول،او همهره ورځ دده په پخلنځي کې یوسل او دېرش پسونه يې له غويو اومرغانو پخېدل ، او يو زر او دوه سوه بودګانو به دده د پخلنځي سامان وړه .

وايي هغه کال چې حج ته تیء دحاجیانو قافلې ته يې اعلان وکیء چې که په دې قافله کې چا د ډوډۍ پخولو دپاره اور بل کیء ، خون يې په خپله غاړه دی ، اود هغې قافلې والاو، ټولې اړتیاوې دده ور پوره کولې .

دخپل حرم د ښځو دحجاب په باب کې افراطي متعصب و،دحرم دسرایو ورونه به تل تړلي وو ، هیڅ قدرت نه درلود چې دده حرم له ښځو سره خبرې وکړي او ان هغه مادیانه چې دده دواده په شپه دده ناوې پر سپره سوې وه دده په امر ووژله سوه، بیا يې وسوځله ، او ایرې يې بادته ورکړې ، دا د دې دپاره چې بر هغه مادیانه بل څوک سپور نه سي .

ابو مسلم په دې عقيده و، چې ښځې ته ورنژدې کېدل يو ډول لېونتوب دی، او ديوه سپړه د پاره په کال کې يو وار لېونتوب کافي دی.

ابو مسلم په توره وهلو، غشي ويشتلو او د آس په سپرلو کې ډېر ماهر و، او پر آس بې رکابه سپرېدی.

خو تر دې ټولو صفتو مهم صفت يې دده د آزادۍ غوښتلو فکر و، چې غوښته يې خراسان او د خراسان خلک د عربو له تسلط څخه وژغوري او ديو آزاد او خپلواک خراسان دولت تشکيل کړي، او ډېر کسان يې په دې مفکوره ور وزل لکه «سنبا دزر دشتی» چې دابو مسلم تر وژلو وروسته دده د مفکورې په پېروي او دد کسات او خونخواهي په غرض په خراسان کې د عربو پرضد پاڅېد.

سنباد زرد شتی له سلو زرو آزادۍ غوښتونکو سره د هرات په لمرلويديز، سيمه کې د «اهروانه» له کلي څخه د عباسيانو پرضد پورته سو، داود لمر لوېدو خوا ته تر «ری» او «طبرستان» پورې پرمخ ولاړ، او خليفه منصور عباس مجبور سو، دده مخ نيوی ته د مرار عجلي زوی جهور له خورا لوی لښکر سره را ولېږه، او سنباد د له شپېتو زرو جگړو نو سره دابو مسلم د آزادۍ غوښتلو د مفکورې په پېروي د جگړې په ډگر کې ووژل سو، خو بيا هم په خراسان کې د آزادۍ غوښتلو مفکوره مړه نه سوه.



په همدې کال کې خليفه منصور د خراسان ولايت دابراهيم ذهلي زوی ابوداؤد خالد ته وسپاره چې تر دروکلو وروسته د مرو په دارالامارت کې د هغه ځای د آزادۍ غوښتونکو له خوا د سپين کاليو (سپيد جامگان) د ډلې د مشر سعيد جولاه په مشرۍ ووژل سو، او يا په بل روايت هغه په خپل خپله ځان د ماڼۍ له بامه راوغورځاوه، ملا يې ماته سوه او په همهغه ورځ مړ سو.

دا هغه خالد و، چې له خپل پالونکي او روزونکي يعنې ابو مسلم خراساني سره يې هغه وخت خيانت وکړ چې ابومسلم هغه د ځان نايب وټاکه او پر خپل ځای يې کښېناوه او ده د ابومسلم په غياب کې د خليفه منصور په گټه د ابو مسلم مخالفت وکړ.

۱۳۵-ھ ش امیر کروړ د امیر پولاد سوري زوی د غور په « مندېش » کی امیر سو ،
۱۳۹-ھ ق او «جهان پهلوان» یې باله. د «پټې خزانې» مؤلف محمد هوتك دشیخ کته
۷۵٦ - م دکتاب « تاریخ سوری» په حواله لیکي چی: «دغور کوټونه، اودبالشتان، او خیسار ، اوتمران مانۍ ، اوبر کوشک یې ټول ونیول اودرسالت له کهوله یې په خلافت کی دېر کومکونه وکړل» اوهم زیاتوي چی : «امیر کروړ ، ډېر غښتلی اوپهلوان و ، په یوتن له سلو جنګاوروسره جنګېدی، ځکه یې نو « کروړ » باله ، چی معنا یې ده «کلک» او «سخت».

اوبیا لیکی چی : «امیر کروړ به په دوبی «زمینداور» کی و ،اوهلته یې مانۍ در لوده چی کتې ستې دمندیش په شان وه ، او په دغه ځای کی یې ښکار کاوه اوعشرت .»

وایې چی دا امیران له پېړیو راهیسی په غور اوبالشتان اوبست کی وو ، اودغه « سور » نومی له اولاده دي ، چی د «سهاك» له پښته و.

دامیر کروړ پلار امیر پولاد په هغه دعوت کی د ابومسلم خراسانی ملګری او ملاتړ و ، چی دآل عباس دخلافت دپاره خراسان ته راپېولی سوی و ، او په خپله امیر کروړ هم د عباسی دعوت په جګړو کی برخه اخیستې وه اوډېری سوبی ئی په برخه سوی وې ، چی د هغو سوبو په ویاړ یې په پښتوژبه یوه ویاړ نه ویلې وه چی د پښتوژبې له خورا لرغو نیو او پخو اشعا رو ځخه چی تراوسه لاس ته راغلی ګڼل کېږی او هم امیر کروړ ته د پښتو ژبی لرغونی شاعر ویلای سو، دی په خپله ویاړ نه کی داسی وایي :

زه یم زمری ، پردې نړۍ له ما اتل نسته
په هند و سند و پر تخار او پر کابل نسته
بل په زا بل نسته
له ما اتل نسته

*✿*

غشی د من می ځی ، بر ښمنا پرمېرځمنو باندی
په ژوبله یو نم ، یرغالم پر تښتېدو نو باندی
پر ما تېدو نو باندی
له ما اتل نسته

زما دېرېو پرخول تاوېږي هسك پهمنځ وپه ويار
دآس له سو و مى مځكه رېږدى غرونه ګاندم لتار
کرم ايوادونه اوجاړ
له ما ا تل نسته

*✿*

زما دتورى ترشپول لاندى دى هرات وجروم
غرج و باميان و تخار بولى نوم زما په اودوم
زه پېژندوى يم په روم
له ما ا تل نسته

*✿*

پر مرو زما غشي لو ني ، دا ړى د ښن را ښخه
دهر يوا لرو د پر څند و ځم تبنتي پلن را ښخه
ربى زړن را ښخه
له ما ا تل نسته

✿*✿

د زرنج سو به مى د تورى په مخسوروکړه
په باداري مى لوړاوى د کول دسور وکړه
ستر مى تر بور وکړه
له ما ا تل نسته

*✿*

خپلو وګرو لره لور پېر زوينه کوم
دوى په دادينه ښه باسم ښه يې روزنه کوم
تل يې ودنه کوم
له ما اتل نسته

پر لویو غرو سی وینا د روسی نه په ځندو په تیال

نړ ی ز ما ده نو م سی بو لی پردریځ ستا یوال

په ورځو، شپو، میا شتو، کال

له ما اتل نسته

*✿*

امیر کروړ په (۱۵۴ ھ ق ــ ۷۷۰ م) کال د پوشنګ په جګړه کی مړسو ، اوترده وروسته یې زوی امیر ناصر دغور اوبست او زمینداور پر مځکو امیرسو .

**۱۳٦ـ ھ ش** عباسی خلیفه منصور دخراسان اما رت د عبدالرحمن زوی عبد الجبار ته **۱٤۰ـ ھ ق** ورکیء ، چی تر هغه دمخه د خلیفه منصور امنیه قوماندان (شرطه) و . **۷۵۷ ـ م** عبدالجبار په خراسان کی دپرخلک دآل علی دطرفداری په تورووژل ، او په خپل واک دونی غره سو چی دخلیفه لهاطاعته یې سروغړاوه ، دمرو اوبلخ او دخراسان دنورو ښارو خراج یې زیات کیء ، اوپرخلکو یې ستمونه وکړه ، خو په پای کی یې د« براز بنده » سره چی په خراسان کی دعباسیانو دسلطې پرضد پاڅېدلی و ، بیعت وکیء ، او سپین بیرغ یې چې د «براز بنده » دتحریك نښه وه ور یاوه .

**۱۳۷ـ ھ ش** عباسی خلیفه منصور دخراسان امارت خپل زوی او ولیعهد محمد مهدی **۱٤۱ـ ھ ق** ته ورکیء ، او هغه دزیاد زوی حرب د عبدالجبار مقا بلې ته واستاوه ، **۷۵۸ ـ م** عبدالجبار هم پنځه ز ره جګړن د «سوار » نومی په مشری د هغه مخنیوی ته ورواستل ، «سوار » ماتې وکړه ، او «حرب» دمرو خواته مخه وکړه ، عبدالجبا ر یې جګړې ته راووت، خوپه جګړه کیماتاو بندی کړه سو ، او په (۱۴۲ ھ ق ــ ۷۵۹ م) کال یې په کوفه کی لاسونه اوپښې او سر پر پکړه سول .

***

په همدې کال کی دخراسانیانو یوه ډله منځ ته راغله چی « را وند یان » یې بلل ، د ې دلې خاص عقاید درلودل خو په ظاهرکی یې د آل عباس په طرفداری دونی افراط کاوه چی

ابوجعفر منصور ربې (نعوذبالله) خدای ، اود مکې حاکم دمعاویه خراسانی زوی هیثم بې دجبرئیل مظهر اودعباسي دربار ساتندویانو (محافظینو ) مشر د نهیک زوی عثمان د ابو مسلم خراسانی وژونکی یې دآدم دروح ځای باله ، اوهغه وخت چې ددې ډلې شپږسوه تنه د خلیفه په‌مانی کې‌گرځېدل ویل یې : „دازموږ دخدای مانی ده „ خومنصور د دوی دا نمانځنه ونه منله ، او دراوندیانو دوه‌سوه مشران یې بندیان کړه .

***

همدا راز په‌دې کال په‌سیستان کې‌یوه ډله‌آزادی غوښتونکی درقاد د زوی حضین په مشری پاڅېدل ، او دخلافت دسلطې پرضد یې ډیرخلک پرځا ن را ټول کړه ، څو چې عباسی خلیفه منصور ددوی دمخنیوی‌دپاره «هنادی‌السری» نومی سالار دسیستان په حکومت وټاکه ، او هغه بیا «سلیمان» د حضین سره جګړې ته وګماره ، او سلیمان په یوه جګړه کې حضین وواژه ، او هم یې له « رخجه » ډیر سال دځان سره سیستا ن ته یووړ ، خو چې سیستان ته ور سېد،دده اوهناد السری ترمنځ اختلاف پیدا سو جګړې ته سر ه ورسېدل مګر دسیستان خلکو دهنا دالسری‌ملا و تړ له چې‌د خلیفه فرمان اولوا ورسره وه ، او سلیما ن ئې بندی کړ .

بیا په همدې کال منصور د سیستان ولایت دمحمد الا زدی زوی ز هیرته ورکړ ، هغه سیستان ته را غئ ، خو هناد السری هغه ونه مانه ، او مقا بلې ته ئې پا څېد ، هغه و، چې هنا دالسری په جګړ ه کې وو ژل سو ، او زهیر یو لوی لښکر د عطا ر د زوی‌شجا ع په مشری سند ته واستاوه او هغه په سند کې ډېر سالونه او پیلان پیدا کړه او بیرته سیستان ته راغئ .

| | | |
|---|---|---|
| د۱۳۸-ه ش په‌شاوخوا کی | « وو کو نګ » | و روستنی چینی ګرځند وی دچین |
| ۱۴۲ -ه ق | « « | ترنا متو ګرځندوی«هیون‌تسنګ» یوسل اودېر ش کاله |
| ۷۵۹ - م | « « | ور وسته‌ګند هار اته‌راغئ،دلته‌ناروغه‌اوهمدلته پاته‌سو. |

دی وایې : « په ګند هارا کی پاچا او ملکه او ټول وزیران او ا میران د بو دائی بو د تو نو ( معبدو) ودانی او سرمت ته توجه لری » او له دې څخه ځر ګند ېږی چې تر هغه وخته لا هم بودائی‌دین په ګندهارا کی اهمیت‌او رواج در لود .

۱۳۹ ـ هـ ش عباسی خلیفه‌منصور د خراسان امارت‌دیز ید زوی‌ابوعون عبدالملك
۱۴۳ - هـ ق تەو رکیء او ابوعون‌سر و تەراغیءاو او وه کا له پەخراسان کی
۷۶۰ - م پاته سو ،خوچی‌په(۱۴۹ هـ ق) کال‌دمنصورله‌خوا معزول کړه‌سو .

***

۱۴۰ - هـ ش دافغانستان یو نومیالی عالم ابو عثمان عمرو ، دعبید زوی او د
۱۴۴ -هـ ق باب کابلی نمسی چی د معتزله ډلی شیخ او مشهور مفتی ا و
۷۶۱ - م زاهد و ، مړ سو .

دده نیکه «باب » تر (۳۶ هـ ق ) وروسته چی عبدالرحمن بن سمره کابل ونیو د بند یا نو په ډله کی له کابله بوتله سو اودابن سعد تمیمی له مولا لیو څخه و . پلار ئي په بصره کی نساجي کوله ، او په خپله په (۸۰ هـ ق) کال زیږېدلی او دمنصور عباسی دخلافت په وخت کی ئي په علم او پارسائی شهرت موندلی و ، او تر مړینی وروسته ئي پخپله خلیفه منصور دده ویرنه (مرثیه) ویلی‌وه . ده یو تفسیر او پرقدریه باندی‌یوردلیکلی و .

۱۴۲- هـ ش مهدی چی د خلیفه منصور زوی او دخراسان والی و ، خپل ماما
۱۴۶ - هـ ق د منصور زوی یزید د سیستان حاکم وټاکه ، او هغه دهمدې
۷۶۳ - م کال د شوال په میاشت د سیستان ښار ته ورسېد ، عادل سړی و ،
او دخلکو سره ئي ښه کول ، خوپه (۱۵۰ هـ ق) کال دبست دآزادی غوښتونکو یو مشر چی دشد ادزوی محمد نومېد او دبست له لغیریانو (لغړ یانو) خلکو څخه و ، په بست کی ور ته پورته سو ، ډېر خلك پرر اتول سول ، او چی ښه غښتلی سو ، نودسیستان خواته ئي مخه وکړه دمنصور زوی یز ید ور سره وجنګېد ، ماته ئي وکړه او دنیشا پو ر خواته وتښتېد .

۱۴۴ - هـ ش فضل د هارون رشید ددربار نومیالی وز یر چی د یحیی برمکی
۱۴۸ -هـ ق بلخی زوی و ،په مدینه کی وزیږ ید، د یدهارون رشید رضاعی
۷۶۵ - م ورور هم کېده ، په زلمیتوب کی د شاهی حرم دچارو مشرو،
او په (۱۷۰ هـ ق) دشهزاده محمد الامین روزنه هم وروسپارله سوه، اودامین دولایت عهدی په اعلان کی ئي هم لاس درلود ، څوچی په (۱۷۸ هـ ق) هارون ر شید خپل وزیر و ټاکه ددې میړنی بلخی زلمی‌دژوند نوری پېښی به دورو ستیو کلو په پېښو کی را وړه سی .

۱۴۵ - هـ ش عباسي خليفه منصور د خراسان امارت خپل سرلښکر د عبدالله
۱۴۹ - هـ ق زوی اسيد ته ور کړه او هغه د همدې کال د روژې په
۷۶۶ - م مياشت خراسان ته راغی ، او په (۱۵۰ هـ ق) کال مړ سو.

* * *

په همدې کال د هرات آزادي غوښتونکی د «استادسيس» بادغيسي او د هغه د ملګری «حريش» سيستاني په مشری د عربو د سلطې پر ضد پاڅېدل ، او « اجشم سرورو دی » ئې چې عباسي خليفه په طرفداری جنګېده ، د جګړې په ډګر کې وواژه ، او درې سوه زره جګړن ور باندی راغونډ سوی وو.

۱۴۶ - هـ ش استاد سيس با د غيسي ددروسوو زرو آزادی غوښتونکو سره پرتول
۱۵۰ - هـ ق خراسان مسلط سو ، خو چې خليفه منصور د خزيمه زوی خازم
۷۶۷ - م چې په نيشاپور کې د خليفه دزوی سره و ، د څلرويشتو مجهزو او چونيل سويو جګړنو سره داستاد سيس دفاع ته وګماره ، اوهم دقتيبه زامنو ابی عون او عمرو له تخارستانه دخليفه په حکم پراستاد سيس يرغل وکړه ، او دهغه نژدې او يازره پيروان ئې ووژل ، او پخپله استادسيس ئې دخورلسو زرو آزادی غوښتونکو سره اسير ونيو ، او بغداد ته ئې ولېږه . په بغداد کې ئې استاد سيس وواژه ، او دهغه لورچې «سراجل» يا« مرجيله» نومېد له هارون رشيد په نکاح کړه ، او د همدې باد غيسي مېرمنې له نسه عباسي نامتو خليفه مأمون وزېږېد .

✿ ✿ ✿

دهمدې کال درجب يا شعبان په مياشت امام اعظم ابوحنيفه داسلامي مشهور تشريعي « حنفي مذهب » مشر امام چې نيکه ئې «زوطی» دکابل دپروان له سيمې څخه کوفې ته تللی و ، دبغداد په زندان کې وفات او دبغداد دعسکر مهدی دخيزران په هديره کې ښخ کړه سو. (دده دژوند مفصل حالات « دافغانستان نو ميالی » کتاب په لومړی ټوک کې راوړه سوی دی دهغه کتاب ۳۱۷ مخ ته دې رجوع وسی) .

خود امام اعظم دبند يکرت سبب داو ، چې عباسي خليفه ابو جعفرمنصور دی له کوفې څخه بغداد ته ورو غوښت او ده ته ئې دقضا دمنصب ست وکړه ، خو امام صاحب ونه مانه خليفه ورته وويل چې : « په خدای مې دی قسم وی چې دا کار به کوې » امام صاحب ورته وويل : « په خدای مې دې قسم وی که ئې وکم » خليفه خپل قسم تکرار

کی ء ، امام اعظم هم خپل قسم تکرار کیء او ویل چي : « زه د قضا اهلیت نه لرم » دیوسف زوی ربیع حاجب ورته وویل :« نه اروې چی امیرالمؤمنین قسم واخیست ؟ » امام اعظم ورته وویل : « امیرالمؤمنین دقسم د کفارې په ورکولو تر ما غښتلی دی » بیا ربیع حکایت کوی چی : « منصور خلیفه می ولید چی دقضا دمنصب په باب کی ئې دابوحنیفه سره مشاجره کوله اوابوحنیفه ورته ویل چی : له خدایه وبیریږه او ما پخپلی امانت داری کی سه شریکوه ، یوڅوک چی د رضا په حال کې د اعتماد وړ نه وی د غضب په حال کی څنګه د اعتماد وړ کیدای سی ؟ یعنی زه چیدرضا په حال کی پرځان اعتماد نه لرم نو د غضب پهحال کی څنګه پرځان اعتماد کولای سم» هغه و ، چی دمنصور په حکم امام اعظم زندان ته واستول سو ،اوهمهلته ئې له دې جهانه سترګی پټی کړې.

**۱۴۷-هـ ش** عباسی خلیفه‌منصور د زایدهٔ شیبانی زوی معن‌سیستان ته دوالی په حیث
**۱۵۱-هـ ق** واستاوه،اوهغه دهمدې کال د شعبان په میاشت‌سیستان ته راغیء، او
**۷٦۸ - م** له‌سیستانه ئې پر رخج یرغل‌وکیء او د زابل د پاچا رتبیل‌سره ئې جګړه وکړه، دری زره تنه ئې‌بند یان په‌لاس کېړو تل ،خو د ژمی له ییری بیرته‌بست ته وګرځید او در تبیل زوم «ماوید »یا «ماوند» نومی ئې چی‌ده ته ئې پناه وړې‌وه دځانه سره بوت او منصور خلیفه ته ئې ولیږه .



په همدې کال منصور خلیفه دخراسان امارت دقدید زوی عبده ته ورکیء ، خوتر اوو میاشتو وروسته ئې بیر ته‌معزول کیء او دهغه پرځای ئې د قحطبه زوی حمید د خراسان په امارت وګماره .

**۱۴۸ -هـ ش** د زایدهٔشیبانی زوی معن چی په سیستان کی د خلیفه منصور له‌خوا
**۱۵۲- هـ ق** والی و ، پر خلکو رازرا ز ظلمونه شروع کړه ، چی یو له هغو څخه
**۷٦۹ - م** داو،چی د خوارجو آزادي غوښتونکو ځلو پښت بند یان بست ته راولیږ ل چی دلته دده د پاره یوه ما ڼۍ ودانه کړي، هغو بندیانو دمانۍ‌دنورو کار یګرانو سره چی په بیګار ئې کارکاوه لاسونه یوکړه ،او دوالی وژلو ته ئې ملا وتړله ، هغه و ، چی دهمدې کال دذی الحجې د میاشتې په اتمه‌د پنجشنبې په ورځ په داسی حال کی‌چی

والي د هغې ما ني پر بام په شراب چښلو بوخت و ، کار يګرانو په دې پلمه چې د ماڼۍ د بلې برخې د چت د پوښلو دپاره د ټلانو غوزي وړي په هر غوزي کې ئې توري پو ټي کړي ما نې ته وختل ، او بيا ئې نو هغه توري راو ويستلې او پروا لې ئې حمله وکړه ، نس ئې ورڅيري ، او د سختې بلوا او رڼې بل کې ، چې دهغه او ر لمبې بيا د بر ژ رسيستان ته هم ور سېدلې ، او هلته هم دعربو د سلطې پر ضد الغا و تلغا و پيدا سو ، او د ا الغا و تلغاو د خليفه منصو ر د مړينې تر وخته جاري و .

**۱۵۰ ـ هش** د علا مه ابو ريحان بيرو ني په قول په هم دې کال (۱) د هندي دفکر ي
**۱۵۴ ـ ه ق** او علمي انتقال هڅه دلومړي ځل د پاره دافغانستان له لا ري عر بي دنيا ته
**۷۷۰ ـ م** شروع سو له ، په د ې تر تيب چې په هم دې کا ل د سند د خلګو يوه علمي جرګه د سنسکريت د يو ه رياضي پوها ند سره بغدا د ته و لا ړه ، او هغې جرګې د رياضي او ستورو پيژند نې يو کتاب چې «سد ها نيته » sidhanta نومېده او په (۷ ه ق ) کال «برهم ګپت » تأ ليف کړی و ، د ځان سره بغداد ته د افغا نستا ن له لارې يو وړ ، چې هلته د عبا سي خليفه منصور په امر په عربي ترجمه سو ، او د خليفه په حکم دده دد ر با رنا متو رياضي پو هاند دا براهيم فزاري زوی محمد د هغه کتاب له مخې يو کتاب دستورو د حر کاتو په باب کې په عر بي تأ ليف کې ، چې اسلامي ستو ر پيژند و نکو ا و منجما نو هغه «سند هند کبير » وبا له .

**۱۵۴ ـ ه ش** عبا سي خليفه منصو ر په حجاز کې مړ سو ، اود هغه زو ی او وليعهد «المهدی»
**۱۵۸ ـ ه ق** د عبا سي خلا فت پر مسند کښېنو ست ، او هغه هم په خر اسا ن کې د
**۷۷۴ ـ م** د قحطبه د زوی حميد اما رت و ما نه .

**✿

**۱۵۵ ـ ه ش** په بخا را کې د سپين کا ليو (سپيد جا مګان ) د ډ لې لو مړ ی تحريك
**۱۵۹ ـ ه ق** شروع سو ، چې د شپې پر يوه مسجد ور تو ی سول ، د هغه مسجد مؤذن
**۷۷۵ ـ م** او پنځلس نمو نځ کو و نکي ئې ووژل. دا ډله د حکيم مقنع پير وان وو ، چې سپين کالي به ئې ا غو ستل او سپين بيرغ و نه به ئې ر پول .

ددې ډ لې مؤسس او مشر ها شم د حکيم يا حکم ز وی مشهور په حکيم مقنع د مر و د «کازه» له کلي څخه را و تلی او دابو مسلم خر اساني په وختو کې سر هنګ و ، او پلا ر

---

(۱) دا خبار ا لحکما مؤ لف قفطي دا فکري هڅه په (۱۵۶ ه ق ) کې ګڼي.

ئې د بلخ و چې د خلیفه‌منصو ر په و ختو کې د خر اسان له نو میا لیو سر هنګا نو څخه ګڼل کېده .

مقنع سر بېر ه پر نورو پو هنو ئې په مشعبدې او طلسما ت او جا دوګرې کې هم لو ی لا س د رلو د .

ددې د ژ لی نور حا لات د را تلو نکو ټلو په پېښو کې و لو لیء .

| | |
|---|---|
| ۱۵۶-هـ ش | خلیفه مهدی د خرا سان ا مارت ا بو عون عبدا لملک د یز ید زوی‌ته |
| ۱۶۰-هـ ق | ورکیء ، یو کال او یوه میا شت‌دخرا سان امیر و ،اودده په وختو کې |
| ۷۷۶ - م | په خر اسان کې‌د یو ې دلې آزا دي‌غو ښتو نکو مشریو سف‌د ابرا هیم |

زوی د عبا سیا نو د سلطې پر ضد پا څېد او د عبا سی خلیفه مهد ی‌اعما لو ته ئې ګو ته ونیوله ا نتقا دو نه ئې پرو کړ ه ،او د پر پیروان ئې و سو ند ل .ده خلک‌ښې لا ر ی ته را بلل ، او د امر با لمعر و ف‌او نهی عن ا لمنکر په‌لاره کې‌ئې زیار یو ست. خو خلیفه مهدی‌یو لوی لښکر د مز ید شیبا نی د زوی یزید په مشری دده مقا بلې ته را وا ستا و ه ، یوسف‌او دهغه ملګر ی ئې و نیو ل او بغد اد ته ئې وا ستول ، او دخلیفه‌مهدی په امر د یو سف خر اما نی لاسونه او پښې پر ېکړ ه سول ،او بیادنورو ملګر و سره وو ژل سو.



په همدې کال په عر بی ژبه کې دخراسان‌نو میا لی شاعر علی عکو ک خراسانی‌په‌بغداد کې وز یږ ېد .دی خو ږ ژ بی اومقتد ر شا عر سو ، خوله موره ړوند زیږ ېدلی و . نور حالات‌ئی دده د مړ ینی (۲۱۳ هـ ق ) کال په پېښو کې ولو لیء .

| | |
|---|---|
| ۱۵۷ - هـ ش | په خـر ا سا ن کـی د سپیـن کـا لیو تحـر یکـ غـښتلـی سو ، |
| ۱۶۱ - هـ ق | اود هغی د لی‌مشراو با نی «مقنع » میدان ته را ووت،...دی‌په‌حلول‌او |
| ۷۷۷ - م | تناسخ‌قایل ‌و،او داسی نور ..... |

هغه وخت‌چې د مقنـع پیروان د پر سول نو د . . . تـر د عوې تېر سو او د . . . د عـو ئې و کړ ه .

دمقنع پیروانو به‌و یل چې: «په ابومسلم کې روح الله حلول کړی و، هغه سړی نه دی بیرته به راوګرځي، او هغه چې منصور ووا ژه یواهریمن و، چې دابومسلم په صورت ښوتلی و».

مقنع دخراسان ټولو ولایتو ته خپل بلونکي (داعیان) ولیږل، اولیکو نه یې ولیکل چې زما په... وګرو هیرې که‌نه دوزخ به موځای وي.

مقنع ئې له‌دې‌جهته «مقنع» باله چې‌ده به‌تل دطلای ناب یونقاب پرمخ راکیښ چې پیروان ئې‌دده‌دمخ له‌نوره صدمه ونه‌وینی، خودده‌مخالفانو به ویل چې‌ده‌ډیر کریه منظر درلود، اویوه سترګه ئې ړنده وه ځکه‌ئې نومخ پټاوه.

مقنع ددې دپاره چې‌دعباسیانو له‌نظامي مرکز څخه چې‌په‌مروکې و، لیرې وی نوله آمو راپور یووت، اود«کش» په‌سیمه کې میشته سو، دهغې سیمې‌زیات خلک دمقنع په ګروهه وګرو هیدل، اودده‌د پیروانو شمیر تر پنځوسو زرو تیرسوی‌و، اوټول‌دده سره دزړه وفادار اوفداکاران وو، چې حتی‌دجګړې په‌ډګر کې ناری وهلي‌چې: «یاها شمه! راورسیږې» ګواکې روحاً په‌دې معتقد وو چې مقنع به‌ددوی‌سرستی‌ته‌وررسیږی «دنخشب»سپوږمی چې‌په عربی اودری ادبیاتو کې‌زیات‌شهرت‌لری، دده صنعت اومصنوع وه چې‌د«نخشب» له کوهي څخه به راختله اوپه‌فضاکې به‌لوړیدله.



په‌همدې کال کې‌عباسی خلیفه مهدی دمسلم زوی معاذ دخراسان والی وټاکه، او هغه خپل ورور«سلمه» خراسان ته‌راولیږه، اوهم‌پخپله دهمدی کال په‌پای کې خراسان ته راغی او دمقنع دمخنیوی دپاره مروته ولاړ، اوپنځه سوه او اویا زره «۵۷۰۰۰»تنه له‌خراسان اوبخارا څخه پرراټول سول، دوه کاله دمقنع دپیروانو (سپین کالیو)سره وجنګید، خو سپین کالیان ئې مات نه‌کړای سول، څو چې‌دمسلم زوی معاذ ستړی سو اودخراسان له امارته ئې عذر وغوښت دعراق خواته ولاړ.



په‌همدې کال زهیر دمحمد الازدی زوی دعباسی خلیفه مهدی له‌خوا سیستان ته راغی اودسیستان دامارت پرمسند کښیناست. ده دخلکو سره ښه‌کول اواته کاله‌په‌سیستان کې‌امیرو.

**۱۵۷ ـ هـ ش** دبلخ نوميالی صوفی ، لوی شيخ اوناميتو زاهد ابرا هيم ا د هم په
**۱۶۲ ـ هـ ق** روم کی وفات اودسوفين په کلا کی ښخ کړه سو(۱)
**۷۷۸ ـ م** دده کنيت ابوا سحاق اودپلارنوم ئي ادهم و، سليمان ئي نيکه اومنصور ئي ورنيکه و ، چی هغه بيا ديزيد زوی اودجابر تميمی عجلی بلخی نمسی کيده .

ابراهيم ادهم پهلو مړی سر کی دبلخ له امير زادگانو څخه و ، خويوه ورځ چی په ښکار وتلی و ، يوهاتفی آواز ئي واوريد چی ده ته ئي ويل : ابرا هيمه ! ته ئي د دې کا ر د پا ره نه ئي پيد ا کړی ، دې آواز دده پرروح اودماغ ډيره آغيزه وکړه له آسه کښته سو ، هغه آس او هرڅه چی ئی درلوده دخپل پلار چوپان ته ئي و بخښل ، دچوپان ورين کالی ئي واغوستل اوله دنيائي لاس په سر کړ، زهد اودنفس تزکيی ته ئي ملا وتړله ، څوچی سترصوفی اوشيخ سو( دده بشپړحا لا ت «دافغانستان نوميالی» دکتاب دلومړی ټوك په ۳۷ مخ کی لو ستلای سئ) .

**۱۵۸ ـ هـ ش** عبا سی خليفه مهدی دخراسان له امارته دمسلم دزوی معاذ استعفا ومنله
**۱۶۳ ـ هـ ق** اودهغه پرځای دزهيرضبی زوی مسيب دخرا سان په اما رت وگما ره
**۷۷۹ ـ م** اوهغه دمهدی کال په جمادی الاولی کی مروته راغی (۲) اوله هغه ځا يه دسپين کاليو ديوه سالا ر دمقابلې د پاره چی «کولا رتگين» نوميده بخا را ته ولاړ ، اوهم د خليفه مهدی له خوا زيات سلاتر وړيسی راورسيد ، اوپه پای کی پخپله خليفه د نوی لوی لښکر سره ليشاپور ته راغی ، ځکه چی دابيره پيداسوې وه چی د مقنع آئين دی داسلام ځای و نيسی .

هغه و ، چی له هرې خوا څخه دعباسی خلافت جگړ نو قوا پرسپين کاليو را وگرز يد ل او دهغـو هڅو لمنه ئی لنډه کړه اودمقنع ډير ش زره تنه پيروان مجبور ه سو ل چی ځا نو نه تسليم کړی ، او دمقنع سره فقط دو ه زره تنه دسنام په حصار کـی پا ته سو ل ، د ا وخت نو مقنع پوه سو چی مرگ ئی را رسيدلی دی ، نوځکه ئي لومړ ی خپلو ښځواو آل ا و لا د ته زهر

---

(۱) ځينی دده مړينه په (۱۶۰ هـ ق ) اوځوك ئی په (۱۶۱ هـ ق ) کی گڼی .
(۲) ځينی دخراسان په امارت دمسيب گمارل په (۱۶۶ هـ ق) کال کی بولی .

ورکړه ، اوبیائې خپل ځان په هغه تنا ر ه کې وا چا وه چې له د رو و رځو را هیسې ا و ر

پکښې بلـېد ه ، او ځان ئې و سو ځـاوه ، خو بل روایت دادی چې دده تر مړینې ورو سته دده

پیروانو دده مړی ددې د پاره و سو ځاوه چې ددښمن په لاس ور نه سي ، او ده به تل ویل :

« هغه وخت چې زما بندگا ن عاصیا ن سي، نو زه آسمان ته ځم ، او له هغه ځایه ملائکې

راولم او پر خپلو مخالفا نو په قهرېږم ». مسیب اتهمیاشتې د خراسان امیر و ، خو څنگه چې

ئې خراج پر خلکو زیات کړ ، خلک ورته پاڅېد ل، ځکه نو خلیفه مهد معزول، کړ .

*✿*

په همد ې کال امام ابراهیم د تهمان هروی زوی د افغانستان نامتو محدث او نومیالی

عالم په مکه کې وفات سو .

ده په فقه ، حدیث او تفسیر کې لوی لاس درلود ، ځینې تا بعین لکه عمرو بن دینار

او نو رئې لیدلی وو ، اود عبدالله بن مبارك مړی او نورو محد ثانو استادو ، او دا کتابو نه ئې

لیکلی وو :

۱ ـ کتاب سنن الفقه

۲ ـ کتاب المناقب

۳ ـ کتاب العید ین

۴ ـ التفسیر القرآن

د ی په هرات کې د باشان د کلي و .

**۱۵۹ ـ ه ش** عباسي خلیفه مهدی د خراسان او ماو رای خراسان هغو امیر انو ته چې

**۱۶۴ ـ ه ق** په خپلوا کې ئې حکو مت کا وه ، خپل استا زی واستول او هغوی

**۷۸۰ ـ م** ئې خپل اطاعت ته و بلل ، دهغو له جملې څخه کابل شاه خنجل ، اود

بامیان شیر ، اور تبیل د اسلامي خلافت اطاعت و مانه ، او د همد ې کال په شاو خوا کې

د غزنې لومړی لوی مسجد « سر کت » د غزنې د بهار شمال غربي خوا ته په درب بامیان کې

د لو یکان د بود تون ( معبد ) پر ځای ودان کړه سو ، چې وروسته ئې د « مسجد افلح » په

نامه شهرت و مو ند .

۱٦۰ ـ هـ ش خالد برمکی دبرمك بلخی زوی دبلخ د برمکیا نو د کهاله ستر نیکه
۱٦٥ ـ هـ ق مړسو، دی په ( ۹۰ هـ ق ) کال ز یږیدلی و ، او د کوچنو الی
۷۸۱ ـ م ورځی ئې دخپل پلار سره په کشمیر کی تیری کړی وې ، او هلته ئې د طب او نجوم او سحر او نور علوم زده کړه او بیا د پلار سره بلخ ته راغی او په اموی دربارکی ئې ښه مقام وموند ' خو بیا د پلار د وصیت په اغېزه د اموي‌دولت‌د مخالفانو په ډله کی ودرېد، او د عباسی دولت په‌بنسټ ایښوولو کی ئې مهمه برخه واخیستله او د ابومسلم خراسانی له نوسیالیو او زړورو او باوری سالارا نو څخه و ، او په ( ۱۳۰ هـ) کال چی ابومسلم د بنی امیه کارداران‌له‌خراسانه وشړل، نودی‌د ابوسلم‌د لښکرو مشراو سپهسالار وټاکل سو، او په‌زیاتو جګړو کې ئې‌ګډون درلو د ، او بری بې سو ند .

دی د عباسی دورې له خوراپو هیالیو او ز یر کو نوسیا لیو څخه و ، چی په‌همدې‌سبب سفاح هغه د وزیر په‌حیث و ټاکه ، خو ده سره له‌دې چی‌د وزارت چار ی پر غاړه اخیستی‌وې ځان‌ته ئی وزیر نه وا یه .

دی‌دخلیفه منصور له‌خوا د موصل والی وټاکل سو او د خلیفه مهدی په وخت کی‌هم دموصل ولایت دده و ، څو چی په ( ۱٦۳ هق) کال خلیفه مهد د خپل زوی او ولیعهد هارون‌رشید سره دروم (ننني تورکیې) غزا ته ولېږه .

د اخبار الوزراء مؤلف ابن قادسی د خالد برمکی وفات د روم له‌غزا څخه د هارون‌رشید دراګرځېدو سره سم دستی په ( ۱٦۳ هق ) کال ګڼی ، او لیکی چی خلیفه مهدی ده‌ته کفن واستاوه او هارون رشید دجنازې نمونځ ورکیء . خو ابن عساکر چی ابن خلکان د هغه له تاریخ دمشق څخه روایت کوی دده مړینه په( ۱٦٥ هق) کال ګڼلی ده .

لکه څنګه‌چه‌سورخان لیکی خالد برمکی یو زړور، ځوانمرد ، سخی ' پوه او دحیر انوونکی ذکا خاوند او په عین حال کی یو هیبتناك او د خراسانی او عجمی خو یو څښتن‌امیرو .

وایی هغه وخت چی‌خلیفه منصور و غوښته چه په مداین کی‌د کسری ماڼی‌ورانه کړی او د هغې له‌مسالې څخه دبغداد په نوې وداڼی کی کار وا خلی خالد د هغی تاریخی ماڼی په نړولو رایه‌ور نه کړه ، او منصو ر په قهر ورته‌وو یل:

« هیهات ! ستادا مخالفت بې‌له دې چی عجم ته‌میل لرې بل دلیل نه لري ».

د خالد بخښنه او سخا دې حد ته رسېدلې وه چې د مثال په توگه د عربي ژبې نقاد شاعربشار تخارستاني ته ئې د هر بيت په عوض کې چې د ده ئې ستايلې و، لس زره درهمه صله ورکړه، او حتى په يوه غونډه کې ئې دېرش زره‌درهمه د يوې مدحيې په مقابل کې ور وبخښل او دا هغه متعصب او عجم پرست او د عربو د سلطې سخالف شاعرو، چې‌دی ئې په همدې گناه زنديق وباله او وئې واژه.

**۱٦۱ - ه ش** «سامان خدا »دسامانيانو ستر نيکه چې ساماني سلسله ده ته منسوبه
**۱٦٦ - ه ق** ده، له بلخه د يوې بلوا په اثر د خراسان والي دعبدالله زوی اسدته
**۷۸۲ - م** ورغی،او هغه‌ئه موده وروسته‌دبلخ حکومت ده ته ور وسپاره.

«سامان خدا» د بلخ ښار ته نژدې د «سامان» په کلي کې زېږېدلی ، او لومړی دزرد شتي‌دين پيرو ،خو هغه وخت‌چې خليفه مامون‌په مروکې‌اوسېد،ده زرد شتي دين پرېښوو او د هغه‌پرلاس مسلمان سو.

تر «سامان خدا »وروسته ئې«اسد» نومی زوی‌دبلخ‌دحکومت‌واگې په لاس‌کې واخيستلې او هغه وخت چې خليفه هارون رشيد د خپل زوی‌مأمون سره درافع بن ليث د مخنيوی‌دپاره خراسان ته راغی‌،اسد د خليفه سره ډېره‌مرسته وکړه، نوبيا چې مأمون د طاهر ذوا ليمينين پوشنگی په مرسته تر خلافت ته‌ورسېد،دخراسان والی غسان بن عبادته ئې توصيه وکړه چې د آل سامان د خدمتو په عوض دی د اسد د زامنو سره ښه کوی ، غسان هم د چاچ او اشروسنه‌حکومت يحيی اوهرات ئې‌الياس اوسمرقند او فرغانه‌ئې نوح او احمد د اسد زامنوته ورکړ د چې له هغو څخه د سامانيانو کورنی په ماوراءالنهر او بيا په خراسان کې‌امارت کړی دی او امير اسمعيل نومی‌ساماني د سامانيانو د پاچهی بنسټ‌کښېښوو «عنصری وايی:

نه کس بود ند ز آل سامان مذکور
دا ئم با مارت خراسان مشهور
اسمعيل است و احمدی و نصری
دو نوح ود وعبدالملک ودومنصور

**۱٦۳ - ه ش** عباسي خليفه مهدی خراسان د سليمان طوسي زوی ابوالعباس
**۱٦۷ - ه ق** فضل ته ورکی‌، او هغه د ځان‌له‌خوا د همدې د محرمی په‌سياشت
**۷۸۳ - م** دېشيرزوی‌سعيدخراسان ته ولېږه ، او په‌خپله دربيع الاول په مياشت

خر اسان ته راغیء ، د خلکو سره ئې ښه کول ، او هغه خراج چې د پخوا نی والی «مسیب» له خوا زیات کړه سوی و ، خلکو ته ئې بښنه ، او د سر و هغه او به چې سر هنگانو په زور له خلکو څخه گرځولی وې بېرته د مرو خلکو ته ور کړې ، د لښکر تنخا ئې زیا ته کړه ، او د مرو مسجد ئې لوی کړیء ، باغونه ئې دېر کړه ، او د آمو په بیابان کې ئې د «فضل آباد» ښار ودان کړیء ، او د سغد او بخا را تر منځ ئې لوی د یوال و غځا وه چې له ترکا نو څخه په امان وی او د ها رون رشید د خلافت تر وخته په خرا سان کې و ، ډېرا صلاحات او گټو رکا رونه ئې و کړه ، او د خرا سان د خلکو په زړو کې ئې ځای و نیو.



په همدې کال د عربی ژبې او رژبې او نو میا لی شاعر چې د افغا نستان و ، د بغداد د خلیفه مهدی په ا سر دا لحا د په تور او یا درې وو هل سو ، او د خلیفه د جلا دا نو تر وهلو لا ندې ئې ژوند پای ته ورسېد او په بصره کې ښخ سو.

دا شا عر ابو معا ذ بشار د برد زوی او د یر جوخ تخاری نمسی و ، چې پلا رئې په هغو بند یا نو کې چې د ابی صفره زوی مهلب د (۷۹- او - ۸۲ ه ق)

کـلو تر منځ له تخا ره بصرې تـه بېول سو ی و ، او بشار په (۹۵ ه ق) کال په بصره کې زونډ و زیږ ېد .

دی رند او هجوو یونکی زړور شاعر و ، تیره ژبه ئې درلو دله ، او د خپلو نیکه گانو د ین مجوسیت ئې ستا یه ، او اور ئې مقدس باله او پخپل عجمی اصل او نسب ئې ویاړ ل او په زلمیتوب کې د اعتز ال د مذ هب د مؤسس «و اصل» د عطا د زوی ملگری و .

د تخا رستان دا نو میا لی شا عر ئې که څه هم په ښکاره دا لحا د په تورووا ژه خو په حقیقت کې خیر ه دا وه چې ده د خپل عجمي ملیت سره خو راز یاته او ټینگه مینه درلودله او دده ملی تعصب دې حد ته رسید لی و ، چې په څرگند ه ئې د زردشت دد ین ستا ینه کوله او و یل به ئې :

الا رض مظلمة و النا ر مشر قة

و النا ر معبود ة مذ کا نت النا ر

یعنی : « مځکه تیا ره او اور رونا ده ، ځکه نو اور تر څو چې اور وي د نمانځنې و ړ د ی».

د خپل عجمیت په ستاینه او د عربو د بیځایه افتخار په غند نه کی وایی :

سأخبر فاخر الاعراب عنی
وعنه حین تاذن بالفخار

احین کسیت بعد العری خزاً
ونادمت الکرام علی العقار ؟

تفاخر یا ابن راعیة وراع
بنی الاحرار حسبک ن خسار

وکنت اذا ظمئت الی قراح
شرکت الکلب فی ولغ الاطار

ترجمه : فخرکوونکی عرب ته به د خپل ځان او دده د هویت او افتخار د څرګندولو په وخت کی ووایم چی: آیا تر بربنډتیا وروسته دی خزا غوستی دی ، او د ښاغلو سره همپیاله شوی یې ؟

ای دچوپان زویه ! که د آزادګانو دزامنو سره مفاخره کوې ، همدا زیان دې بس دی ، حال داچی که‌تږی سې نودسپی سره په یوه لوښی کی اوبه څښې !

ده په‌خپلو اشعارو کی د ښځو او پیغلو ډیری ستاینی کړی دی ، او ښځو د ده پر اشعارو داسې زړونه‌بایللی‌وو ، چی سندر غاړو ښغلو په‌ټول عراق کی‌دده اشعار په‌خپلو سندرو کی‌بوالل ، پیغلو به‌دده پرکور یرغل وروړ ، اودده خواږه اشعار به ئې ځینی غوښتل ، لکه چی د هغه وخت یوزاهد به‌چی مالك بن‌دینار نومېده ویل : «د بصرې دخلکو د پاره ددې ړانده شاعر تر اشعارو بل هیڅ شی دفسق په‌لاره کی اغیزه ناك نه‌دی» .

بشار دسماع ، ساز اوسرود سره زیاته مینه دراودله لکه چی وایی :

یا قوم اذنی لبعض الحی عاشقة
والاذن تعشق قبل العین احیانا

قالوا ! بمن لا تری تهذی فقلت لهم
الاذن کالعین توفی القلب ما کانا

ترجمه : «ای خلکو ! زما غوږ دقبیلې د خلکو پر یوه چا مین دی ، او کله غوږ تر ستر ګی د مخه مین کیږی .

دوی وویل : ولی چټیات وابي ؟ سادو ی‌ته وویل : غوېډسترګی په‌څېر زړه هغه ځای‌ته رسوي چی غواړی ئې »

**۱۶۴- ه ش** عباسي خلیفه مهدی مړسو ، او دهغه پرځای ئې زوی «هادی»دعباسیانو
**۱۶۹ - ه ق** دخلافت پرمسند کېښنوست ، اوده هم د خراسان امارت د سلیمان زوی
**۷۸۵ - م** فضل ته پر ېښوو ، او سیستان ته ئې د سعید زوی تمیم واستاوه . تمیم دهمدې کال دصفری دمیاشتی په ۲۲ دشنبې په ورځ سیستان‌ته ورسېد ، اودفرقد زوی بشر ئې دسیستان دخراج دعامل په‌حیث دځان سره راووست ، چی‌څه موده وروسته ئې بشر د خپل نائب په‌توګه په‌سیستان کی‌پرېښوو ، اوپخپله بست‌ته ولاړ ، اوله‌هغه ځایه درخج (اوسنی کندهار) خواته و خوځېد ، اودرتبیل پاچا سره و جنګېد، د رتبیل ورور ئې بندی و نیو ، او عراق ته ئې واستاوه .

*✿*

په همدې کال د فقه لوی عالم ابو سهل نصر دعبد الکریم بلخی زوی معروف په صیقل مړ سو .

**۱۶۵- ه ش** عباسي خلیفه هادی مړ سو ، او د هغه پرځا ی ئې ورور « هارون رشید »
**۱۷۰ - ه ق** دخلافت پرمسند کېښنوست ، ده دسیستان اداره هم‌دسلیمان طوسی زوی
**۷۸۶ - م** فضل دخراسان والی ته وسپارله ، اوهغه‌دعبدالحمید زوی‌اصرم‌دسیستان په حکومت وګماره .

***

دهمدې کال په‌شاوخوا کی امیر بنجی نهاران دغو ر دامارت پرتخت کېښنوست او شیش دبهرام زوی ئې‌سره سالا رسو . قاضی منهاج سراج جوزجانی په طبقا ت ناصری کی د امیر بنجی دنسب سلسله داسی لیکلې‌ده : « بنجی دنهاران‌زوی ، نهاران ددرمیس زوی ، درمیس‌د وزن زوی ، وزن دهین زوی ، هین دبهرام زوی ، بهرام‌دحجش زوی ، حجش دحسن زوی، حسن‌د ابراهیم زوی ، ابراهیم دسعدل زوی ، سعدل دباسد زوی ، باسد د سداد (شداد) زوی ؛ او سداد د ضحاك زوی » اوهم لیکی‌چی : « امیر بزرگ بود ... واورا از کبار سلوك غور دانند ، وجمله سلاطین ازفرزندان اوبودند . . . امیربنجی بس خوبروی وگز یده اخلاق بود ، وبه همه اوصاف ستوده . . . ».

په غور کې د امیربنجي پاچهي اودشیش سپه سالاری دخلیفه هارون رشید له خواهم تائید او پیژندنې سوې وه ، دمنهاج سراج په قول امیربنجي اوشیش بغداد ته هم تللی اودها رون رشید سره ئې لیدلی وو ، اوهارون رشید امیربنجي ته د «قسیم امیرالمومنین» لقب هم ورکړی و .

**۱۶۶- هـ ش** هارون رشید دخراسان امارت دمحمد زوی جعفرته ورکړ ، او د همدې
**۱۷۱- هـ ق** کال د ذی الحجې په میاشت خپل زوی عباس کابل ته ولیږه او « شابهار » ئې
**۷۸۷ - م** ونیو ، اوهرڅه چې په « شابهار» کې وو ، هغه ټول ئې ولجه کړه .

«شابهار » په کابلستان کې یو بود تون (معبد) و ، چې د «بهار» کلمه په سنسکریت کې د «وهاره» په شکل دمعبد او دنمنځ ځی په معنا راغلې ده او «شابهار» یعنې د معبد پاچا ، او په دې نامه په افغانستان کې څو بودتونونه سته ، اودا بودتونونه ئې ځکه د « شا بها ر » د «پاچا بودتون» په نامه یادول چې په هغوکې د پاچاهانو مجسمې ایښوولې کېدلې .



او په همدې کال هارون رشید دسیستان حکومت دحمید زوی عبدالله ته وسپاره ، او هغه د دې کال د رجب دمیاشتې په اتمه سیستان ته راغی .



او په همدې کال دبلخ لوی عالم اونومیالی قاضی عمر دمیمون رماح زوی په بلخ کې مړسو .

**۱۶۷ - هـ ش** دعمارهٔ مزنی زوی عثمان چې د هارون رشید له خوا دسیستان په امارت ټاکلی
**۱۷۲ - هـ ق** سوی و ، دهمدې کال دجمادی الا ولی دمیاشتې په ۲۳ دسیستان مرکز
**۷۸۸ - م** ته را ورسید او څنګه چې دخلکو په خولو کې او ریدلی وه چې په سیستا ن کې دارو دوړ را وستونکی دسیستان دخراج عامل دفرقد زوی بشر دی نودرا رسیدو په لومړی ورځ ئې هغه وواژه ، بیائې نوخپل زوی «صدقه» دیو لوی لښکر سره بست ته ولیږه ، او هغه له بسته رخج ته ولاړ او دهغو آزادی غوښتو نکو سره وجنګید چې دهلمند او ارغنداو ترمنځ دخپلوا کې اعلان کړی و ، دېر آزادی غو ښتونکی ئې ووژل ، او بیرته بست ته وګرځید او هلته مېشته سو .

**۱۶۸ - هـ ش** دخرا سان والی جعفر دګوزڼ ( فلج ) په ناروغی مړ سو ، او ها رو ن
**۱۷۳ - هـ ق** رشید دهغه پرځای دهغه زوی عباس د خرا سان امیر وټا که ، او هغه
**۷۸۹ - م** په خرا سان کې دخپل پلار پرلا رتګ ، اوترډرو کالو پوری دخراسان امیرو .

**۱۷۰ - ھ ش** هارون رشید دخراسان امارت دعطا کندی زوی غطریف تەچی د د ه
**۱۷۵ - ھ ق** له خیښانو او باوریانو څخه و ، ورکړی ، اوغطر یف دډیر قوت سره
**۷۹۱ - م** خراسان ته راغی اودغطریفی درهم سکه ئې ووهله. دا هغه وخت و، چې دسیستان
آزا دی غوښتونکو دعربو دسلطې پر ضد دعباسی خلافت پرلښکر او کارد ارانو یرغل، اوحملې کولی
دآزادی غوښتو نکو مشر حصین - یا حضین نوسید چې په همدی کال دسیستا ن دا و ق له
سیمی څخه راوتلی او پاڅیدلی و . که څه هم دسیستان امیرد عماره زوی عثمان دحصین دمخنیوی
دپاره لښکر استولی و ، خو لښکر ئې ماته کړی وه اوحصین ترهرات او پوشنګ او با دغیس
پوری پر سخ ولاړ هغه و ،چې غطر یف دیزید زوی داؤد دد ولسو زرو جګړ نو سره د حصین
مقا بلې ته ولیږه .

**۱۷۱ - ھ ش** هارون رشید دخراسان امارت له غطریفه واخیست اودما لک خزا عی
**۱۷٦ - ھ ق** زوی حمزه ته چې په (عروس)ملقب و ، ورکړ ا و د ا ؤ دبشر ملهبی ئې
**۷۹۲ - م** سیستان ته راولیږه اوهغه دربیع الاول په یوولسمه د پنجشنبې په ورځ سیستان ته
را ورسید .



او په همد ی کال د یحیی برمکی بلخی ز و ی جعفر دها ر و ن ر شید له خوا د مصر په
حکمرانی وګمارل سو ، اوهغه بیاله خپلی خوا دمهرا ن زوی عمر مصر ته ولیږ ه .

**۱۷۲ - ھ ش** حمز ه دخراسان امیر سړ سو ، اوهارون رشید دهغه پرځای دیحیی بر مکی
**۱۷۷ - ھ ق** بلخی زوی فضل دخراسان امیروټاکه ، ارمنیه او ری ئې هم ورو سپار ه
**۷۹۳ - م** (۱) چې هغه بیاله خپلی خوا دمعاذ زو ی یحیی دهمد ی کا ل په رو ژه
کی خراسا ن ته وا ستاوه .

**۱۷۳-ھش** د یحیی برمکی بلخی زوی فضل چې دهارون رشید له خوا دخرا سان ا و له
**۱۷۸ - ھ ق** ګرګانه نیولی تر کرمان اوسیستان پوری د خلافت د ټولو سیمو په امارت ګمارلی سو ی
**۷۹۴ - م** و ،دهمدی کـال د محـرمی په سیا شت خـراسان ته راغی ،او دخراسان
دشمالی ولایا تو په سمو ن ئې لاس پوری کړ. دماورا النهر دسیمو تر سمون اوتصفیی وروسته
ئې دجبل زو ی ا بر ا هیم د کا بیسا نیو لو ته وګما ر ه ، چې د بو د ا ئی کا بلشا ها نو
پایتخت و، ا و هغـه دبامیان دشیر زوی حسن دځان ملګری کړ او هغه ئې دهغه دنیکه په نامه

---

( ۱ ) ځینی دیحیی دزوی فضل ګمار ل په (۱۷٦ ھ ق ) کی ګڼی .

« شیربا میان » وباله او هم ئې حکومت پهر سمیت و پېژاند او بیا ئې د غور بندښار ، او د غور بند کوتل او سور بت ( سرخ بت ) او د قندقستان دره ونیول او د « شا بهار » بودتون ( معبد ) ئې وران کړ او د هغه بودتون بت ئې وسوځاوه ، او په همدې سبب د کاپیسا پایتخت د لوګر د رود پرغاړه د کابل « شیوا ئی » ته منتقل سو . خو سره له دې هم ځنګه چې د فضل برمکي په رګو کې خراساني وینې وې نو د خپل امارت په موده کې ئې زیاتره د خراسان او د خراسان د خلکو ګټې تر نظر لاندې نیولې ، او تر خپله وسه ئې زیار ویوست چې خراسان لا ښه ودان ، او خراسانیان هوسا کړي ، ځکه ئې نو د عباسي د نورو امیرانو د رویې پر خلاف د مواخذې او له خلکو څخه په ناحقه د مالو اخیستلو سیاست نه تطبیقاوه ، او نه ئې غوښتله چې د خراسان د خلکو مالي بنیه کمزورې سي ، له همدې امله ئې هغه مالیې چه پر خلکو پاته وې خلکو ته ور وبخښلې او دفترونه ئې وسېځل ، او د لښکر تنخائې زیاته کړه ، د ظلم او ستم رواج ئې له منځه ویوست ، او په یوه کال کې ئې لس میلیونه درهمه خپلو کاردارانو او مستحقینو ته وبخښل . په خراسان کې ئې مسجدونه ، رباطونه او د ښېلو د اوبو ډنډونه د خلکو د هوسائی دپاره ودان کړه ، او د بلخ په ښار کې ئې یوه لویه ویاله وکښله ، او هم ئې د بلخ د « نو بهار » د پخواني بودتون ( معبد ) په یوه ګوټ کې چې دده نیکه ګان د هغه بودتون متولیان وو ، یو مسجد ودان کړ ، چې د بلخ له خورا زړو مسجدو څخه ګڼل کېږي ، او هم ئې د خراسانیانو څخه یو خاص لښکر جوړ کړ چې شمېر ئې پنځه سوه زروتنو ته رسېده ، او همدا رنګه ئې د کاغذ جوړولو صنعت چې یو مرکز ئې په سمرقند کې و ، تقویه کړ ، او د کاغذ جوړولو څو تنه ماهر صنعتګران ئې بغداد ته واستول چې دوی هلته د کاغذ جوړولو کارخانې جوړې کړي .

فضل برمکي او نور برمکیان د خراسان او خراسانیانو په باب د دې ښه سلوک احساس په لاره کې دونې پرمخ ولاړل چې د هارون رشید زړه له برمکیانو څخه سوړ ، او حتی د برمکیانو د کهاله د تباهي په هڅه کې سو .

خو بالعکس خراسانیان له فضل برمکي څخه تر دې حده خوښ او منتباره وو ، چې دده په احترام او نمانځنه ئې دده د امارت په دوره کې شل زره نوي زېږېدلي کوچنیان دده په نامه « فضل » نومړي کړي وو .

له بل پلوه فضل برمکي د عباسي خلافت له هغو نومیالو وزیرانو څخه و ، چې د « حاتم الاسلام و خاتم الکرام » په لقب بللی سوی دی .

**۱۷۴ ه ش** فضل برمکي د سیستان حکومت دجبریل زوی ابراهیم‌ته‌و سپاره او هغه
**۱۷۹-ه ق** د همدې کال‌د ربیع الاول په میاشت دشنبې په‌ورځ زرنج ته راورسېد
**۷۹۵ م** او له هغه ځایه ئې دبست او رخج خواته لښکر و یوست ، او ددې سیمو
د آزادې غوښتونکو سره ئې جګړه‌وکړه او بری ئې و موند ، او بیا کابل‌ته راغی او له
کابله دېرو ولجوسره‌بیرته سیستان ته ولاړ ، او په سیستان کې ئې دمروان خارجي دزوی‌عمر
سره چې د نورو آزادې غوښتونکو سره د عربو د سلطې پرضد پاڅېدلی‌و ، سخته‌جګړه‌وکړه.

*✿*

او په همدې کال هارون رشید دخراسان امارت د یزید حمیري زوی منصور ته وسپاره او
هغه دذیحجه په میاشت کې‌خراسان ته راغی ، خودخراسان خلک د فضل برمکي په‌عزل‌ډېر
سخت خوا شیني سول ، نو ځکه په خراسان او سیستان کې خلک وهار پدل
او شورښتونه ئې جوړ کړل .

**۱۷۵ ه ش** هارون رشید دخراسان امارت د عیسی زوی او د هامان نمسي علي ته
**۱۸۰ ه ق** ورکیء ، او هغه‌خپل‌زوی یحیی‌خراسان ته‌او دحصین قحطبه زوی علي
**۷۹۶ م** سیستان ته ولېږل . دده د پیر د منصورمرو زي زوی حفص و ، چې د
« خراج‌خراسان» کتاب‌ئې تالیف‌کړی‌دی ، خو پخپله‌علي د عیسی‌زوی یو ستمګر او پرغلګر
سړی و ، چې په‌لس کاله امارت کې ئې له خراسانه‌خو را زیات مالونه ټول کړه ، او دونې
ډېر مال ، سرپان ، مینځې ، اسان ، کالي ، سره او سپین زر ، دمشکو نافې ، عنبر ، سموران او
نور قیمتي شیان هارون رشید ته واستول چې د هارون رشید سترګې ئې په لید ووبرېښېدلې ، او
هغکه چې ـ فضل برمکي د امارت په‌وخت کې د هغه مالو یوه لسمه برخه هم‌بغداد ته نه‌وه
رسېدلې ، نو هارون رشید د فضل برمکي پلار یحیی برمکي ته د طنز په توګه وویل :

« تاویل چې د عیسی زوی علي‌خراسان ته مه لېږه او ماستا مخالفت وکیء ، اوس هغه
مخالفت څو نې ډېر مبارك سو ؟ »

یحیی‌برمکي ور ته وویل : « هو ، که دا کار و روسته د سر دردو نه‌لري ـ داځکه‌چې‌له
خراسانه د دونې زیات مال‌او متاع تر اخیستلو وروسته ممکنه ده د هغه‌ولایت دبیرته سمون
او نظام دپاره به ددې مالو د یوه درهم په عوض د لسو درهمو مصرف ته ضرورت پېښ‌سي
او دې علي تر څو چې‌لس‌چنده ئې د ځان‌د پاره نه‌وي‌ګرځولی دادونه مالونه ئې امیرالمؤمنین

ته‌نه‌دی راوړی ، اوچې خراسان له‌ساله تش‌سی ، خلک‌له مصادرو څخه په‌تنګیړی او مخالفان به‌پاڅیږی چې هغه‌وخت به‌ئې نوبیا سخنیوی ګران وی »



په‌همدې کال په‌شام کی لویه بلوا پېښه‌سوه ، او هارون رشیددیحیی‌برمکی بلخی‌دبل زوی جعفر برمکی په‌مشری یولوی لښکر هغی خواته ولېږه اوجعفر برمکی ته‌ئې‌وویل : «دې‌جګړې ته ، ته پخپله ولاړسه ، که‌نه‌وی زه به پخپله ولاړسم» جعفربرمکی و لاړاو دشام حالات ئې سم‌او آرام کړه ، اوچې بېرته بغداد ته ورسېد نوهارون رشید هغه ددربار د ساتونکی‌ګارد په مالاری وټاکه ، اوپه درنه سترګه ئې ورته کتل .

**۱۷٦- ه ش** حمزه د«اترک» یا «عبدالله» زوی په سیستان کی دیو ې دلی آزادی
**۱۸۱ - ه ق** غوښتونکو په‌مشری‌دعربو دسلطې او دعباسی دولت دحاکمانو دظلم
**۷۹۷ - م** اوستم پرخلاف پاڅېد.دی د «زوطهماسب» له‌نسله یوزړور اوپوه امیرو .

لوسړی‌ئې یوبی ادبه عباسی حاکم تنبیه‌کی‌ء او سمی لاری ته‌ئې وباله ، هغه ظالم حاکم دده بلنه ونه‌منله اوداامیرحمزه تباهی ته ئې ملا وتړله خو پخپله حاکم ووژل سو . تر هغه وروسته امیر حمزه حج‌ته ولاړاوپه لاره کی دعباسیانو دسرسختو مخالفانو (دخوارجوله‌مشرانو سره اشنا سو ، اوچې‌بېرته سیستان ته‌راغی دعباسیانو دسلطې د مخالفو آزادی غوښتونکو مشر وټاکل سو ، اوترپنځو زرو ډېر آزادی غوښتونکی پر راټول‌سول او بیعت ئې ورسره وکیء، څوچې‌دخراسان امیر دعیسی زوی علی خپل زوی عیسی د یو لوی لښکر سره د ده مقابلې ته را ولېږه .

**۱۷۷- ه ش** ددې کال دشوال په‌میاشت‌دجمعې په ورځ‌دامیر حمزهٔ سیستانی او
**۱۸۲ - ه ق** دخراسان دعباسی امیر دزوی عیسی ترمنځ جګړه وښتله ،عیسی‌ماته
**۷۹۸ - م** وکړه او دبیابان له‌لاری‌خراسان‌ته‌وتښتېد ، اودهغه وخت د عربی ژبی یوشاعرده ته په یوشعرکی پېغور ورکړی‌و ، چی‌ترجمه ئې داسی ده : «ای‌دعلی زویه ! په‌دې بېټی بیابان کی‌چېری تښتې ؟ دسخه تردې خونې ته‌دنیستان زمری ګنلې ، حال دا چی‌ته دحمزه په‌مقابل کی دبېری او جبن مثل سوې ؟ ! »

امیرحمزه دسیستان خلک دبغداد دربارته له مالیو استولو څخه منع کړه ، اوهم پخپله ئې خلکوته وعده ورکړه چه‌له دوی څخه‌به‌هیڅ دول باج‌او خراج نه‌اخلی ، اوپه د ې‌ترتیب ئې سیستان د عربو له سلطې څخه وژغوره .

په همدې کال په عربي ژبه کې د خراسان نامتو شاعر دسلیمان زوی مروان چه داېو حفصه طبیب له نسله و دشیعیانو په لاس ووژل سو. دی دخلیفه مهدی ستاینه‌وی (مداح) او په (۱۰۳ ه) کال زیږېدلی و. په شعرکې دپخوانیو پرلارتیء، اودلغت پو هانو او ادیبا نو په درنه سترگه ورته کتل، اومحمد بن اعرابی دشعر شرح پرده ختمه کړې ده.

مهدی اوهارون رشید دبغدا د خلیفه گانو دده دهری ستاینې په عوض کې لس لس زره درهمه صلې ورکولې، حتی یوه عربی بهای معن بن زا ئد دیوې قصیدې په صله کې نیوی زره (۹۰۰۰۰) درهمه ورکړه، خو پخپله مروان په بخل مشهور و. دابیت دده دی:

اری القلب اسسی با لا وا نس مولعا
وا ن کا ن من عهد ا لصبا قد تمتعا

ترجمه: «لاتراوسه می‌زړه دښکلو لیدوته سرابن (حریص) دی، که څه هم په کوچنیوالی می‌له‌دوی څخه خوند اخیستی دی»



په همدې کال دبلخ یو نومیالی محدث او مشهور شیخ د جمیل بلخی زوی وسیم وفات او په بلخ کې ښخ کړه سو.

**۱۸۰- ه ش** امیر حمزهٔ سیستانی ترهغه وروسته چې‌سیستان ئې دعباسی حاکما نو له

**۱۸۵ - ه ق** ظلمه وژغوره نوپه‌دې کال‌ئې دخراسان خواته‌اښکرو یوست، دهرات

**۸۰۱ - م** عباسی حکمران دیزیدازدی زوی عمرو یه دشپږ زرو جگړنو سره‌دحمزه مقابلې‌ته ورووت، خوامیرحمزه هغوته ما ته ورکړه او پخپله عمرویه ئې وواژه او تر باد غیس اوپوشنگ پورې پرسخ ولاړ. بیانودخراسان عباسی امیر دعیسی زوی علی خپل زوی حسین د لسو زرو جگړنو سره دامیر حمزه د مخنیوی د پا ره ولیږه، خوهغه هم دمقابلې توان په ځان کې ونه‌لید،دروغی لیک ئې دزکاته سره حمزه ته‌واستاوه اوجگړه ئې ونه‌کړه، څوچې په خراسان کې‌دعباسی دولت امیر علی خپل بل‌زوی عیسی دیوه لوی سجهزلښکر سره دامیرحمزه جگړې ته وگماره، چې امیرحمزه هغه هم په‌لوسړ ی جنگ کې مات کی‌ءاودبلخ خواته ئې وتښتا وه، خوپلار ئې دخپل زوی ملاتړ ته تازه دمه قوا ورولیږله اوداملاتړ دامیرحمزهٔ سیستانی دماتې سبب سو، اوعیسی دامیر حمزهٔترماتې وروسته‌دسیستان‌د «اوق» او «جوین» پرسیمو پر غل وکړه، اوهرځای ئې هغه‌خلک ووژل چې‌دامیرحمزه ملگری ئې‌کړې اودهغه ملاتړ ئې‌ترلې وه، څوچې ددې بې وسلو کسانو دوژلو شمېر دېرشو زرو تنوته ورسېد، اوهم ئې دسیستان له خلکو درې

میلیونه درهمه په‌زوره واخیستل، اوبیائې‌نودزابلستان اوکندهار خواته مخه کړه او تر کابله ورسید .

۱۸۱ ـ ه ش هارون رشید خپل زوی عبدالله مامون د ځان‌ولیعهدو ټاکه او
۱۸۶ ـ ه ق خراسان ئې هغه ته ورکړ ،خود خراسان دامارت‌واکې هم‌هغه ته
۸۰۲ ـ م عیسی دزوی علي‌په‌لاس کې پاته‌سولې چې‌په‌همدې کال‌ئې‌دعثمان طارابي زوی صیف دجګړې د سالار او د قضائي چارو د واکدار په حیث سیستان ته و لیږه ، او دمحمد قوسي زوی حصین ئې د سیستان‌دخراج عامل و ټاکه .

۱۸۲ ـ ه ش جعفر برمکي‌د یحیی برمکي‌بلخي‌نومیالی‌زوی‌اود هارون‌رشیدنامتو وزیر د
۱۸۷ ـ ه ق همدې‌کال‌دمحرمې‌په‌پای کې‌دشنبې‌په‌شپه‌د هارون‌رشید په امر ووژل‌سو،
۸۰۲ ـ م سراو بدن‌ئې‌دبغداد پر جسروزړاو ه،اود همهغې‌نېټې‌راهیسې‌دبرمکي کهول بدمرغې شروع سوله ـ دا ځکه چې‌یحیی برمکي دخپلو څلورو زامنو سره د عباسي دولت چارې داسې په‌خپلوا که توګه په لاس کې نیولې وې چې هارون رشید ته یې د «امیرالمؤمنین» له‌نامه څخه بل څه ور پاته نه‌و . که څه هم وایي چې پر جعفر برمکي‌باندې د هارون‌رشید د غضب یو سبب دا هم و ، چې هارون رشید خپله خور «عباسه» جعفر ته په نکاح کړې و ه ، خودا ئې‌شرط ایښی و ، چې ورسره به نه یېدېږي مگر جعفر او عباسه د بشري اوطبیعي غوښتنې په اساس هغه شرط مات‌کړ ، سره یېده‌سول او یو کوچنی ئې وزیږید ، هارون‌رشید چې په‌خبرسو ،نو جعفر برمکي ئې ووژه، خو اساسي علت ئې دخلافت له چارو څخه د هارون رشید د اختیار سلبېدل او د بلخي بر مکیانو تسلط و . ځکه نو هارون رشید جعفر بر مکي تر وژلو وروسته د هغه پلار یحیی برمکي د هغه د کهاله د نورو تنو سره چه دوه زامن ئې فضل برمکي او موسی برمکي هم پکښې و ه په‌زندان کې‌واچاو ه ، او دبر مکیانو ټول‌مال او جایداد ئې ضبط کړ ه ، چې قیمت ئې دیرشو میلیو نو او ۶۷۶ زرو دینا رو ته رسېده چې دا ټکل په ږول سل میلو نه افغا نۍ کېدلې .

۱۸۳ ه ش امیر حمزه‌سیستانی بیا له خراسانه پر سیستان‌یرغل و کړ او د ز رنج په
۱۸۸ ه ق چونې کې ئې د عباسي دولت‌ټول کارداران‌ووژل‌او دښار ورته نژدې
۸۰۳ م ئې دخراسان د امیر دزوی عیسی‌سره سخته‌جګړه وکړه ، اوبیا بیر ته د خراسان خواته ولاړ.

**۱۸۴ - ه ش** امیر حمزهٔ سیستانی د دېرشو زرو سپرو سره بیا هم سیستان ته راغی ، او
**۱۸۹ - ه ق** دخراسان عباسی امیر دعیسی زوی علی یو لیك هارون رشید ته واستاوه
**۸۰۴ - م** او په هغه کی یې و لیکل چی :

« دسیستان له خوا ر جو ځخه یوسړی پورته سوی دی، پر خراسان ترکرمان یرغلونه کوي اودد ې سیمو ټول کارداران وژنی ، یودرم او یوحبه مالیه له خراسان او سیستان او کرمان نه لاس ته نه راځی هارون رشید ته چی دخراسان او سیستان دگډوډۍ خبر ورسید، نو پخپله مجبور سو چی خراسان ته راسی ، او چی « ری » ته ورسید د خپل ستمگر امیر ( د عیسی زوی علی) له چور او چپاوه خبر سو ، ځکه یې نود همد ې کال دجمادی الاولی په میاشت دقاضیانو یو ډیټ یې د هغه د مال او جایداد محاسبې ته وگماړل چی تر محاسبې وروسته د عیسی د زوی علی (دخراسان دعباسی امیر ) شتمنی اتیا میلیونو درهمو ته رسیدله، حال دا چی د امیر زوی د بلخ دخپل یوه کور په بڼ کی دېرش میلیونه درهمه په مځکه کی پټ کړی وو. هغه وخت چی ددی امیر دشتمنی مصادرې امر ورکړه سو ، دده شتمنی پر یو زر او پنځه سوو اوښانو گرگان ته دهارون رشید حضور ته یووړه سوله . هارون رشید سخت په قهر سواو یوله غضبه ډك فرمان یې پخپل قلم دامیر علی دعزل په باب کی ولیکه او هغه ته یې دلنډی (فاحشې) دزوی خطاب و کړی ».

**۱۸۵- ه ش** ددې کال دمحرمی په دریمه ورځ ابوالفضل یحیی برمکی باخی دخالد
**۱۹۰- ه ق** برمکی زوی دهارون رشید ناستو و زیر او یو هیا لی روز و نکی په
**۸۰۵- م** او یا کلنی یا په څنور او یا کانی دبغداد دفرات پر غاړه په « را فقه » کی تر درو کالو بند وروسته مړ ، او په « ربض هرثمه » کی ښخ کړه سو .

دی ژبور او فکور ادیب او په لاس کی خلاص سړی و ، څنگه چی پلار یې د عباسی دربار له مهمو غړو ځخه گڼل کېده نو دی هم د بغداد په دربار کی روزلی سری اولوړو منصبو ته رسېدلی و .

په ۱۵۸ ه ق = ۷۷۴ م کال د خلیفه منصور په وخت کی چی دده پلار د موصل په حکمرانی و گمارل سو ، یحیی دآذربایجان په حکومت وټاکل سو ، اودمنصور تر مړینی پوری هلته و .

د خلیفه مهدی په دوره کی پلار اوزوی دواړه د بغداد ددربار مهم رکنونه گڼل کېده او یحیی ته دشهزاده هارون روزنه سپارلې سوې وه ، اوپه (۱۶۳ ه ق) کال چی خلیفه مهدی

خپل زوی هارون آذربایجان او ارمنییه دټولو ولایاتو په اماړت وټاکه نو یحیی برمکی ئې دهغه دسرمنشي په حیث مقرر کړی‌ء او شپږکاله دهارون سره پاته سو .

د خلیفه مهدی ترمړینی وروسته ئې دهارون له مور «ملکه خیزران » سره د هغه هیواد په اداري او درباري چارو کی گټوری مرستی اولاړښوونی وکړې چی دده په ښه تدبیر او زیار دسپاهیانو بلوا داتاسو میاشتو دتنخا په ورکولو آرامه کړه سوه اودهارون ورور«هادی» دبغداد خلافت ته ورسېد ، خو دملکې او د هغې دزوی « هادی » ترمنځ پرولیعهدی باندی اختلاف پېښ ، او یحیی دملکې پرخواسو ، نو ځکه خلیفه هادی خپل ورور « هارون» او یحیی برمکی بند یان کړه ، ځوچی د (۱۷۰ه ق )کال دربیع الاول دمیاشتی په څورلسمه شپه خلیفه هادی ووژل سو ، او هارون او یحیی اېله سول ، او څنگه چی یحیی برمکی د هارون روزونکی او پالونکی و ، نو هغه وخت چی هارون خلیفه سو، نو یحیی ئې خپل وزیر وټاکه او خپله گوتمی ئې ورکړه ، او یحیی برمکی هم دخلافت چارې دملکه خیزران په گډون په ډېر ښه توگه اداره کولې، او په (۱۷۳ه) کال چی ملکه خیزران مړه سوله نو یحیی برمکی دهارون دوزیر اوسرمنشي اوکفیل په حیث دبغداد دخلافت دټولو چارو واگی پخپل لاس کی ونیولې او ورمره ورمره دده زامنو هم دعباسی دولت په چارو کی لوی لاس وموند چی هارون رشید ته بې د « خلیفه » له نامه څخه بل څه پاته نه سوه لکه چی دده په پخپله وویل :

« خدای دې یحیی ته خیرورکی چی زه ئې له چارو څخه وزگار رکړی یم . . .

اوس خلافت په حقیقت کی دده دی ، او ماته ئې تش نوم پاته دی »

خو دې اوضاع او دبلخی برمکیانو دې ورځ په ورځ زیاتېد ونکی نفوذ دهارون رشید ماغزه پرېشانه کول ، په تېره بیا هغه وخت چی یو عرب شاعر دیحیی برمکی دزوی جعفر برمکی دقدرت او نفوذ په باب کی یو شعر هارون رشید ته ولېږء او په هغه‌کی ئې خلیفه ته داسی اخطار ورکی‌ء :

« دیحیی دازوی (جعفر) ستا په څېر ددې هیواد خاوند سوی ، او اوس ستا او دده ترمنځ توپیرنسته ، دی ستا امر ردولای سی ، خو دده امر ردېدلای نسی ، او موږ ډېر ډار و چی ستا ترمړینی وروسته به دا هیواد دده سی » .

دې شعر د هارون رشید ما غزه وا یشول او برمکیا نو ته ئې پلمه لټو له ، څو چې په (۱۸۷ ه ق) کال جعفر برمکی د ها رون رشید په امر وو ژل سو او د جعفر پلار یحیی برمکی دشلو تنو اولادو او خپلو انو سره په زندا ن کې واچول سو ، او تردرو کالو بند وروسته ئې له ژوندە سترگی پټې کړلې .



په همدې کال د هرات نومیالی محدث عایذ دحبیب هروی زوی هم وفات سوی دی .

**۱۸٦- ه ش** هارون رشید دخراسان امارت دخپل ساتونکی فوج سالار (صاحب حرس) **۱۹۱- ه ق** ته چی هرثمه بن اعین نومیده وسپا ره او هغه هم په دغه کال **۸۰٦- م** خرا سا ن ته را غئ او د خراسان پخوانی امیر د عیسی زوی علی ئې هارون رشید ته ولیږه ، او پخپله دلیث سیار د زوی رافع مقابلې ته وووت چې په سمرقند کې د عربو د سلطې پر ضد پا څېدلی او د خرا سا ن عبا سی حا کما نو ته ئې جواب ور کړی و ، خو څه ئې د لا سه و نه سوه ، رافع ته ئې دا ما ن لیک و ا ستا و ه مگر را فع هغه لیک ته هم څه اعتنا و نه کړه .

**۱۸۷- ه ش** داعین زوی هرثمه د خر ا سا ن امیر له خپلی خو ادعشما ن طا ر ا بې **۱۹۲ -ه ق** زوی سیف د سیستا ن حا کم و ټا که، خو نا سرې دامیر حمزهٔ سیستانی **۸۰۷ - م** له بیرې زرنج ته ورنغلای سو، فرا ه او بست ته ولاړ او له هغه ځا یو څخه ئې لښکر را غونډ کی د سیستا ن خوا ته ئې مخه کړه ، په سیستان کی ئې دحضین دزوی محمد سره جگړه وکړه ، خو ما ت سو، او د خرا سا ن ا میر دده پر ځا ی د سنا ن زوی حکم سیستان ته و لیږه چی هغه هم د سیستا ن د آ زادی غوښتو نکو سره جگړه و نه سوه کولای او ر و غه ئې ورسره و کړه .

**۱۸۸- ه ش** دد ې کا ل د صفرې په میاشت چی هارون رشید د امیر حمزهٔ سیستانی **۱۹۳ -ه ق** د سخنیوی د پا ره له گرگا نه طوس ته ورسید نا روغه و ، اود همدې **۸۰۸ - م** کا ل د جما دی ا لاخر ی په دریمه د شنبې په نیمه شپه په طوس کی مړ او هلته ښخ کړه سو ،اودده پر ځای په خرا سان کی دده زوی «مأمون عبدا لله » چی هغه وخت په مرو کی و ، کښېنو ست ،خو په بغداد کی خلکو د هارو ن رشید مشر زوی «محمد» چی لقب ئې «امین »و ، په خلا فت وټا که ،اوله هغه وخته د بغداد د خلا فت په بنسټ کی

د رز پیدا سو، اوزیات اسلامی هیواد ونه دبغداد دخلیفه گانو له اغیزې اونفو دځخه ووتل.

امیر حمزهٔ سیستانی چې دد برشو زړو سپر وسره د هارون رشید د حکمرانانو د جور او ستم دمخنیوی د پاره په خراسان کی ترنیشاپوره رسید لی و، هغه وخت چې ئې د هارون رشید دمړینې خبر و اروید نو رئې نو دهغه دو پرجن لښکر سره جګړه وکول له مړانی ځخه لیری کارو با له، بیرته سیستان ته ولاړ او هلته ئې پنځه زره سپاره د خراسان، سیستان پارس او کرسان ساتنې ته وګمارل اوهغو ته ئې وویل: «دا ظالمانو مه پرېږدی چې پر ضعیفانو باندې ظلم وکي، او ظالمانو د لښکر وپای په پخپله هغه ځای ته ور سیږی چې یو بل ته به پاڅی ـ نو سوږ باید منځ ته وونه سو، ځو چې دوی پخپله یو بل سره تباه کړی».

بیانو امیر حمزه پخپله د هند او سند خوا ته لښکر و یوست، د یری جګړې ئې وکړې او بیا د مکران له لارې بیرته سیستان ته راغی.



دد غه کال د شوال په میاشت د مسیب زوی زهیر د مأمون له خوا سیستان ته راورسید او هغه د خلکو سره ښه رویه راواخیسته له اوله خلکو ځخه ئې ښه ونه غوښتل.



هغه ځه چې په دې کال کی د یادولو وړ ګڼل کیږی د هارون رشید هغه اوږد لیک دی چې د (۱۹۳ ه ق) کال د صفری په ۲۲ د جمعې په ورځ ئې دمخه تر هغه چې له ګرګانه د طوس خوا ته و خوځیږی، د خپل دربار د منشی اسماعیل بن صبیح په قلم امیر حمزهٔ سیستانی ته په عربی ژبه لیکلی او امیر حمزه هم په عربی ژبه جواب ورکړی او د تاریخ سیستان په ۱۶۲ مخ کی تر ۱۶۸ مخ پوری دهغه دواړولیکونو متن راغلی دی او دلته دهغو دواړو لیکونو ددری تر جمې یوه یوه برخه داستاد عبدالحی حبیبی د «افغانستان بعد از اسلام» له کتابه په پښتو را اړوو:

### لومړی ـ د امیر حمزهٔ سیستانی په نامه د هارون رشید د لیک یوه برخه:

«د خدای دبنده امیرالمؤمنین هارون له خوا د عبدالله زوی حمزه ته ـ سلام پرتا .... امیرالمؤمنین تا د خدای کتاب او د هغه درسول سنت ته بولی چې امر ته ئې غاړه کښیږدې، او له نهی ئې ځان وژغورې.

ځنګه چې په خراسان او سیستان او فارس او کرمان کی ستا او د امیرالمومنین

دکاردارانو ترمنځ جګړې پېښې سوې او وېنې توې سوې دې ځکه نو امیر المومنین ستا او ستاد ملګرو د خیر او سلامتي او د ادې ډېنې د پاره دا ورو بالله چې تاسې ټول دنور و مسلمانانو ورو نو سره ګډ سيء، او د غنيمت په مال او صدقو او حق او عدالت کې برخه ولريء، او ستاسې و ینې په ناحقه توې نه سي ، او په همدې غرض ستاسې له پخوانیو ګناهونو او وینو تویولو او مالوا وو لجه کولو څخه چې دامير المومنين د کاردارانو سره ستاسې له خوا په جګړو کې پېښ سوي دي تیر ېږي او عفو کوي ئې .

نو ستاسې شېګڼه په دې کې ده چې دامير المومنين اطاعت وکړيء، اوله احسانه ئې برخه واخليء، او سر چې هغه ستا هيواد ته نژدې راغلىء، او ستا څنګ ته ئې اړولي دي ، وينې دې بخښي ، غوښتنې دې مني ، تا ته امان درکوي او له هغو ټولو ګناهونو ، وینو تویولو ،اودلږ واو ډیرو مالونو د لوټولو څخه چې ستا او ستاد ملګرو په واسطه سوي دي تېرېږي ، اوهرڅه چې تاسې په دې جګړوکې وړي دي، در پرېږدي يې . . .

نودامير المومنين نصيحت ومنه او دده دهغه ښه نظرڅخه ګټه واخله چې تااو ستا ملګروته ئې لري ، داکار به هم اوس اوهم په راتلونکي وخت کې تاسې ته ګټور وي .

دامير المومنين داستازي سره ئې حضورته راسه !

اوکه ئې امان نه منې اونه راځې نودا «امان ليک» اودامير المومنين استازی ژر را واستوه او نورئې ونه ځنډوې - انشأالله . . .»

## دوهم- هارون رشيدته دامير حمزهٔ سيستاني له جواب ليک څخه يوه برخه :

«دخدای دبنده امير المومنين حمزه له خوا دې دخدای پر دوستانو سلام وي . . .

ستاليک چې په هغه کې دې زه دخدای کتاب اوپيغمبر سنت ته بللی وم راورسېد، دخراسان په سيمو کې دې ستاد کاردارانو سره زما دجګړو يادونه کړې وه ، او هم دې د خپلې عفو او امان اواحسان په باب ليکلي و ، چې که سوږ ستا په فرمان سو او هغه ومنو نو هرو مرو به ستا بخښنه زموږ په برخه سي .

څنګه چې ستاد ليک په ټولو مقصدو پوه سوم نو اوس درته وايم چې :

دخدای کتاب مې منلی دی ، اوله هغه څخه تخلف روا نه بولم، او بې له هغه بل حکم نه پېژنم ، اوهم نورخلک هغه ته بولم ، اودخدای سنت را بللی دی چې زه ئې د خپل دين سره

آشنا کړی یم ، او سمه لاره ئې راښوولې ده چې خلګ دده کتاب او طاعت ته وبولم اوپه دې لارکې د هغو کسانو سره چې مخالفت وکې جهاد وکړم . . .

خو هغه څه چې دې زما دجګړ و په باب پخپلو احکامو کې لیکلی دی زما داجګړې د دې دپاره نه دی چې ستا سره دپاچهی پرسر شخړه کوم ، او یاسی دنیاته کم رغبت دی ، او هم نه غواړم چې له دې لارې برم اوجلال لاس ته راولم ، اوسره له دې چې ستا د کادارانو بدکارونه ټولو خلګو ته څرګند دی او دوی دخلګو له وینو تویولو ، او د خلګو دمالو له سباح ګڼلو او دخدای له خوا دممنوعه فواحشو څخه ځانونه نه دی ژغورلی ، بیا هم ما خلکو ته اجازه نه ده ورکړې چې دوی ته پورته سی اوپه بغاوت لاس پورې کړی ، اوګمان نه کوم چې په خراسان او سیستان او فارس او کرمان کې ستا د کار دارا نو دا بد حالت له تا څخه هم پټ وی ، ځکه نوداخبره نو ره نه اوږدوم .

خوزما په نسبت ستادنظر او احسان په باره کې باید ووایم : که زه له هغو کسانو څخه واوسم چې دنیا دعاجل عیش او نعمت دپاره غواړی او له آجل څخه تېر یږی نودخدا ی جلال ته پناه وړم چې ستاته دې داسی څه نه راپه برخه کوی، دا ځکه : هغه شوک چې دین په دنیا پلوری زیانکاره دی ، او هغه خیرچې نتیجه ئې اور ، وی خیرنه دی ، او هغه شرچې سری جنت ته ورسوی شرنه دی . خو دغنیمت او صدقاتو په باب کې داسی وایم چې : د دوولوسړیو (راشدینو) خلیفه ګانو ترعصر وروسته مسلمانانو په عطا او ارزا قو او صدقاتو کې خپله برخه بایللې ده ، او داماڵونه تل له غیر موضع څخه اخیستلی سوی اوغیر اهل ته ورکړه سوی دی۔ خدای د خپلو خلقوسره حساب کوونکی دی .

خوداچې زه دی خپل امان او اطاعت ته بللی یم آیادمخلوق دپاره ترد ې ښه امان بل سته چې دجزا په ورځ په امان وی ؟ . . .

مادخپل خدای سره عهد کړی دی چې دده دامر په قیام کې به زیارباسم ، او دده اطاعت ته به خلګ وربولم ، او دده ددښمنانو سره ترهغه وخت جهاد کوم شوچې په همدې لارکې سر ولاړ سی ، اوپرخپل دې تړون ټینګ ولاړ یم . . .

له خپله خدایه غواړم چې موږ دده دکتاب له هغه څه څخه ګټه راورسوی چې موږ په پوهیږو، اودهغو کسانو له احوال څخه مودی وژغوری چې خپل د ین ئې لباسی کړی وی .

موږ خدای تعالی خپل پرور دګار بولو ، اسلام مود خان دپاره دین غوره کړی دی ،

محمد دخدای پیغمبر بولو ، قرآن زمو ږ امام او حکم دی ، زموږ خدای د آسمانو او مځکې پرورد گار دی ، بې لهده بل خدای نه پېژنو ـ او داده زموږ لاره . . . »

دتاریخ سیستان مؤلف لیکې چې :

«حمزه کارها بساخت حرب را ، و بیشتر مردم براو جمع شده بود ، کابین زنان بدادند ، ووصیتها بکردند و کفنها اندر پو شید ند وسلاحها ازبرآن ، وسی هزار سوار همه زهاد وقرآن خوان برفتند »

اوددې دوو لیکونو په باب کې د هغه وخت یوه عرب شاعر په عربي ژبه یو شعر ویلی و ، چې په پښتو ئې مفهو م داسې دی :

« هارون او د هغه ملگرو داسې وانگېرل چې سوږ به حق په باطل خرخ کړای سو ، ده دیوه ناپوه لیکونکي په واسطه خولیکي پخپل لیك کې وایکلې چې خپلې پښتې او نرسي اوخپلې ئې زیږې اوسختې وې ، او په دې کار کې یوه تیوکې باز پکر غوندی ایسیده .

د حمزه ته دخپل ژر زوالیدو نکي پاچهۍ زوروښوده ، حال داچې حمزه له هغو کسانو څخه نه دی چې آجل په زوال منو نکي عاجل وپلوري . هغه یو تکړه امام دی چې دهر کاره لارو ر کې کو ږ والی سموی ، اوپرخپل ترون ټینګ ولاړ اورښتین دی »

**۱۸۹ ـ هـ ش** عبدالرحمن نیشاپوری دشلو زرو جګړنو سره دامیر حمزه سیستانی مقابلې

**۱۹۴ ـ هـ ق** تهووت ، څنګه چې په هغه وخت کې دامیرحمزه لښکر ترشپږو زرو تنو

**۸۰۹ ـ م** تیری نه کاوه نوتر کلکې جګړې وروسته چې دامیرحمزه زیات جګړنو و ژ ل سول پخپله امیر حمزه د هرات خواته پرشا راغی .



په همدې کال دهارون رشید زوی مأمون چې په خراسان کې ئې خپل خلافت اعلان کړ ی و دسیستا ن امارت ېې دحجاج زوی فتح ته وسپاره ، او هغه د میاشتې (ذیقعد ې) په سیستا ن ته را غی ، خود سیستان آزادی غوښتونکي دحضین قوسی ز وی محمد په مشری ورته پور ته سول او جګړه ئې ورسره وکړه .



اوپه همدې کال دافغانستان نومیالی فقیه عالم اوناستو زاهد شقیق بلخي د ابراهیم بلخی زوی وفات سو .

**۱۹۰ - هـ ش** دحجاج زوی فتح چې دمأمون له خوا سیستان ته استولی سوی و ، هلته

**۱۹۵ - هـ ق** د امیر حمزهٔ سیستانی دسپه سالار او نائب سره و نښت ، او تر سختی جګړی

**۸۱۰ - م** وروسته دفتح سپه سالار دابی علی زوی ساته وکړه او دزرنج ښار ته ئې پناه یووړه ، ډیر جګړن ئې ووژل سول او دحجاج زوی فتح اعتراف وکړ چې نیم سیستان دامیر حمزه دملګرو په خوا دی .

خو په ماوراءالنهر کې دخراسان عباسی امیر داعین زوی هرثمه په همدی کال د سمرقند د آزادی غوښتونکو مشر دلیث زوی رافع په یوه جګړه کې وواژه او ماوراءالنهر ئې دمعاذ زوی یحیی ته وسپاره .

**۱۹۱ - هـ ش** دهارون رشید دوه زامن چې یوه ئې (عبدالله مأمون) دخراسان په مرو کې

**۱۹۷ - هـ ق** د خلافت اعلان کړی و ، او بل ئې (محمد امین) په بغداد کې

**۸۱۲ - م** دوصیت نامی له مخی دخلافت پر مسند کښېنستلی و ، دخلافت پر سر جګړې ته چمتو سول امین شپیته زره جګړن دعیسی دزوی علی په سالاری چې دخراسانیانو زور ئې ماتوو ، له بغداده دخراسان خواته راولیږل چې مأمون په زوره بغداد ته بوزی ، او له دی خوا مأمون شل زره خراسانی جګړن دطاهر پوشنګی په مشری (چې وروسته ئې دهرات دطاهریانو د دولت بنسټ کښېښود) مخنیوی ته ورواستول ، او د «ری» (اوسنی طهران) په شاوخوا کې سخته جګړه ونښته چې په نتیجه کې طاهر پوشنګی بری وموند او دبغداد لښکر ئې مات کړ ، او د هغه لښکر سالار دعیسی زوی علی دجګړی په ډګر کې ووژل سو ، او دهغه سر ئې مأمون ته ولیږه ، او مأمون دهغه بری په زیری کې طاهر پوشنګی ته د «ذوالیمینین» لقب ورکړ . خو بله خوا چې د علی د وژلو او دبغداد دلښکر دماتی خبر د بغداد دخلافت مدعی محمد امین ته ورسید وایی چې هغه د دجلې پر غاړه د کبانو په ښکار بوخت و ، او دا سد هش خبر چې ئې واورېدو نو ویویل : «بر صبر وکړئ چې «کوثر» (دده مخصوص هلک = امرد) کب نیولی دی او ما لا هیڅ نه دی نیولی» .



په همدی کال «سامان خداة» بلخی چې زردشتی و ، دمأمون پر لاس مسلمان سو ، او د هغه «سامان خداة» و چې دخراسان دسامانیانو سلسله ده ته منسوبه ده ، او دده زوی «اسد» دمأمون په دربار کې و . ( ددی کتاب د ۱۶۱ هـ ش - ۱۶۶ هـ ق - ۷۸۲ م کال پېښو ته دی رجوع وسی )



او په همدې کال مأمون دسیستان امارت داشعث طارابي زوی محمد ته وسپاره او هغه دمحرم

پهٔ تلسمه دچارشنبې پهورځ سیستان ته ر اغی، اوخپل زوی ئې بست ته واستاوه او پخپله ئې په سیستان کې دخلکو سرښه رویه راواخیستله .

**۱۹۳ - ه ش** محمدامین د بغداد دخلافت مدعي چي په خراسان کې دخپل لښکر دماتې

**۱۹۸ - ه ق** او دلښکر دسالار علي دوژلو خبرواوریدنو شل زره جګړن یې دجبله دز وی

**۸۱۳ - م** عبدالرحمن په سالاری دطاهر پوشنګي مقابلې ته را ولیږل او همدان ته نژدې یوه لویه جګړه ونښتله ، خو په دې جګړه کې هم دبغداد لښکر ماته وکړه اوخرا سا نیا نو بری وموند اودبغداد دلښکرسالار عبدالرحمن ووژل سو ، او طاهر پوشنګي دهمدا ن ښار و نیو ، او دعبدالرحمن سر ئې مأمون ته ولیږه ، اوپخپله ئې دبغداد خواته مخه وکړه . په دې وخت کې داعین زوی هرثمه هم له خراسانه دطاهر پوشنګي ملاتړ ته راو رسید او دواړه لښکر له دووخو اوو یوه داهواز اوبل دنهروان له لارو دبغداد خواته پرمخ ولاړل .

طاهر پوشنګي اهواز په جګړه ونیو اوبصره او واسط تسلیم سول ، بیائې مدائن و نیو اوبغداد ته و رسید ، اوهرثمه هم نهروان په جګړه ونیو اوبغداد ته نژدې سو .

خلیفه محمدامین چې ځان ددوو لښکر وترمنځ بند ولید نوله طاهر پوشنګي څخه ئې هیله وکړه چې لاره ورکي چې په خراسان کې خپل ورورته ورسي ، خوطاهر ونه منله بیانو امین هرثمه ته چې عرب و ، یوه رقعه ولیکله چې :«زه نن شپه تاته درځم» اوهرثمه هم دهغه دلیدو دپا ره په یوه وړه بیړۍ کې سپور سو اوددجلې له لارې دبغداد ښارته نژدې و رغی ، امین هم ځا ن بیړۍ ته و ر و ر سا و ه ، خو په دې وخت کې طاهر پوشنګي خبر سو ، لاره یې و رته و نیوله اوهغه بیړۍ ئې ما ته کړه ، بیړۍ وان هرثمه له او بو ویوست او امین هم غوټه په لامبو ځان دد جلې غاړې ته ورسوی چې د یوه سړي «قریش »نو مي په لاس کښېیووت خپلې خیمې ته ئې بوت او سر ئې څیني پر یکي ء طاهر ته یې و ر وو ړ ، او طاهر هغه سردخپل اکا دز وی محمد په لاس مأمون ته و لیږ ه ، او مأ مون یو میلیو ن در همه دطاهر داکازوی محمد ته و بخښل .

په دې ډول د بغداد ښار د همد ې کال دمحرم په میاشت د طاهر پو شنګي په لا س کښېیووت چې تریوه کاله طاهر پوشنګي د عراق او بلا دجبل ، او فارس او اهو ازاوحجاز او یمن د خپلواك والي په حیث په بغداد کې پاته سو ، او هم د بغداد پر ځای دخرا سان «مرو» د اسلامي خلافت مرکز او پا یتخت و پیژ ند ل سو .

**۱۹۳-ﻫ ش** مأمون د عراق ولایت د سهل زوی حسن ته ورکیء او طاهرپوشنگی
**۱۹۹-ﻫ ق** ته یې ولیکل چی د عراق ولایت هغه ته وسپاری او پخپله دی شام
**۸۱۴ - م** ته ولاړ سی او د هغه ځای د حکومت دچاروواگی دی په لاس
کی ونیسی .

څنگه چی په شام کی د شیث عقیلی زوی نصر حکومت کاوه طاهر پوشنگی د هغه سره سخته جگړه وکړه ، هغه یې مات کیء او د شام او موصل او جزیرې د حکومتو مشر سو .



په همدې کال په بست کی یو آزادی غوښتونکی مشرچی «حرب» نومیداو دپلار نوم یې عبیده و ، د عربو د سلطې پرضد پورته سو ،دی په اصل کی د سیستان د«خواش» و ، خو په بست کی اوسید ، د یرخلگ ور پاندی را غوند سول ، او د سیستان د حکمران اشعث بن محمد سره یې چی د مأمون له خوا د دغه مقابلې ته را استولی سوی و سخته جگړه و نښلوله ، په لومړی سر کی یې ماته وکړه ،خوبیا چی اشعث پسی پرمخ را غیء نو ده هم مخ وروگرزاوه او ترخونړی جگړېوروسته یې اشعث مجبور کیء چی پرشا و لاړ سی دا شعث زیاتجگړن ووژل سول ،ډیره ولجه دحرب دلښکر لاس ته ورغله او هم د بست د ښار ترکلابندی وروسته پخپله اشعث هم د «حرب» په لاس کښیووت.

د «حرب» د لښکر شمیر د یرشو زرو سپرو او پلیوته رسیده .



هغه و ، چی مأمون د قهستان والی د فضل زوی لیث دا شعث پرځای د سیستان والی وټاکه،او هغه د حرب خواشی سره د جگړې د پاره چمتوسو .



په همدې کال کابلشاه د خپل دربار یو لوی عالم اونومیالی منجم چی حکیم ذوبان نومید په خراسان کی دمأمون دربار ته ولیږه .



او په همدې کال د خراسان لوی قاضی او نومیالی عالم او دفقه الاکبرراوی ابومطیع حکم بلخی د عبدالله بلخی زوی وفات سو.

او هم په سیستا ن کې سخته ز لز له وسوه .

۱۹۴-هـ ش د فضل ز وی لیث د سیستا ن و ا لی چې یو ازی یې د عبید ه د زو ی
۲۰۰ هـ - ق حرب سره مقا بله نسوا ی کو لا ی نو دامیر حمزۀ سیستا نی په پوست
۸۱۵ - م ور ننه ووت ، او ځنګه چې امیر حمزه تازه د کر ما ن له لاری سیستا ن
ته راګرزید لی و ، او په حالاتو لا ښه خبر نه و ، د لیث سره یې د رو غی او سلګر ی لا س
و رکی ، لیث د عبیده له زو ی حرب څخه ده ته شکا یت و کی او مرسته یې ځنې و غوښتله
نو امیر حمزه هم د سلګری د تړون په اساس دلیث ملا و تړ له اولیث دامیر حمز ۀ سیستانی په
ملا تړ «حرب خوا شی » ته ماته ور کړه چې په دې توګه یې یوسیستانی آ زادی غوښتونکی
د بل سیستانی آزا د ی غوښتو نکی په مرسته له پښو وا چا وه ، او د سیستا ن عیا ر انو
ته یې بخښښو نه او خلعتو نه ورکړه او هم یې دامیر حمزه او د هغه د سلګرو سره ډ یره ښه رویه
و پا لله ، او تر ځلو روکا لو پو ری د سیستا ن وا لی و .

۱۹۵-هـ ش په خرا سا ن کی سخته کا ختی او و چ کالی را غلې وه - او په دغه
۲۰۱- هـ ق کال د بلخ نو سیا لی فقیه عا لم د زریق بلخی ز و ی قا سم مړ ا و
۸۱۶ - م په بلخ کی ښخ سو .

***

۱۹۶-هـ ش مأ مو ن د هارون رشید ز وی د خرا سان له مرو څخه د بغداد خوا ته
۲۰۲ - هـ ق و خوځید ، او د فارس له لا ر ی بغداد ته ورسید ، نو ځنګه چې د بغداد
۸۱۷ - م خلافت ده ته دطا هر پو شنګی په توره او مېړانه ګټلی سوی و ، مأمو ن
هم د بغد اد حکومت او کو تو ا لی طا هر پو شنګی ته و سپا رله .

۱۹۷-هـ ش اما م علی رضا په هرات کی سکه وو هله چې نمونه یې د مشهد په موزیم
۲۰۳-هـ ق کی سته - او بیا ، دی پخپله چې په (۱۵۳ هـ ق ) کا ل په مد ینه کی
۸۱۸ - م ز یږ یدلی و ، د همدې کال دشو ال په ۱۷ په طو س کی ددو شنبی په
ورځ و فات ا و هلته ښخ سو .

۱۹۸-هـ ش مأمون خلیفه د خر اسان او سیستان امارت دعبا د ز وی غسان ته ورکی
۲۰۴-هـ ق او هغه د سعد زو ی لیث له سمر قنده معز ول او پر ځای یې د ا سد زوی
۸۱۹ - م نوح وټاکه ، او سیستا ن یې د هر ثمه زو ی ا عین ته و سپار ه ، چې هغه

بیا د ځان له خو اد ا لهیثم زوی عمرو سیستا ن ته وا ستا وه ،چې د همدې کال د ربیع الاول په میا شت د چارشنبې په ورځ سیستا ن ته ورسید .

**۱۹۹ ـ ه ش** مأمون وروسته تر هغه چې د طاهر پوشنگی د ستې په زور او فدا کارۍ د بغداد
**۲۰۵ ـ ه ق** د خلافت پر مسند کښېنوست او ځان یې ښه ټینګ کړ ، نو د دې کال د شوال
**۸۲۰ ـ م** په میا شت یې طاهر په ظاهره د هغه د خدمتو د پاداش په نامه خو ، په با طن کې یې د دې د پاره چې هغه له بغداده لیرې او د خلافت له چارو څخه یې لاس لنډ کړ ی د خراسان امیر وټا که ، او ښا یې چې بل مطلب یې داو ، چې د خپل ورور وژونکی په سترګو و نه وینی .

طا هر پوشنگی هم د مأمون په تشویش پوهیدلی و ، او له بلې خوا د وطن پرستی د احساسا تو تراغیزې لاندې د عربی سلطې څخه د خراسان د آزادولو او د یوه خپلواك خراسانی دولت جو ړ ولو فکر ورته پیدا سوی و ، نو ځکه یې هغه ماموریت په ډیره خوښی و ما نه .

هو ، دده د وطن پرستی احساسات دده له څو هغو جملو څخه ښه اټکل کید ا ی سی چې د بغداد د ښا ر د نیولو په وخت کی یې ویلی وی ـ وایی : هغه وخت چې طاهر په ډیر برم د بغدا د ښا رته د خپل لښکر سره ننه ووت ، نو ده ته په ډیر شور او زوږ دده د برې او برم مبارکی ویلی کیدلی خو ده به په جواب کی و یل چې :

«دا برې او برم ګټه نه لری ، ځکه چې زما هیله دا وه چې د پوشنګ بو ډی ښځی له با مو څخه ماته مبار کی او آفرین ووایی ، خو زه هغوی دلته نه و ینم .»

ځینی مؤرخان لیکی چې مأمون د طاهر وجود په خراسان کی هم د خپل خلافت د پا ر ه خطر ګانه او د هغه د ملی شخصیته ببریده ، خو طاهر د مأمون د ډیر معتبر او ورنژدی وزیر احمد ابی خا لد په وساطت او ضمانت دا ماموریت د ځان کړی و ، او همدا سبب و ، چې د بغداد در بار د دې د پا ره چې په خراسان کی د طاهر له احوالو او حر کا تو څخه ښه خبر وی د ثابت زوی کلثوم یی د د هسر ه د خراسان د ډاك ( پستی ) رئیس وټا که چې هغه وخت یی د ضبط احوالات بنه در لو د له ، او هم احمد ابی خالد خپل یو خاص سړیی په ظاهره طاهرته و باخښه خو په پټه یی هغه سړیی پو هو لی و چې که طاهر د بغداد له اطاعته غا ړه غړوله نو په هر ه وسیله چې وی هغه ووژنی ، او له بلې خو ا یی د طاهر یو زوی چې عبدالله نومید د سپهسالا ر په نامه په بغداد کی د یرغمل په توګه وسا ته .

**۲۰۰ ـ ه ش** طاهر پوشنګی د ربیع الاخر په میاشت د مأمون د نائب او د خراسان دا میر
**۲۰۶ ـ ه ق** په حیث خراسان ته راغی ، او د خراسان په مر کز مرو کی میشته سو ، ملت
**۸۲۱ ـ م** پالو نکی او آزادی غوښتو نکی یی پر ځان را ټولول او د خراسان د خپلو اکی

نقشه یې جوړوله .

دحضین قوسی زوی محمد یې سیستان ته دخپل والي په حیث واستاو ، او هغه د همدې کال دجمادی الاولی په لسمه سیستان ته ورسید اودښو کړو له امله یې دهغه ځای دخلکو زړو نه ځان کړه ، څو چې بیا طاهر سیستان خپل زوی طلحه ته ورکی ، اوهغه له خپلی خوا د ا سد ز و ی الیاس سیستان ته ولیږه .



په همدې کال دشام اوجزیری حاکم دمعاذ زوی یحیی مړسو ، اودهغه ز و ی ا حمد یې پرځای کښینوست ، څنګه چې خلیفه مأمون له احمده راضی نه و، نودطاهر پوشنګی زوی عبدالله یې ځانته وروغوښت اوورته و یو یل :

«خلک وینم چې خپل زامن ترهغه چې دي ، پورته ستایی ، خوته ما ته ترهغه پورته ښکا ره سوی چې ستا پلار ستایلی وې ، نوځکه می لازمه وګڼله چې تادشام اوجزیرې جګړی ته و لیږ م ځکه چې دمعاذ زوی یحیی مړ ، اودهغه پرځای نامت زوی احمدیې یوبی کفایته سړی د ی»

هغه و ، چې عبدالله پوشنګی دشام اوجزیرې په حکومت وټاکل سو ، او دیوه لو ی لښکر سره هغی خو اته وخوځېد ، اوترسختو جګړو وروسته یې شام اوجزیره ونیول اوبیادمأمون په امر دمصر خو اته ولاړ چې دمصر سیمی هم ونیسی .

وایی هغه وخت چې دطاهرپوشنګی زوی عبدالله دمأمون له خوا دشام حکومت ته وګمار ل سو نودده پلار طاهرپوشنګی ده ته یولیک ولیکه چې له هغه څخه دطاهرپوشنګی اخلا قی سجا یا ا و سیا سی اواجتماعی پوهه په ښه توګه څرګند یږی چې دلته یې دطاهر پوشنګی دافکارو دنمونې په توګه په پښتو را اړوو - ده خپل زوی ته داسی لیکلی و :

«دیوه اوبې شریکه خدای څخه وبیریږه ، او دهغه له غضب څخه لیری ا و سه ، ا و هغه وختونه چې خدای په هغو کې عافیت اوسلامت ستا روز ی کړی د ی دده تعا لی په یا دو نه ا و دخپل رعیت په پالنه اودهغو کړو په کړنه تیروه چې ته وریسی رهی او دهغوسنئو ول یې ، ا و دامې کارکوه چې لوی خدای تاوساتی اودقیامت په ورځ دې له عذا به وژغور ی - ځکه چې لوی خدای پرتا احسان کړی اوتاته یې دا شرافت بخښلی چې دخپلو بندګانو خدمت اوچاری یې درسپارلی د ی اوته یې دبندګانو په سنځ کی په نیاو اوعدالت خپرولو او دالهی حقوقو په ا قا مه مکلف کړ ی او دهغو له ځانو اودهغو له هیواد څخه په دفاع اودهغو دوینو په ساتنه ، اود هغو

دلارو په امنیت او دژوندون دټولو ورځنیوچارو په سمولو اودهوسایی دوسائلو په تهیه کولو ساتو ر کړی یې .

با ید پوه سې چی لوی خدای ستا څخه دهغو کارو پوښتنه کوی چی پر تا ئې د هغو اجرا فرض کړې ده .

هر کارته چی رغبت څرگند وې او یا ورځنی کړکه اونفرت کوې په دوارو صورتو کی له عدالت څخه ستر گی مه پټوه ، دا تو پیرنه کوی چی هغه کا ر تا ته په نژ د ې خلگو او یا له تا څخه په لیری خلگو اړه ولری .

دخپل هیڅ یوه مامور په باب کی چی په یوه تورتور ن سی د مخه تر څیړ نی او کشف تلو ار مه کوه ، ځکه چی په پا کو خلگو پو ر ی تور تړ ل او د هغو په با ره کی بدگما نی څرگند ول گنا ه ده .

دخپلو ملگر وپه باب ښه گمان دځا ن عادت کړه او د هغو په با ب له بدگما نی څخه لیری گرزه ، ځکه چی دا کارستا دښې رویی او دهغه له اطا عت سره سر ته کوی ، او با ید پوه سې چی په ښه گمان قوت او راحت مو سې - خوستا دارأفت باید د حکا مو له ا عمالو څخه ستاد باخبری او درعایاوو دحقوقو دساتنې او دهغو دصلاح دوسایلو دسمبا او لوما نع نه سی ، بلکه باید دحکامو له اعمالو ځان خبرو ساتې ، اوهم درعایا و ودساتنی او د هغو د ژ و ند و ن دضروریا تو دپوره کولو د پاره تل هڅه وکړې .

الهی امرو نه او حدو د پر مجر مینو او جنایت کا را نو دجرم او جنایت په ا ند ازه عملی کوه ، او په هغه کی هیڅ سستی مه کوه ، او د هغه خلگو سجا ز ا ت چی د هغو وړ وی مه ځنډوه ، څو چی ستا ښه نظر او نیک گمان فا سد نه کړی .

رشتینو صاد قو او سمو صالحو خلگوته په درنه سترگه گو ر ه ، او د شرف د خاو ند ا نو سره په حقه سرسته کوه ، پرضعیفانو اوبې و زلا نو مهر با نه او سه ، د نفس له لاه هوا او بد غو ښتنو څخه ځان ژغوره ، او خپلو رعیتو ته خپله پا کی ثابته کړه ، دهغو سیاست دعدل سره یو شان کړه ، او د غضب په حال کی ځان اداره کوه ، حلم او وقار ولره .

ډیر ه ښه خزا نه چی باید دځان دپاره ذ خیره کړې هغه باید نیکی ، تقوا ، عدالت ، درعیت داحوال او چارو سمو ن ، او د هغو د هیوا د ودانی ، او دهغو دوینو ساتنه او د مظلو مانو په په داد رسېد ل و ی .

دېڅکله ګناه سپکه مه ګڼه ، دحاسد سړی سره کورنۍ مینه و نه کړې ، او پر فاجر تر حم مه کوه ، دښمن ته غوږه مالي ونه کړې ، اودچغلګر خبره ونه منې، پرغدار سړی باور مه کوه ، دفاسق او ګمراه ملامه تره ، هیڅ انسان مه سپکوه اوهیڅ ګدا مه ردوه ، و رځی عبث مه تېروه،

دخپلو عسکرو په احوال او چارو با خبراوسه ، روزی ئې ورزیاته کړه او د معیشت وسائل ئې پراخه او سمبال کړه څوچې لوږه او تنګد ستی ئې ورکه سی ، احوال سم او منظم سی او په زړو نوکی ئې ستاداو امرو له اطاعت سره اخلاص زیات سی .

د هری ورځی کار په همهغه ورځ پای ته رسوه او سبا ته ئې مه پرېږده ، او پخپله هغه ځیرته اوسه ، ځکه چی سبا خپل کارونه اوچاری لری چی تانه پرېږدی چی د پرون کارونه وکړې ، نو که هره ورځ خپل و رځنی کار پای ته و رسوې نفس او بدن به دی آرام او هوسا وی او دحکومت چاری به دی منظمی او ټینګی وی .

نارو غانو دپاره رو غتونونه ودان کړه ، پر ستارا ن او خد متګارا ن ور ته و ټاکه چی دنارو غانو پالنه وکړی ، او طبیبان ورته مؤظف کړه چی دنارو غیو ئې درسل او علاج وکړی، او د هغو غو ښتنوته غوږکښېږده او حاجتونه ئې ورپر ځای که، خو په دا سی تو ګه چی په بیت المال کی داسراف سبب ونه ګرزی .

هغو ما مور ینو ته چی ستا په حضور کی په وظیفو بو خت دی ، او همدا رنګه د خپل حضور لیکوالوته هر یوه ته یو وخت وټاکه چی په هغه ټاکلی وخت کی له تا څخه هدایت وا خلی او خپل لیکو نه در باندی لاس لیک کړی، خپلی ستر ګی او غو ږو نه او فهم او عقل دهغو مطالبو په باب کی چی تاته ئې وړاندی کوی ښه متوجه کړه او په هغو مطا لبو کی په دقت مکرر غور او تد بروکه ، او چی ترغور او تد بر وروسته دی هغه مطا لب سم او حق و بلل لاسلیک ئې کړه او که سم او حق په نظر د ر نه غلل نو د هغو په باب څېړنه او پوښتنه وکه .

په دې لیک ښه پوسه ، په هغه کی غور او فکروکه ، او په هغه عمل وکړه ، او په ټولو چارو کی له خدا ی څخه مرسته او خیر وغواړه، ځکه چی خدای دصلاح پرخوا او داهل صلاح ملګری دی ، باید ستا ډېر زیات رغبت او خوی دهغو چارو سره وی چی په هغو کی

دلوی خدا ی رضاوی زه له خدا یه هیله کوم چی تا ته پر ښو کارو بری او توفیق او وده درعطا کړی او پرینه لارستا ساتونکی او لارښوونکی وی! ».



په همدې کال د بلخ نو میالی مؤرخ اود کتاب الفتوح ایکوال ا سحا ق دبشر زوی او دمحمد بلخی نمسی چی په بلخ کی زیږیدلی و ، په بخارا کی مړ سو.

**۲۰۱- ه ش** دجمادی الاخر د میاشتی په ۳۴ د جمعې په ورځ طاهر پوشنګی

**۱۰۷- ق** دخراسان دخپلواکی اعلان وکی ، او د مأمون نوم ئې د جمعې

**۸۲۲- م** د ورځی له خطبې څخه لیری کی ، او په خراسان کی ئی د ملی

خپلواک دولت بنسټ کښیښود ، اوپه دې توګه دهرات دطاهر یانو سلسله چی تراسلام وروسته لومړنۍ خراسانی سلسله ده منځ ته راغله ، خوله بده مرغه ژوند ورسره وفا ونه کړه اود همغی ورځی په ماښام چی دخپلواکی اعلان ئې کړی و ، ناڅاپه مړسو، چی د ځینو مؤرخانو په غالب اټکل ښایی چی د هغه مړینه له خوا مسموم سوی وی چی د مأمون وزیر احدابی خالد وربخښلی و.

دطاهر پلار حسین دمصعب زوی او د زریق نمسی او دماهان کړوسی دهرات له زادګانو څخه و ، چی د پوشنګ ( دهرات دلمر لویدو خواته داو سنی « زنده جان » ) یوه غښتلی کهاله ته ئې نسبت کېده ، او هم دطاهر نیکه (مصعب) دخپل وخت د بلاغت او ادب له نومیالیو څخه و ، چی د عباسیانو په وخت کی د پوشنګ حکمرانی په ده اړه درلود له ، او تر هغه وروسته د هغه د زوی ( حسین ) د طاهر د پلار حکومت په پوشنګ کی له (۱۸۰ ه ق) څخه تر (۱۹۱ ه ق ) پورې د عباسیانو له خوا په رسمیت پېژندلی سوی و. چی وروسته ئې بیاد آل عباس له خوا دشام او بغداد دحکومتو واکی هم په لاس کی وې ، او په (۱۹۹ ه ق) کال په بغداد کی مړ سو.

پخپله طاهر په (۱۵۹ ه ق) کال دهرات په پوشنګ کی زیږیدلی و ، او د پلار تر مړینی وروسته ئې هغه وخت شهرت وموند چی دهارون رشید خلیفه تر مرګ وروسته د هغه د دوو زامنو «مأمون» او «امین» تر منځ دخلافت پر سر اختلاف اوشخړه پیدا سوه (د دې کتاب :

د ۱۸۸ ه ش = ۱۹۳ ه ق _ ۸۰۸ م کال او:

د ۱۹۱ ه ش = ۱۹۷ ه ق = ۸۱۲ م کال او

د ۱۹۲ ﻫ ش ــ ۱۹۸ ﻫ ق ــ ۸۱۳ م کال او

د ۱۹٦ ﻫ ش ــ ۲۰۲ ﻫ ق ــ ۸۱۷ م کال او

د ۱۹۹ ﻫ ش ــ ۲۰۵ ﻫ ق ــ ۸۲۰ م کال او

د ۲۰۰ ﻫ ش ــ ۲۰٦ ﻫ ق ــ ۸۲۱ م کال او

د ۲۰۱ ﻫ ش ــ ۲۰۷ ﻫ ق ــ ۸۲۲ م کال (پیښ‌ږته‌دې رجوع وسئ).

طاهر پوشنگی په‌فاضل‌اوپه‌ادبی علومو پوه‌سړی و ، په تیره بې بیا په عربی ادب کی لوی لاس در لود ، اوپه عربی ژبه یې شعر وایه .

په‌دې توګه نودخپل عصر یواتل او قهرمان و ، لکه چی دایران‌اوسنی لیکوال عباس‌خلیلی په‌خپل کتاب «ایران‌و اسلام» کی لیکلی‌دی :

«اگر برای هر قرنی یك قهرمان قایل شویم چنانکه قرن اول را بنام سلمان فارسی ، ودوم را بنام ابومسلم آغاز نمودیم قرن سوم رابنام طاهر بن حسین شروع میکنیم و او یگانه مردی بودکه درخلافت بنی عباس تصرف وخلیفه را خلع کردوکشت».

دطاهر پوشنګی ترمړینی وروسته چی په‌خراسان کی‌یې دیو ملی او خپلواك حکومت تیره کښېښوول په همدې کال (۲۰۷ ﻫ ق) دهغه‌زوی طلحه‌دخراسان دامارت په کرسی کښېنوست او د چارو واګی یې په‌لاس کی ونیولې ، اوترهغه وروسته چی د بغداد خلافت د طلحه امارت په‌رسمیت‌وپېژانده طلحه هم دبغداد دخلافت سره حسنه روابط ټینګ کړه .

طلحه هم‌دپلار په‌شان یوزړوراو پوه امیر او په عین حال کی جنګیالی تور زن و ، چی تراوو کالو پورې یې په خراسان کی غښتلی حکومت درلود .

۲۰۲ ــ ﻫ ش طلحه د خراسان امیر دسیستان حکومت د اسد زوی الیاس ته‌وسپاره ، ۲۰۸ ــ ﻫ ق او هغه د همدې کال د صفر په شلمه د پنجشنبې په ورځ سیستان ته ۸۲۳ ــ م ورسېد . خوترلږی سودې وروسته په‌جمادی الآخر کی دده پرځای دحضین زوی معدل دسیستان په‌حکومت وګمارل سو ، اودشوال په شلمه طلحه د سیستان‌حکومت داحوص زوی محمد ته ورکی‌ء ، اوهغه دهغه ځای دخلګو سره ښه رویه کوله .

۲۰۳ ــ ﻫ ش طلحه دسیستان حکومت دشیب زوی محمد ته وسپاره ، او ددغه کال ۲۰۹ ــ ﻫ ق د جمادی الآخر په لسمه د سه شنبې په ورځ سیستان ۸۲۴ ــ م ته ولاړ .

۲۰۴ - هـ ش طلحه د سیستان حکومت د اسحاق زوی محمد ته ورکیء ، او هغه
۲۱۰ - هـ ق د یزید زوی محمد پخپل نیابت سیستان ته ولیږه ، او محمد د دغه
۸۲۵ - م کال درجب په سیاشت دجمعې په ورځ سیستان ته ورسید ، او په ده پسې پخپله داسحاق زوی محمد دبست د آزادی غوښتونکو اوعیارانو دسر تکولو دپاره سیستان ته راغیء ، اوچې خواش (۱) ته ورسید نوطلحه دهغه پر ځای د احمد زوی عیسی وټاکه ، اوهغه په (۲۱۱ هـ ق) کال سیستان ته ورسید اودبست عیاران یې تیت و پرك کړه .

۲۰۵ -هـ ش دطاهر پوشنگی زوی‌عبدالله‌چی‌دمأمون‌خلیفه له‌خوادمصرنیولوته‌گمارلی
۲۱۱ - هـ ق سوی و ، دمصر ترنیولو وروسته بیرته بغداد ته راغیء او له هغه ځایه
۸۲۶ - م د «بابک خرم دین» دفاع ته وگمارل سو .

بابک خرم دین د جاویدانیه دلی مشرو ، او دارواح په تناسخ اودروح په حلول یې عقیده درلوده اوغوښته‌یې چې‌دمزدك دین‌ژوندی کړی ، ډیر خلك وربانديرا غونډسوی‌وو ، او تولو سره کالی اغوستل ، او بابك دهمدغو سرو کالیو پیروانو په مرسته پرآذربایجان او ارمنستان لاس سوندلی و ، او څو واره یې د مأمون او معتصم خلیفه گانو لښکرو ته ماته ور کړې وه .

عبدالله پوشنگی تر (۲۱۳ هـ ق) کال پوری دبابك خرم دین سره په‌جگړه اخته‌و، څوچې دخپل ورور طلحه دمړینې خبرېې واورېد اوله هغه ځایه خراسان ته متوجه سو .

۲۰۷ - هـ ش طلحه پوشنگی دخراسان امیر وروسته تر هغه چې د سیستان د آزادی
۲۱۳ - هـ ق غوښتونکو خوارجو نامتو سردار چې ځانته یې د «امیر المؤمنین» لقب
۸۲۸ - م ټاکلی و ، ماته ورکړه او هغه سردار ددغه کال د جمادی‌الا آخری (ځلرمې خور) په‌دوولسمه مړسو، نوطلحه هم ددغه کال د ربیع الا ول په ۲۷ وفات‌وکیء ، اودهغه نوميالی ورور عبدالله پوشنگی (چې په ۱۸۲ هـ ق کال‌زیږیدلی و )او څه موده د مأمون سپه سالار اوبیاد هغه خلیفه له‌خوا په شام‌او مصرکی حکمران اوپه‌دغه وختوکی په کرمانشاه کی دبابك خرم‌دین سره په جگړه بوخت و ، د خراسان امیر سو ، او د بغداد در بار هم دده امارت په رسمیت و پیژاند .

عبدالله پوشنگی خپل‌ورور «علی» په خپل نیابت خراسان ته ولیږه اوسیستان یې د خالد زوی احمدته وسپاره ، اوهغه بیاله خپلی خوا داسماعیل ذهلی‌زوی محمد سیستان ته‌واستاوه ،

---

(۱) خا شرود همدې ځای‌ته‌منسوب دی .

خود کوچنی اختر په شپه عبدالله پوشنگی دسیستان حکومت داحوص زوی محمد ته ور کی ٔ .

۲۰۸ - ﻫ ش دبلخ نومیالی قاضی او لوی حنفی فقیه عالم د حکیم بلخی زوی شداد

۲۱۴ - ﻫ ق په بلخ کی مړ او ښخ سو .

۸۲۹ - م

* ✿ *

۲۰۹ - ﻫ ش د خراسان خوارج د طاهر پوشنگی زوی علی ته پورته سول، دنیشاپور

۲۱۵ - - ق پر یوه کلی یې یرغل وکی ٔ او علی پوشنگی په هغه جگړه کی ووژل

۸۳۰ - م سو ؛ داخبر چی دطاهر پوشنگی زوی عبدالله ته ورسید ، هغه ددغه کال

په رجب کی دنوح زوی عزیز دلسو زرو تنو سره دمقدمة الجیش په توگه نیشاپور ته ولیږه ، او هم یې تر خپلو رسېدو پوری دحمید طاهری زوی محمد دنیشاپور والي وټاکه ، عزیز دنیشاپور بلوا آرامه کړه، خو د حمید طاهری زوی محمد دنیشاپور پرخلکو ظلمونه وکړه ، هغه و ، چی عبدالله پوشنگی نیشاپورته ورسید اومحمد یې معزول کی ٔ . همدا رنگه عبدالله پوشنگی پو غبهتلی لښکر د نوح دزوی عزیز په سالاری د احوص دزوی محمد ملاتړ ته واستاوه چی په سیستان کی دخوارجو دآزادی غوښتونکو سره جنگېده ، هغه وخت د سیستان دخوارجو مشر «باعوف» نومېد .

✿*✿

په همدې کال دبلخ نومیالی محدث دابراهیم بلخی زوی مکی ، او هم د بلخ نومیالی فقیه اومحدث دیوسف بلخی زوی عصام مړه سول .

۲۱۰ - ﻫ ش دسیستان دخوارجو آزادی غوښتونکو د«باعوف» په مشری دخراسانیانو

۲۱۷ - ﻫ ق پرلښکر چی دنوح دزوی عزیز په سالاری‌او داحوص د زوی محمد په

۸۳۱ - م مشری‌جنگېدل یرغل وکی ٔ ، عزیز یې له دېرو ملگرو سره وو اژه ، او

دهغه خلکو دعبدالله پوشنگی داکا سره بیعت وکی ٔ .

✿*✿

۲۱۱ - ﻫ ش عبدالله پوشنگی دخراسان امیر دسیستان دحکومت فرمان له نیشاپوره

۲۱۷ - ﻫ ق د خپل اکا(دحسین زوی حضین) په نامه ولیږه ، او هغه د سیستان

۸۳۲ - م دخوارجو آزادی غوښتونکی آرام کړه .

۲۱۲ ـ هـ ش دبغداد خلیفه مأمون دهمدې کال درجب په اوواسمه دپنجشنبې په
۲۱۸ ـ هـ ق ورځ طرطوس ته نژدې مړسو، اودهغه پرځای یې وروړ المعتصم بالله
۸۳۳ ـ م چې محمد نومېده دخلافت پرمسند کښېنوست، اوهغه هم په خراسان کې
دطاهر پوشنگي دزوی «عبدالله» امارت په رسمیت وپېژانده.

پهدغه کال عبدالله پوشنگي دخراسان امیردسیستان حکومت دعبدالله سیاری زوی حسین
تهورکیء، اوهغه بیا دبست چاری خپل وراره دمحمد زوی عبدالله ته وسپارلې.

۲۱۳ ـ هـ ش عبدالله پوشنگي دخراسان امیر دپارس په تا لقان کې د قاسم د زوی
۲۱۹ ـ هـ ق امامزاده محمد (چې المعتصم بالله ته پاڅېدلی و) سخنیوی تهوزو ووت،
۸۳۴ ـ م هغه یې ونیو اوخلیفهته یېولېږه، اودخراسان او بغداد تر منځ ښه
روابط لا ټینګ کړه.

✿*✿

۲۱۴ ـ هـ ش په سیستان اوبست کې سخته کاختي راغله او د سیستان والي حسین
۲۲۰ ـ هـ ق سیاری د هغې سختې کاختي احوال د خراسان امیر عبدالله پوشنگي
۸۳۵ ـ م تهولېږه، او امیر عبدالله د سیستان والي ته ولیکل چې درې سوه زره
درمه لهبیتالماله یېوزلو خلکوته ووېشی، اوسیاری هم هغه تولی پیسې دهغه ولایت ددوو
نومیالیو فقهیانو عثمان عفان اوحسین عمرو پهواسطه دهغه ولایت پرغریبانو اوبېوزلانوووېشلې.

۲۱۵ ـ هـ ش د دری ژبې پخوانی شاعر محمود وراق او سعید اخفش اوسط بلخي
۲۲۱ ـ هـ ق دسیبویه شاګرد مړه سول.
۸۳۶ ـ م

*✿*

۲۱۶ ـ هـ ش دبلخ نومیالی فقیه اودابوحنیفه دمسند راوی دمحمد زوی او د خسرو
۲۲۲ ـ هـ ق بلخي نمسی ابو عبدالله حسین وفات سو.
۸۳۶ ـ م

✿*✿

۲۱۷ ـ هـ ش دهرات نومیالی لوی محدث او فقیه ابوعبید قاسم دسلام هروی زوی
۲۲۳ ـ هـ ق چې په ۱۵۷ هـ ق کال په هرات کې زېږېدلی و، په مکه کې وفات سو.
۸۳۷ ـ م

**۲۱۸ - هـ ش** دنیشاپوراوخراسان خلك دخراسان امیر عبد الله پوشنگی ته راغلل او

**۲۳۴ - هـ ق** پخپل منځ کی یې د کاریزو په باب د شخړو په باره کی استغا ثې

**۸۳۸ - م** وکړلې ، امیر هم‌دخراسان ټول نوسیالی فقها اوځینی دعراق‌فقها‌راوبلل

چې د کاریزو په‌باب کی یوکتاب تدوین کړی ، هغوهم یوکتاب‌د «کتاب‌قنی» په‌نامه ولیکه چې د کاریزو په‌باب یې جامع احکام‌درلودل ، اوددغو احکامو له‌مخې دهغه ځای دخلکو ټولی کاریزی شخړو دحل اوفصل لاره وموندله ، اوهغه کتاب تر ۴۴۳ هـ ق پو ری چې دگردیزی «زین‌الاخبار» دتألیف کال‌دی ، په‌ټول خراسان کی نافذ و ؛ گردیزی لیکی چې د خراسان امیر عبدالله خپلو ټولو کادارانو ته ولیکل چې :

«حجت برگرفتم شمارا ، تااز خواب بیدار شوید ! وا ز خیرگی بیرون آیید ، و صلاح خویش بجویید ! وبابزرگران ولایت مدارا کنید ! و کشاورزی که ضعیف گردد ، او را قوت دهید ! وبجای خویش باز آرید ! که‌خدای عزوجل ازدست های ایشان طعام کرده است، واززبانها ی ایشان سلام کرده است ، وبیداد کردن برایشان حرام کرده است . »

له پورته لیکنې ښخه ځرگندیږ ی چې دخراسان دې امیر د کر او کر هنې سره ز یاته مینه درلودله ، اوپه دې لاره کی یې ز یار یوست، اودا اټکل کیدای‌سی چې نهایی‌دختکی زنۍ هم دده په‌وختو کی له خرا سا نه‌مصرته لیږلې سوی‌وی،ځکه‌چې‌په مصر کی « عبد لاوی » نو می ختکی ده ته منسوب‌دي.

*✿*

په همدې‌کال امیر عبدالله پوشنگی‌د «ما ز یار» دقا رن دزوی‌او دو ند ا د مهر دنمسی چې د « کارن »د کور نی د مشر «مو خرای» له او لا د ې ښخه په ۲۰۸ هـ ق کا ل دخلیفه مأ مون له خوا د طبرستا ن حا کم‌تا کلی سوی‌ؤ ، خوپه‌۲۱۹ هـ ق کا ل معتصم ته‌یا غی سوی و ، جنگ ته ولا ړ.

د ما ز یار ا صلی نو م «ما ه ایز د یار » و، چې د با بک خرم د ین په دین‌گروهیدلی‌و.

*✿*

او په همد ې کال په خرا سان کی سخته مدهشه زلزله‌وسوله ،چې ډیرزیان ئې ورساوه.

**۲۱۹ - هـ ش** د خر ا سان‌امیر عبدالله پوشنگی دطبر ستان پرحا کم«ما زیار»بری وموند

**۲۳۵ - هـ ق** هغه یې و نیوا و بغداد ته یې و استا وه ، په بغدا د کی معتصم ا مر

**۷۳۹ - م** وکی‌چې‌ما‌ز یار پنځه‌سوه غم‌چینی‌وو هی،او په‌هغه‌ورځ له هغه‌درده‌مړ سو .

(مخینو مؤرخانو د «مازیار» نیول په ۲۲۵ ه ق اوو ژل یې په ۲۲۶ ه ق یا ۲۲۷ ه ق کې ګڼلی دی) .



په همدې کال د خراسان امیر عبد الله پو شنګی دسیستان حکومت دهری حاکم ابراهیم حضین قوسی ته ورکیء ، اود سیستان پخوانی حاکم د اسد زوی الیاس یې له سیستانه ور وغوښت، ابراهیم حضین قوسی د همدې کال د ربیع الثانی په ۲۸ د شنبې په ورځ سیستان ته ورسید اوپه هرات کی یې خپل په نیابت پر یښووه، او خپل زوی اسحاق یې بست ته ولیږه ، خو د بست د خلکو د شکایت په اثر یې بیرته له بسته وغوښت او بیا ترڅه مودې وروسته یې بیر ته دخلکوپه غوښتنه اسحاق بست ته واستاوه ،او هغه هم دا پلا د خلکوسره ډیره ښه رویه را وا خیستله او خلک هم ځنی خوشاله وو ، څو چی یو کال وروسته د ۲۲۶ ه ق کال د محرم په ۷ ددوشنبې په ورځ مړ سو .

**۲۲۰-ه ش** دبلخ نومیالی فقیه اوقاضی د مسا ور زوی لیث په د غه کال په بلخ
**۲۲۶-ه ق** کی وفات او هلته ښخ کړه سو .
**۸۳۸ - م**



**۲۲۱-ه ش** دد ې کال دربیع الاول دمیاشتی پهلسمه د پنجشنبی په شپهدبغداد
**۲۲۷-ه ق** خلیفه المعتصم بالله مړ سو ، اودهغه پرځای الواثق بلله د خلافت پرمسند
**۸۴۱ - م** کېښنوست او هغه همپه خراسان کی دعبدالله پو شنګی امارت په رسمیت وپیژاند .



په د غه کال په سیستان کی خو را سخت ساړه راغله تولی ونی یې وچی کړې،اوهم سخته وبا پیښه سوه چی ډیر خلک یې وو ژل.



اوپه همدې کال د بلخ نومیالی محدث او مفسر د منصور جوزجانی زوی سعید په مکه کی د روژې په میاشت وفات سو .

**۲۲۳-ه ش** د خراسان نومیالی او ننګیالی امیر عبد الله پو شنګی تراوولسو
**۲۳۰ -ه ق** کالو امارت وروسته د همدې کال د ربیع الاخر په یوولسمه
**۸۴۴ - م** پهنیشاپور کی مړ سو .

امیر عبد الله پوشنګی د افغانستان له پوهو او عادلو امیرانو څخه و، چې دده د امارت پهدوره کې خراسان هم د ښمنۍ او هم د ودانۍ له حیثه ښه پرمختګ کړی و، په تیره بیا یې کرهنې، دبزګرانو پالنې، د کاریز و کیندنې او د اوبو عادلانه ویش ته زیاته توجه درلوده.

دی شاعر او ادیب او د فضل خاوند هم و، او په تاریخو کې دده د شعراو تألیفاتو یادونه هم سوې ده، خو د اشعارو نمونه او د کتابونو نومونه یې لاس ته رانغله.

دده تر مړینې وروسته دده زوی ابوالطیب طاهر دخراسان امیر سو، اود بغداد خلیفه الواثق بالله هم د ابوالطیب طاهر پوشنګی امارت په رسمیت وپیژانده، اوده نژدې اتلس کاله د خپل پلار او نیکه په شان په عدالت او ښهتدبیر او سیاست حکومت وکړ، اوهم یې د خراسان اوبغداد ترمنځ ښه روابط وساتل.

دده په وخت کې د حضین زوی ابراهیم دده له خوا د سیستان حاکم و، چې ابراهیم بیا خپل زوی احمد بست ته ولیږه او هغه د نصر د زوی غسان سره چې په بولان کې یاغی سوی و، جګړه وکړه غسان یې و نیو او سر یې پریکړ، خپل پلار ته یې چې په سیستان کې و، ولیږه، او پلار یې بیا هغه سر په دارکړ، چې له دې کاریې خلګو سخته کرکه څرګنده کړه.

***

په همدې کال دبلخ نوسیالی عالم او محدث اود «الایمان» د کتاب مؤلف د یحیی بلخی زوی زکریا مړ سو.

| | |
|---|---|
| ۲۲۵ - هـ ش | دبغداد دخلیفه واثق مړ سو، او پرځای ئې المتوکل د خلافت پر |
| ۲۳۲ - هـ ق | مسند کښېنوست، ده هم دعبد الله پوشنګی د زوی دوهم طاهر |
| ۸۴۶ - م | امارت په خراسان کې په رسمیت وپېژانده. |



په همدې کال دسیستان ځوانمردان (عیاران) او د بست خلګ چې دنصر د زوی غسان د سر په دارولو څخه ئې سخته کرکه څرګنده کړې وه دنصر د زوی صالح په مشرۍ پورته سول او دلیث زوی یعقوب دهغو سلا تړوکړ، څو چې صالح دوئی غښتلی سوچې د بست حکمران ئې وتښتاوه او دبست ټولې حکومتی چارې ده په لاس کې ونیولې.

په دغه کال دهند و کش په شمال کی دبا ینجور دکهاله پا چا داؤن دالیا س زوی سکه وو هله . اوهم د هرات نومیالی لوی محدث ابو الولید احمد دابی رجا عبد الله هروی زوی په هرات کی وفات اوښخ سو .

**۲۲٦-ه ش** دسرخس نومیالی محدث اوعالم دمعین زوی یحیی چی په(۱۵۸ ه ق)
**۲۳۳- ه ق** کال زیږیدلی و ، مړ سو .
**۸٤۷- م**

***

**۲۳۰-ه ش** د بلخ نو میالی صوفی دعنوان بلخی زوی حاتم اصم په واشگرد کی
**۲۳۷-ه ق** مړ سو.
**۸۵۱- م**

***

**۲۳۱-ه ش** ددې کال دمحرم په میا شت دبست خلگو دنصر د زوی صالح سره
**۲۳۸- ه ق** بیعت وکړه او هغه ته ئې خراج و مانه .
**۸۵۲- م**

***

داصالح دهغه غسان ورور ، چی دسیستان دحکمران ابراهیم د زوی احمد له خوا چی په بست کی حاکم و، وژلی سوی ؤ، او سرئې دسیستان دحکمران په امرپه سیستان کی په دار ځړولی سوی و .

څنگه چی غسان دسیستان او بست پرخلگو گران و، نو دهغه په وژلو خواشینی او حکومت ته پور ته سول او دصالح ملائې وتړله ، په تېره بیادلیث زوی یعقوب چی دسیستان دعیا رانو مشرو ، دصالح قوت ډیر زیات کړ ، څو چی دبست خلگو دصالح سره بیعت وکړ او صالح خلور پنځه زره سپاره او پلی راغونډ کړه او دلیث زوی یعقوب ئې دبست کوتوال او سرهنگ وټاکه او المستعین بالله خلیفه (۲۴۸ ه ق) تر وختو پوری دبه اقتدارخاوند و ، خو ترهغه وروسته د سیستان دمشرانو دمالو پرمصادره با ندی دصالح او یعقوب ترمنځ اختلاف پیدا سو ، اوتر پرله پسې جگړو وروسته صالح دیعقوب په لاس کښېوت بندي ئې کړ ، او د (۲۵۱ ه ق) کال دمحرم په ۱۷ دشنبې په ورځ په هغه بند کی مړ سو .

**۲۳۳ - هـ ش** دبلخ نوميالی عارف اوصوفی ابوحامداحمد دخضرويهٔ بلخی زوی په بلخ
**۲۴۰ - هـ ق** کی وفات او د بلخ دنو بهار تر دروازې د باندی ښخ کړه سو. ده
**۸۵۴ - م** دابرا هيم أد هم سره او دا بو ترا ب نخشبيی ا و حـا تم ا صـم سره
صحبت کړی او دتصا نيفو خاوند و، او دده ماندينه « فا طمه خا تون » هم ښه عا رفه
او صالحه ميرمن وه.

* * *

او په همدې کال امام قتيبه دسعيد بغلانی زوی چی دخپل وخت لو محدث و، او په
(۱۴۸ ه ق) کال په بلخ کی زېږ يدلی و، په بغلان کی و فا ت او همهلته ښخ کړه سو.

**۲۳۴- هـ ش** د خراسان‌د سرخس نوميالی محدث ابو قدامه عبيدالله د سعيد سر خسی
**۲۴۱- ق** خرا سا نی ز وی و فا ت سو.
**۸۵۵- م**

***

**۲۳۶- هـ ش** دهمدې کال په جمادی الاولی دافغا نستان دوزير ستا ن په «تو چی»
**۲۴۳- ق** نو می ځای کی پر ډبره يوه‌ليکنه په عربی او سنسکريت سو ې ده چی
**۸۵۷ - م** عربی رسم‌الخط ئې کوفی او سنسکر يت ئی په «سره دا SARADA »
ر سم الخط ليکلی سو ی دی.

داليکنه (کتيبه) اوس د پيښورپه موزيم کی ده اوله هغې څخه ښکارېږی چی ددريمی
هجری پېړی په منځ کی لادافغانستان په دې سيمه کی دسردا رسم الخط رواج درلود.

**۲۳۷-هـ ش** ددې کال د جمادی الا خر په ۲۷ د جمعې په ورځ په هغه جګړه
**۲۴۴- ق** کی چی دنصر دزوی صالح او دليث دزوی، يعقوب ترمنځ پېښه سوله،
**۸۵۸- م** د يعقوب ورور طاهر ووژل سو، خو صالح هم ماته وکړه او وتښتېد،
او پرځا ی ئې ورور «درهم» دنصر زوی ديعقوب له خوا دسيستا ن په امارت وټاکل سو، او
يعقوب دسپه سالار په حيث ورسره ملګری و، خوددې دووتنو ملګری هم تر ډېره پاته نه سوه.

* * *

په دغه کال دبلخ نوميالی محدث محمد دابان بلخی زوی په بلخ کی مړ سو.

**۲۳۹-هـ ش** دليث زوی يعقوب د سيستان حکمران « درهم » خلع اوبندی کړ.
**۲۴۶- ق**
**۸۶۰ - م**

**۲۴۰ـ ھ ش** ددې کال دسحر م په ۲۵ دشنبې په ورځ دلیث زوی یعقوب دسیستان
**۲۴۷ـ ق** د خلکو اولښکرو له خوا دسیستان امیر و ټاکل سو، او د ا ما رت
**۸۶۱ـ م** پرتخت کښېنوست اوله هغی ورځی څخه په سیستان کی د«صفار»د کورنۍ
دخپلواک امارت بنسټ دیعقوب بن لیث په لاس کښېښودسو.

یعقوب دیوه سیستانی پیښ (صفار) زوی و، چی د زرنج د ښار دلمرختوخواته یوسنزل لیری د قرنین په کلی کی اوسیده او دنورو درو ورونو عمرو ، طاهر او علی سره د پلاره په کسب بوخت و . څه موده پس د زرنج وښار ته راغی ، او دیوه بل پیښ دورځی په پنځلسو درهمو مزد و رسو ، خو څنګه چی طبیعتاً ځوانمرد ، سخی سړی و ، نوهرڅه چی به یې سو ندل د خپلو ملګرو ا و خپلو ښا ر یا نو سره به یې خوړل او دهغو زړونه یې خپلول ، مګر بیاهم دده لوړهمت اوزیات زیرکتوب د پلا ر په کسب نه قانع کیده نود خپلو ملګرو سره دسیستان دځوانمردانو (عیارانو) د ډلی سره یوځای سو او په لاروهنه یې لاس پوری کی ، خو په لاروهنه کی هم دځوانمردی او انصاف له لاری نه ووت، څوچی په (۲۳۲ ھ ق) کال د خپلو ملګرو سره دنصر بستی دزوی صالح سره یوځای سو ، او صا لح دده په مرسته و کولای سوه چی د بست ښارونیسی او دهغه ځای له خلکو بیعت واخلی ـ نوله همدې ځا یه دیعقوب دشهرت اونوسیالیتوب لوړی پړاو پیل سو ، څوچی په خپله دسیستان د ا ما رت پر کرسی کښېنوست ، او بیا یې خراسان او کرمان اوفار س او کابل ونیول او په خرا سا ن کی یې دطاهریانو امارت پای ته ورساوه ، او دافغانستان د ټول هیواد له آمو څخه نیولی تر سیستا ن ا و مکر ان پوری اوله بادغیسه اوسرو او هرات څخه نیولی تر کابل او ګردیز اوزابل پوری یو غښتلی پاچا سو (چی دده دفتو حاتو او کارنامو لنډه یادونه به وروسته د تاریخ په ترتیب په دی کتا ب کی وسی .)

دی دافغانستان لوسړی پاچا دی چی داسلامی خلافت پایتخت د ده نوم په خطبه کی دبغد اد دخلیفه دنامه سره یوځا ي یاداوه .



او په همدې کال دبغداد خلیفه المتوکل ووژل سو ، اودهغه پرځای المنتصردشوا ل په اوومه دپنجشنبې په ورځ خلیفه سو ، او هغه هم په خراسان کی ددوهم طاهر پوشنګی امارت په رسمیت وپیژ اند .



همدارنګه په دې کال دبلخ نوسیالی عالم دیعقوب بلخی زوی احمد مړاو په بلخ کی ښخ کړه سو.

**۲۴۱ - هـ ش** دبغداد خلیفه المنتصر مړسواوپرځای یې المستعین پرخلافت کښېنوست
**۲۴۸ - هـ ق** هغه په خراسان کې ددوهم طاهر پوشنګی امارت په رسمیت وپیژاند ، خو
**۸٦۲ - م** دطاهرپوشنګی سرهژوند وفاونه کړه ، اودهمدې کال درجب په ۲۲ ددوشنبې
په ورځ مړسو ، اودهغه زوی محمد پوشنګی دخراسان دامارت پرګر سی کښېنوست ، اودبغدا د
دخلیفه المستعین له خوا په رسمیت وپیژاند سو .
محمد یوغافل اوعیاش امیرو ، ځکه نودده دغفلت په وجه په طبرستان کی بلواوسوه اوشورښت
منځ ته راغی ء .



دهمد ې کال په جماد ی الاخر کی یعقوب صفاری دنصر د زوی صالح دنیو لو دپا ر ه له
سیستانه بست ته ولاړ ، خوصالح له بلی لاری سیستان ته وتښتید ، یعقو ب په هغه پسی سیستا ن
ته ولاړ ، اوصالح یې له هغه ځایه هم ویوست ، اوډیری ولجې یې ځینی ونیولې ، اوهم یې دسیستان
دخوارجو مشرانو ته په درنه سترګه و کتل اوخوشحاله یې کړه .
**۲۴۲ - هـ ش** دنصر زوی صالح بیا په بست کی پورته سو ، او یعقو ب د لیث ز وی
**۲۴۹ - هـ ق** ددی کال درو ژی په میاشت ددوو زرو جګړنو سره دبست خواته راغی ء
**۸٦۳ - م** خوصالح دزابل لوری ته وتښتید اورتبیل شاه ته یې پناه یووړه .
څنګه چې په سیستان کی اسدو یه خارجی پربنار یرغل کړی و ، نویعقو ب بیر ته سیستان ته
وګرځید اسدو یه یې ونیو اوغړ غړه یې کی ء ، پخپله بیرته بست ته راغیء .
صالح درتبیل شاه په مرسته بیا پربست یرغل وکیء ، اویعقوب درخد (یا : رخج) په سیمه
کی درتبیل سره ونښت ، اودهمد ې کال دذی الحجې په اوومه دپنجشنبې په ورځ یې دسختې جګړې
په پای کې رتبیل شاه دشپږوزرو جګړنو سره ووواژه اودیرش زره یې بندیان ونیول ، اوهم ځلور ز ر ه
اصیل اسان دډیرو نورو ونجو اوپیلانو سره په لاس ورغلل ، اوصالح د پنځو زروسپروسره و تښتید .
یعقوب درتبیل زرین تخت ، خزانه ، وسلې اودوژلیو کسانو سرونه یې په دوو سو و کښتیو
کی سیستان ته ولیږل چې په هغو کې درتبیل ورور « احرس » هم و ، بیانو یعقوب درخد حکومت
درتبیل دا کا « حجر » زوی صالح ته وسپاره .
**۲۴۳ - هـ ش** دهمدې کال په شاو خوا کی دپښتنو یونو میالی نیکه « شیخ بیټنی »
**۲۵۰ - هـ ق** د کسې دغره په لمنه کی خپل مشهور مناجات و یلی ، اوپه هغه کی یې
**۸٦۴ - م** له اوی خدا ی څخه دخپلو وګړو دپرښت غوښتی و .

**٢٤٤-ھ ش** په طبرستان کې د علوي دولت مؤسس دزيد علوي زوی حسن دعبدالله
**٢٥١ - ھ ق** پوشنګي زوی سليمان ته پورته سو ، داسليمان د طاهر پوشنګي نمسی او
**٨٦٥- م** د طبرستان والي و . سليمان ما ته وکړه اوحسن علوي طبرستا ن ونيو .

* * *

د دغه کال دجمادی الاخر په ٢٨ دشنبې په ورځ د سيستان دخوارجونامتواو جنګيالی مشر «عمار» په هغه جګړه کې چې ديعقو ب سره ئې وکړه وو ژ ل سو، او يعقوب امر و کړ چې دهغه سر دې د سيستان دښار په يو ، وره کې او بدن دې په بل وره کې وځړوی ، اوتر هغه وروسته دسيستا ن دخوارجو په بزم کې هم درزپيدا سو ، او زيا ترو ئې د يعقوب سر ه بيعت وکړ ، او دا همهغه «عمار» و، چې يعقوب دخپل امارت په لومړی کا ل (٢٤٧ ھ ) ده ته پيغام استو لی و، چې :

« کـه سلا متيا غواړ ې نو د « امير الؤ منينی » فکر له سره ليری کړ ه راپاڅه دخپلو جګړنوسره زموږسره لاس يوکه - چې موږ په ښه نيت راولاړ سوي يو ، سيستان چاته نه ورکوو، او که لوی خدای سوبه راکړ ې نود سيستان ولايت به پراخه کو، او که دې دانه خوښېږ ی نوپه سيستان کې څوک مه آزاروه »

عمار وعد ه ورکړ چې څوك به نه آزارو ی خو وروسته يې خپله وعد ه ماته کړه او يعقوب ته پا څېد .

* * *

او په دغه کال دخراسان نوميالی فقيه دا زهر خرا سانی زوی محمد د « الاختيا را ت » مؤ لف و فا ت سو .

**٢٤٥-ھ ش** دبغدا د د خليفه المستعين خلع کړ ه سو ، او پر ځای ئې د التموکل
**٢٥٢- ھ ق** زوی المعتزخليفه وتاکل سو . هغه هم په خراسان د طاهر پوشنګي د
**٨٦٦- م** زوی محمد پوشنګي امارت په رسميت وپېژ اند .

***

په همدې کال درتبيل شاه دا کا زوی صالح چې ديعقوب صفاری له خوا درخد حکومت ورسپارل سوی و، يعقوب ته پور ته سو .

ځکه نويعقوب صفاری دارغنداود کوهژ (کوهك) دکلا سره د صالح مقا بلې ته ورغی ، خو

صالح چې دمقابلې توان نه درلود ځان ئې وواژه او د هغه سرې ئې بست ته یووىء او هلته ئې ښخ کړ ، او یعقوب خپل یو باوری سرې هلته د کوهژ په کلا کې کښېناوه .

**۲۴۶- ه ش** یعقوب صفاری له رخده والشتان او بست اوز سیند اور ته ستو ن سو ،

**۲۵۳- ه ق** او وروسته تر هغه چې په والشتان او بست او زمیند او رکی ئې والیا ن

**۸۶۷- م** وټاکل د همدې کال دجمادی الاولی په ۲۶ سیستان ته ولاړ ، اوله هغه ځا یه د همدې کال دشعبان په ۱۱ دشنبې په ورځ د هرات خواته وخوځېد او په سیستان کې یې دعبدالله زوی داؤ د خپل نائب پر ښو د .

هرات ئې دعبد الله پوشنګی له زوی حسین څخه چې دطاهر دز وی محمد نائب و ، ونیو او پخپله حسین ئې بندی کې ء .

دطاهرپو شنګی زوی محمدچې دحسین لهبند یګر ته خبر سو ، د خراسان دار دو سپه سا لا ر دالیا س زوی اوداسد سامانی نمسی ابراهیم یې د لوی لښکرسره پوشنګ ته دیعقوب سره دجګړې د پاره ولیږه ، خویعقوب هغه ته سخته ماته ورکړه اوپوشنګ ئې هم ونیو. ا برا هیم په ما ته د محمد خواته ولاړ اوهغه ته ئې وپهمول چې :

« ددې سړ سره جګړه نسې کېدا ی ، هغه هولناکه سپاهیان لر ی چې له و ژ لو څخه هیڅ باك نه لری ، بې تکلیفه اوبې پروا جنګیږی ، اوبې له توری وهلو هیڅ کا ر نه لر ی ، ته به وایې چې لهموره دجنګ د پاره زیږیدلی د ی ، ټول خوارج ورسره یو سوی د ی ، نو ښه داد ه چې دهغه دمداراله لاری ورواند ی سی ء »

محمد دابراهیم مشوره ومنله اویو لیک ئې دډیرو سوغاتو او دسیستان اوکابل اوکر ما ن اوپارس دفرمان سره یعقوب ته ولیږه نو یعقوب هم آ رام سو ، او سیستان ته د بیر ته ګر ځید و نیت ئې و کې ء .

وایی چې دهغه وخت شاعرانو دده پهستاینه کې پهعربی ژبه شعرونه و و یل ، خو څنګه چې یعقوب پهعربی ژبه نه پوهیده نودتاریخ سیستان دمؤلف پهقول دخپل در بار منشی دو صیف زوی محمد سا کزی ته و و یل :

«چیزی کهمن اندر نیا بم چرا باید ګفت ؟ » تر هغه وروسته محمد وصیف پهدري ژ به په شعرویلو خوله پوری کړه اولکه دتاریخ سیستان مؤلف چې لیکی : «اول شعر پارسی اند ر عجم اوګفت ، وپیش از و کسی نګفته بود که تا پار سیان بودند.»

**۲۴۷ - ه ش** ددې کال دذی الحجې پهدوه ویشتمه دشنبې پهورځ یعقوب صفار ي

**۲۵۴ - ه ق** دپارس او کرمان‌خواته ولاړ ،اوچې «بم» تهورسید دخوارجو مشراسماعیل

**۸٦۸ - م** دموسی‌زوی یې مقابلې تهراووت ، خویعقوب هغهدجگړې پهډگر کې و نیو

بندی یې کیء ، اوپخپله کرمان تهوخوځید .

**۲۴۸ - ه ش** دپارس والی علی دحسین زوی چې دیعقوب لیث صفاری له و رتګک

**۲۵۵ - ه ق** څخه خبرسو ، نوپنځه زره سپاره یې دمغلس دزوی طوق په سالاری

**۸٦۸ - م** کرمان ته ور ولیږ ل او دمخه تردغه چې یعقوب کرمان تهور ورسیږي

طوق کرمان ونیو ، یعقوب دوې میاشتې دکرمان پنارته نژدې‌تیری کړلې ، اوپه پا ی کې یې

پوحربې تدبیر وسنجاوه اوهغه داو ، چې د سیستان‌خواته یې دخوځیدو هڅه وکړه او دا سې یې

وښووله‌چې بیرته سیستان تهراګرځی ، دوه منزله هم‌دسیستان‌خو اتهراغی ، اوطوق‌په دې‌گمان

چې‌یعقوب دکرمان نیول پریښوول په عیش اونوش بوخت سو ، خویعقوب په یوهورځ کې هغه

دوه منزله واټن بیرته دکرمان خواته وواهه ، پرکرمان یې‌ناڅاپه یرغل وکیء کرما ن یې

ونیو اوطوق یې بندی پهلاس کښیوت ، بیانو د شیرا ز خواته وخوځید .

دپا ر س‌والی‌علی‌چې‌دطوق‌پهماتې‌خبرسو، دپنځلسو ز ر و جگړنو سره دیعقو ب لیث مخ نیوی

ته و ووت ،خو یعقوب دهغه لښکر ته هم ماتهورکړ .او پخپله‌علی‌یې بندی ونیو ، او دهمدې

کا ل د جما د ی الاولی پهخو رلسمه شیر از ته ننه ووت ،اوډیری‌و لجې یې‌په لاس‌کښیو تلې

چې سر بیره پر پنځو زرو اوښا نو او یو زر غا ترو دیعقوب هر سپاهی‌تهدرې سوه درهمهورسیدل

او درجب په دو همه د پنجشنبې په ورځ بیر ته سیستان ته را غیء ، او درې‌ورځې ورو سته

د بغد اد خلیفه ا لمعتز و و ژ ل سو ،او د هغه پر ځای المهتدی د خلا فت‌پر مسند کښینوست

اوهغه هم په خرا سان کې دهر ات د طا هر یا نو اما رت په ر سمیت و پیژاند.

په د ې ځای کې با ید داهم وویل سی چې دیعقوب‌لیث‌او علی تر منځ دجگړې له سهمو

عواملو څخه یو هم د ا لمعتز خلیفه دد ربار لمسو ن او تفتین و ، چې‌هم یې یعقو ب‌او هم‌یې

علی ته جلا جلا فر ما نو نه خو پهیوه مضمون وا ستول چې په هغو فر مانو کې یې پر کر مان

با ندی هم‌د یعقوب او هم د علی امارت په رسمیت پیژ ند لی و ،اودا ددې دپاره و ، چې

ا لمعتز پو هید هچې دا د و اړه عجمیا ن د ملی‌احساساتو تر اغیزې‌لاندی‌پرخپله خاوره‌دعر بی

سلطې مخا لف و و ، ځکه نو ا لمعتز د خپلو فرما نو په را استو لو دد وی ترمنځ دنفاق تخم

و پاشه‌او دخپل سیاسی ا قتدار دټینګو لو دپاره یې دخلافت‌له‌د ینی‌اقتدار څخه کټه‌وا خیستله.

په دغه کال د زابل د رتبیل شاه زوی چې یعقوب لیث هغه په بست کې بند ی

سا تلی و ، له بند ه و تښتېد او د رخج (رخه) خواته ولاړ، او دخپل پلار دو ژنی

د کسات اخیستلو په غرض یې یو لښکر راغونډ او دخپلوا کۍ اعلان یې و کې ء .

هغه و ، چې یعقوب ددغه کال د ذی الحجې په پنځه ویشتمه رخج ( کندهار ) ته راغیء ،

او د رتبیل زوی کابل ته راوتښتېد ، یعقوب په هغه پسې راغیء ، خو څنګه چې واورو لار بنده

کړې وه نو بیرته سیستان ته وګرځېد ، په لاره کې یې د پېر تر کان او خلجیان ووژل ، ښاروی او

مریان یې ځینې بوتلل .



په دغه کال د هرات د عربی ژبې عالم د حمدویه هروی زوی شمر د کتاب الجیم مؤلف

وفات سوی ، او هم د کرا میا نو د مذهب مؤسس د کرام سیستانی

زوی محمد په بیت المقدس کې مړ دی او هم د سیستان بل لوی نومیالی عالم د محمد

سجستانی زوی ابو حاتم سهل چې په ۱۷۲ ه ق کال زېږېدلی و ، له دنیا تللی دی .

**۲۴۹ – ه ش** یعقوب لیث دشوال په څورلسمه د جمعې په ورځ د رتبیل تر تیښتې

**۲۵۶ – ه ق** وروسته سیستان ته ورسید . ده سربیره پر نورو ولجو او ښارو یو یو شمېر

**۸۶۹ – م** زرین بتان چې د کابل په لاره کې یې له بو د ا ئی بود تونو څخه چې

ده وران کړی وو ، دځانه سره یووړه .

یعقوب څه موده په سیستان کې و ، بیا هرات ته ولاړ ، او د هرات حکومت یې د طاهر

پوشنګی نمسی حسین د عبدالله زوی ته چې د رتبیل په جګړه کې ده دده ملګری و ' وسپاره ، د یرلس

ورځې هلته و ، بیا بیرته سیستا ن ته ولاړ .

**۲۵۰ – ه ش** د دې کال د محرم په ۲۵ د پنجشنبې په ورځ یعقوب لیث له سیستا نه

**۲۵۷ – ه ق** د کرمان خواته وخوځید . خو د واصل زوی محمد چې د بغداد د خلیفه

**۸۷۰ – م** له خوا د پارس والی و ، د ډېرو سوغاتو او هدیو سره د یعقوب مخې ته

راغیء او د هغه اطاعت یې ومانه ، یعقوب هم د پارس ولایت بیرته هغه ته وسپاره ، او د خپل

استازی په لاس یې پنځوس زرین بتان چې له کابله یې راوړی وو ، د بغداد خلیفه معتمد ته ولیږل

چې مکې ته یې واستوی چې هلته یې د مکې د حرم په لاره کې فرش کړی .

په دغه کال د سیستان لوی عالم او نوسیا لی محدث دامحق سجستانی زوی ابو داؤد سلیمان دالسنن خاوند په بصره کی مړ سو .

**۲۵۱ - ه ش** یعقوب لیث ددغه کال دمحرم دمیاشتی پهځلرمه پارس ته ورسید ، او
**۲۵۸ - ه ق** دبغداد خلیفه المعتمد دخپل ورور ابواحمدالموفق پهلاس چی ولیعهد
**۸۷۱ - م** یې هم و ، دبلخ او تخارستان اوپارس او کرمان او سجستا ن او سند دولایانوفرمان او لوا یعقوب تهولیږل اویعقوب همدهغه ولیعهد تهډېر سوغاتونه او خلعتونه ورکړه او پخپله بیرته سیستان ته راغیء ، او د دغه کال در بیع الاول ( لومړی خور ) په پنځه ویشتمه دشنبې پهورځ درتبیل دزو ی د سر کوټولو دپاره د کابل نو ری ته وخوځید ، او چی زابلستان ته ورسېده در تبیل زو ی د نای لا مان په کلا ننه ووت ، اوتر پر له پسې جګړو وروسته دیعقوب پهلاس بندی کښیووت ، بیا نو یعقوب له هغه ځایه دبامیان له لاری بلخ ته ولاړ ، اودبلخ والی داؤد دعبا س (الیا س) زوی و تښتید او بلخ دیعقوب لا س ته ورغیء او دبشیر زوی محمد یې هلته دخان دنائب پهحیث وټاکه اوپخپله هرات ته وخو ځید ، دهرات والی دمحمد زوی عبدالله همله هغه ځایهنیشاپور ته و تښتید او یعقوب د هرات ښارته ننه ووت اودهرات دخلکو سره یې ښهرویه غوره کړه .

دادتاریخ سیستان دمؤلف قول ، خو دزینالاخبار مؤلف عبدالحی گرد یزی دا پیښې په (۲۵٦ ه ق ) کال کی ګڼی او داسی لیکی :

« پس از سیستان بهبست آمد وبست را بگرفت واز انجابه پنجوا ی و تگین آباد آمد ، و با رتبیل حرب کرد وحیله ساخت ورتبیل رابکشت وپنجوای ورخود بگرفت ، وازانجا بغز نین آمد وزابلستان را بگرفت وشارستان غزنین را بیا فگند ، وبگردیز آمد ، و با ا بو منصو ر ا فلح بن محمد بن خاقان که امیر گردیز بود حرب کردو بسیار کشتن کرد ، تامردمان اندرمیان شدند وابو منصور گروگان بداد وضمان کرد ، که هر سال ده هزار درم خراج به سیستان بفر ستد ، واز انجا بازگشت ، وسوی بلخ رفت ، وبامیان بگرفت اندرسنه ست و خمسین ومأتین ( ۲۵٦ ه ) نوشاد بلخ راویران کرد ، وبناهای کهداؤد بنالعبا س بن هاشم بن ماهجور کرده بود ، همه را ویران کرد ، از آنجا بازگشت وبکابل شد وشاه کابل را قهر کرد ، و پیروز رابگرفت و سوی بست شد . »

۲۵۲ - ه ش عبدالرحیم یاعبدالرحمن نومی دکروخ دخوارجو مشرپورته سواوڅان یې
۲۵۹ - ه ق «امیرالمؤمنین» وباله اود «المتوکل علی الله» لقب یې څانته و تا که او
۸۷۱ - م دهرات اوسبزوار دغرواوخراسان دنوروسیمو خوارج یې پرڅان راغونډ کړه
او هری خواته یې پهیرغلونو پیل وکړ؟ څنګه چې دخراسان سپه سالارانو دی ایل کولای نهسو پخپله یعقوب لیث پههمدې کال پهغه پسی دواورو ډکو غروته ننهووت ، اوترهغوپوری پهغه پسی و ، څو چې عبدالرحمن لهیعقوب لیث څخه پناه وغوښتله اوڅان یې ورته وسپاره ، یعقوب هم هغه ته پناه ورکړه اودسبزوار حکومت دهغهڅای دبیابانو ا وسرحد وساتنه یې هغهته وسپارله اوپهخپله هرات تهولاړ ، هغهو ، چې دده ترتګ وروسته خوارجو عبدالرحمن وواژه او داخضر زوی ابراهیم یې دڅان مشرونا که ، اوابراهیم دډیرو سوغاتو او اسانو اوسلو سره یعقوب لیث تهراغی ، اودهغه اطاعت یې ومانه ، یعقوب هم دهغهڅای حکومت بیرته هغهته ورکړ ، اودهغه لښکر یې د «جیش الشراة» پهنامه وباله ، اوپخپله دجمادی الاولی په ۷ سیستان تهراوګرز ید - څه موده هلته و ، څو چې پهسیستان کی یوسړی دعبدالله پهنامه چې دمحمد زوی اودصالح سا کزی نمسی و ، دامارت پهادعا یعقوب ته دخپلو دوو ورونو سره پورتهسو ، یعقوب هغوته ماته ورکړه او هغوی لهسیستانه نیشاپور تهوتښتیدل اودخراسان والی دطاهر پوشنګی زوی محمدته یې پناه یووړه ، اویعقوب په دی پلمه چې پهعبدالله پسی ځی دنیشاپور خو اتهرهی سو .

هغهوخت چې یعقوب دنیشاپور درې منزلی «فرهادان» ته ورسید دخراسان دوالی «محمد» دترهزامن اوسالاران چې په نیشاپور کی وو ، ټول یعقوب تهورغلل اوڅانونه یې تسلیم کړل او یعقوب دهغو سره نیشاپورته ولاړ .

دلته دوه روایتهدی یوداچې دزین الاخبار مؤلف ګردیزی لیکی چې دخراسان والی محمد پوشنګی یعقوب ته پیغام راولیږه چې : «که امیرالمومنین (یعنی دبغداد دخلیفه ) پهفرمان راغلی یې عهد اومنشور (یعنی فرمان ) وښیه چې ولایت تاته وسپارم ، اوکه نهوی نوبیرته وګرزه !»

دا پیغام چې یعقوب تهورسید نوترخپلی مصلې لاندی توره یې راویستله اوویو یل :

«زما عهد (فرمان )اولوا داده» بیانو شادیاخ ته ولاړ اودشوال پهدوهمه یادریمه یې «محمد» ونیو بندی یې کړ اوټولی خزانې څینی ضبطی کړلې .

خودتاریخ سیستان مؤلف دهغی پیښیدامی روایت کوی :

«چون یعقوب بدرنیشاپور آمد رسول فرستاد سوی محمد بن طاهر که من بسلام تو خوا هم آمد ، عبدالله بن محمد(۱) به محمد بن طاهر گفت : «آمدن اووسلام اوصواب نیست، سپاه جمع کن تا حرب کنیم» .

محمد بن طاهر گفت : « ما با او بحرب برنیا ییم وچون حرب کنیم اوظفر یا بد وما را بجان آسیب رسد .»

خون عبدالله بن محمد چنان دید برخاست وبد ا مغان شد ، ومحمد بن طاهر همه و ز رأ را پیش یعقوب فرستاد ، ودیگر روز خود زر نشست نزد یعقوب رفت » او دبغداد دخلیفه دفر ما ن اومنشور په باب کی دا سی لیکی :

«یعقوب بنیشاپور قرار گرفت ، پس اورا گفتند که مردمان نیشا پو ر می گویند که یعقوب عهد ومنشور امیرالمؤ منین ندارد وخارجی (یعنی منسب بخوارج )است ، پس حاجب را گفت :

« برو ! منادی کن تابزرگان وعلما و فقهای نیشاپور ورؤسای ایشان فردا اینجاجمع باشند تاعهد امیرالمؤ منین برایشان عرضه کنم . »

حاجب فرمان داد که تا منا دی کردند ، باسداد همه بزرگان نیشاپور جمع شدند ، بد رگاه آمد ند ویعقوب فرمان داد تادوهزار غلام همه سلاح پوشید ند ، وبایستادند ، هر یک سپر ی وشمشیری دردست ، وخود برسم شاهان بنشست ، و آن غلا مان دوصف پیش ا و با یستا د ند فرمان داد تامرد مان اندر آمدندو پیش او بایستادند ، ا و گفت :

«بنشینید - » پس حاجب را گفت .

« آ ن عهد امیرالمؤ منین بیا ر ! تا برایشان بر خوانم »

حاجب اندر آمد وتیغ یمانی بدست که دردستا رمصر ی پیچیده بیاورد ، ازدستا ر بیرو ن کرد ، وتیغ را پیش یعقوب بنهاد، ویعقوب تیغ بر گرفت وبجنبانید ، آن مرد ما ن بیشتر بیهوش گشتند وگفتند : مگر بجانهای ما قصد ی د ار د .

یعقوب گفت :

«تیغ نه ازبهر آن آوردم که بجان کسی قصدی دارم ، اما شماشکایت کرد ید که یعقوب، عهد امیرالمؤمنین ند ا ر د خواستم که بدانید که دا رم ! »

مر دما ن باز برجای وخر د با ز آمد ند ، وباز یعقوب گفت:

---

(۱) داهغه عبدالله و ، چی یعقوب لیث پسی تللی و .

«ایا امیر المؤمنین را ببغداد این تیغ نشا ندست ؟»

گفتند: «بلی!»

گفت: «مرا بدین جایگاه نیز همین تیغ نشاند، عهدمن وآن امیر المؤمنین یکی است»

هغه و، چې یعقوب دبیرته را تګ په وخت کې دطاهر پوشنګی زوی محمد او د هغه اویا تنه خپلوان دخانه شره سیستان ته بو تلل او دامحمد په خراسان کې دهرات د طاهریانو د سلسلې وروستنی امیرو، او دده په تګ سره په خراسان کې دطاهریانو دامارت کمبله تر ۳۵ کا لو روسته ټوله سوه.



په همدې کال دجوزجان لوی اونو میالی محدث د یعقوب جوزجانی زوی ابراهیم وفات سو.

**۲۵۳-ه ش** یعقوب لیث د عبد الله ساکزی په تعقیب پسې چې دګرګان امیر حسن **۲۶۰-ه ق** د زید علوی زوی‌ته یې پناه وړې وه د ګرګان او طبرستان خوا ته **۸۷۳ - م** وخوځید، دزید زوی حسن ته یې و لیکل چې عبدالله‌ده‌ته وسپاری، حسن ونه منله، یعقوب ور باندی یرغل و کیء اود «ساری» د ښار په شاو خوا کې جګړه ونښتله، حسن ماته و کړه او دد یلم غروته‌وخوت، ساری‌او آمل دیعقوب په‌لا س‌ورغلل او پر د یلم یې ورو دا نګل، خودې پر باران د او ریدو په سبب د یعقوب‌لښکر ته زیا ت تاوان ورسید او مجبو رسو چې بیرته خراسا ن ته را وګرزی، او بیا چې یې وا و ریده چې عبد الله ساکزی د «ری» والی «صلا بی» ته پناه وړې ده‌نوهغه یې تهدید کیء چې‌عبدالله ورو سپاری، د«ری»والی هم عبد الله او د هغه ورونه یعقوب‌ته وسپارل، یعقوب هغه‌وواژه او د هغه دوه ورونه یې په نیشا پور کې‌ژوندي‌په د یوال پوخکوبه کړل او پخپله سیستا ن ته را و ګر زید.

خو، دتاریخ سیستان‌مؤلف لیکی چې: د طبرستا ن سر زبا ن عبد الله سا کزی‌ونیو، او یعقوب ته یې‌وا ستا وه.



په دغه کال ابودا ؤد محمد دا حمدزوی اود با نیجور نمسی‌چې‌د بلخ او تخار اوجوزجان او ترمذ امیرو، سکه و هلې وه.

**۲۵۴-ه ش** دديِ کال د شعبان په ۱ تلسمه یعقوب لیث له سیستانه د پارس په نیت
**۲۶۱-ه ق** وخوځید ،او په ديِ سفر کیِ د خراسان له بند یانو څخه د پارس پخوانی
**۸۷۴- م** والی د حسین زوی علی ،اود خراسان پخوانی امیر د طاهر زوی محمد
هم ورسره وو .

یعقوب غوښته چې دوا صل زوی محمد چې دده له خوادکرمان حکومت ورسپارل سوی و ، او د یعقوب په غیاب کی یې پارس او اهواز نیولی او د خپلواکی بیرغ پورته کړی و ، ایل کړی ،خو څه وخت چې اصطخر کی د محمد ګمارلی حاکم د یعقوب هر کلی ته راووت او اصطخر ئې ورو سپاره ،او یعقوب د اصطخر تر نیولو وروسته دشیرازخواته رهی سو ؛ محمد له اهواز څخه دد فاع په غرض دیعقوب مخ ته‌ور ووت،خو یعقوب بری‌وموند او پارس بیا دیعقوب په لاس کښېووت ، اوداهوازپه لو ری و خوځید هغه ښارېې‌هم ونیو او دواسط خوا ته پر مخ ولاړ، او دا پر مختګ د بغداد د خلیفه المعتمد د سخت تشویش سبب سو .

*✿*

په دغه کال المعتمد د ماوراء النهر د ټولو ښارو دامارت فرمان د احمد د زوی نصر سامانی په نامه سمرقند ته واستاوه،اونصر خپل ورور اسماعیل په بخارا کی دخپل نائب په حیث وټاکه ،اوله همهغه وخته د سامانی دولت اساس او بنسټ کښېښو ول سو .

***

اوپه دغه کال د بلخ نومیالی عابد د فضیل بلخی زوی محمد په بلخ کی مړ سو ، دا عابد په ( ۱۷۱ ه ق ) کال زیږیدلی و .

***

همدارنګه په ديِ کال کی د خراسان ډیر نومیالی صوفی او د طیفور په طریقې مؤسس بایزید طیفو ر بسطامی په بسطام کیِ وفات سو .

دديِ کال در جب په ۲۵ د خراسان بل‌نامتو عالم او د «صحیح‌مسلم» څښتن د حجاج قشیری نیشاپو ری‌زوی امام مسلم‌دنیشاپور په نصرآبادکی له‌ديِ‌دنیاڅخه ستر‌ګی‌پټی‌کړلیِ.

**۲۵۵-ه ش** یعقوب لیث د بغداد خواته پرمخ ولاړ، د بغداد خلیفه المعتمد او نور
**۲۶۲-ه ق** خلګ د یعقوب له ديِ پر مختګه پریشانه سول ،او دالمعتمد وروراو
**۸۷۵ - م** ولیعهد یعقوب ته پیغام واستاوه‌چی:

«المعتمد تا ته د خراسان او گرگان او طبرستان او پارس د امارت‌او د بغداد د کوتوالی (شحنگی) فرمان درکړی او دکا فرانو سره یې په جها د مأمور کړی‌یې،نود عراق خواته ستا پرمخ راتگ بې ځا یه دی».

یعقوب‌جواب‌ورکی‌ه چی:«غو ارم‌پخپله‌دخلیفه خدمت‌ته‌ورسېږم‌اودخدمت‌شرط پرځای کم».

هر څه چی الموفق زیار و یوست چی په وعد واو وعیدو دیعقوب‌مخه دبغداد له‌ورتگه بې خواته و اړ وی یعقوب ونه منله ، څو چی په پای کی المعتمد د یعقوب د مخنیوی دپاره نظامی ترتیبات و نیول‌او دبغداد او مدا ین ترمنځ په «د یر العاقول» کی د فرات داوبو دراو تلاو په خوله باندی دد ځاې په ختیز کی‌ددغه کال د رجب په‌دوهمه د یکشنبی په ورځ دد واړو خواوو ترمنځ جگړه و نښته ، په لومړی سر کی یعقوب‌لیث بریا لی سو ،خو هغه وخت‌چی خلافت‌جگړې ته مذهبی بڼه ورکړه او داسلام د پیغمبر خرقه یې ډگر ته را او یستله‌او یعقوب یې‌دامیرالمؤمنین په‌مقابل کی‌یاغی‌وښووه نو دیعقوب‌ځینوجگړ نو دمذهبی تأثرا تو ترا غېزې لاندی له یعقوب څخه مخ وگرز اوه ، اوپا ته جگړن یا د دجاې په او بو کی چې ددوی خوا ته را ایله سوی وې ډوب ،او یا پرشا کیدو ته مجبور سول ، او پخپله یعقوب درې تېو نه پرغاړه او لا س با ندی وا خیستل نا چا ره سو ، چی له هغه چی دده په عـزم کـی څه خلل پیښ سی‌دخوزستان خواته‌را وگرځید څو چی‌هلته نوی لښکر د بغداد د نیولو دپاره را غونډ کړی،او دا د یعقوب لیث لومړ ی ماته وه‌چی چی دده دهیواد د نیو لو په تو له د وره کی ور پیښه سوې وه .

ددې‌ما تی په اثر یوه‌دله هغه بند یان چی‌د یعقوب سره وو ، ایله سول چی په هغو کی یو هم دطاهر پو شنگی زوې محمد و ، او د خلیفه المعتمد له خواد بغداد په کوتوالی وگمارل سو ،او د پارس حکومت یې دوا صل ز وی‌محمدته وسپاره،او هم دخلیفه وروالموفق په یعقوب پسی د خوزستا ن خواته لښکرو یوست ،خوپه لاره کی ناروغه‌سو،بیر ته بغدادته وگرځید ، او یعقوب بیا دپارس او دو اصل زوی محمد نیولو ته‌ملاوتړله .

**۲۵۵-هـ ش** یعقوب پارس بیر ته و نیو او دوا صل‌ز وی یعقوب یې و نیو ، او هم‌د **۲۶۳-هـ ق** محمد هغه تولی خزا نې لاس ته ور غلې چې داصطخرپه یوه‌کلا کی‌یې **۸۷۶ - م** پټی کړی وې او شمیر یې خلو یښتو میلیو نو درهمو ته‌رسیده .

ترهغه بریالیتوب وروسته یعقوب بیا پرا هوازیرغل وکی‌او هغه ځای‌یې دالمعتمد له گما رلیو کسا نو څخه و نیو او بیا عراق ته ورنژ دې سو .

**٢٥٦ـ هـ ش** يعقوب ليث د خو زستان په جندی شاپو ر کی پر بغداد باندی د یرغل د پاره
**٢٦٤ـ هـ ق** په لښکر جو ړولو بو خت و ، چی نا ځا په د قو لنج ـ یا ـ پیچ ناروغی ور
**٨٧٧ ـ م** پیښه سوله ، نو په دې وخت کی د بغداد خلیفه ا لمعتمد دده د آر ا مولو
په غرض د ا ستا ز ی په لا س پیغا م ورته را ولیږ ه چی :

او س مو ږ ته ځر گند ه سوه چی ته یو صا ف او ساده سړی وې او دنورو په خبرو وغو لیدلې
او پر مو ږ دې یرغل و کی ، او س چی خدای موږ ته پر تا باندی بر ی را کی ، ستا گناه مو د ر
بخښلې او ددې د پاره چی پر تا باندی خپله مهربانی له سره نو ې کو بیا هم د پخوا په څیر د خراسان
او پار س امارت تا ته سپار و »

یعقو ب ته چی دا پیغا م ورسیدنو امر ئې و کی چی یوه تو ر ه ، څه وچه ډوډی ، کب ، ترپ
او پیاز د لرگی په یو ه ښا نک کی د خلیفه د ا ستا ز ی مخ ته کېښیږ د ی ، بیا ئې نو
ورته وو یل چی :

«خپل مخدوم ته ووا یه چی زه دیو ه پیښ زوی یم اوله پلاره څخه می پیښی زده کړې ده ،
زما خو ا ړ ه او ر ښتینه ډوډ ی او پیاز او کب او ترپ دی ، اودا او سنی برم او شو کت او دولت
چی و ینې دا می په خپل زړ ر یتوب او زړ و ر تو ب گټلی د ی ، نه داچی د پلار له میر اثه او ستاله
مهر با نی څخه ؛ نو ترڅو چی ستا کو ر نی له مینځه یو نسم تر هغو به نه کښینم ـ که مړسوم
ته به ز ماله خوا آرام سې ، او که پا ته سوم ستاسر و کا ر ددې توری سره د ی ، او که مغلوب
سو م سیستا ن ته را ځم خپل پا ته ژو ند به ددې وچه ډوډی او پیازو تیروم» .

**٢٥٧ـ هـ ش** دبغد اد د خلیفه ا ستا زی بیر ته بغداد ته ولا ړ چی د یعقو ب لیث جواب
**٢٦٥ـ هـ ق** خلیفه ا لمعتمد ته یو سی ، خو دا ستا زی تر رسید و دمخه د سیستا ن
**٨٧٨ ـ م** ددې نامتو او ز ړ و رامیر «یعقو ب بن لیث» دمړ ینی خبر خلیفه ته ورسید ،
چی د دغه کال دشوال په شامه دد و شنبې په ورځ دخو زستا ن په جند ی شا پو ر کی مړسوی
او همهلته خا ور و ته سپارلی سو ی و .

دده داما رت مو ده د( ٢٤٧ هـ ق ) کال د محرم له میاشتی څخه بیا د (٢٦٥ هـ ق ) کال
د شو ال تر شلمی پو ر ی اوولس کاله اولس میاشتی و ه (١) .

---

(١) عبدالحی گر د یزی د ز ین ا لا خبا ر مؤلف د یعقو ب مړ ینه د همدې کا ل دشوال
په څو ر لسمه گڼی .

یعقوب یوسړنی توکلی سړی ، داوړ همت خاوند ، دیندار ، ځوانمرد ، سخی ، هوښیا ر او عادل امیر و ، چې دده دښو خویونو په باب کې ډېر روایتونه سته چې دلته د هغو ټولو راوړل خبره اوږدوی، خودعدل اوداد خواهۍ د پاره یې دا یو حکایت دمثال په توګه بس دی چې وایي:

یوه ورځ یعقوب دسیستان په خضر امانی کې ناست و ، دخلکو شکایتونه یې او رېدل او په دادیې رسید ، له لیری یې یوسړی په سترګه سو ، چې د« سینګک» د کوڅې په خوله کې ناست سربې پرزنګو اینېی په فکر کې ډوب تللی و ، د یعقوب په زړه کې ور وګرځېد چې دا سړی ضرور یو غم او مشکل لري ، نودستی یې خپل حاجب ورولېږه او هغه یې ځانته را وباله او د مشکل پوښتنه یې ځینی وکړه ، هغه سړی ورته وویل چې یوازی ده ته چې بل څوك نه وي خپل حال ویلای سی ، یعقوب ورسره یوازی سو ، هغه سړی ورته وویل چې هرشپه یا یوه شپه تر منځ دامیر یو منصبدار دبام له لاری دده بې اجازې دده کورته راځی دده اودده دلور بې اجازی دده دلور سره بیدیږي اوده زور نه په رسیږی ـ یعقوب ورته وویل : « ولی دې دمخه نه راته ویل؟ اوس کورته ولاړ سه ، دشپې هروخت چې هغه منصبدار ستا کره درغی ، دلته راسه ، یو سړی به د توری اوسپر سره ولاړوی ، هغه به ستا سره ولاړ سی اوپه داد به دی ورسیږی هغه سړي ولاړ ، په هغه شپه هغه منصبدار ورنغی ، بله شپه ورغی ، د کور خاوند تا کلی ځا ی ته و لا ړ ، هلته یې یوسړی د توری اوسپر سره ولید ، هغه د کور دخاوند سره د هغه کور ته ولاړ اود شپې په تیاره کې یې هغه منصبدار په توره دوه ځایه کې ، بیایې نو د کورخا وند ته وویل چې : «ډېوه بله که، هغه سړی چې ډیوه بله کړه و یې لید، چې یخپله یعقوب دی چې د کور خاوندته وا یې:

«لږ ډوډ ی او اوبه راکه ـ ساله هغې ورځی څخه چې ستا شکایت واورېد د خپل خدا ی سره می عهد وکی ، ترهغو پوری چې ستا په داد ونه رسیږم نه او بـه څښم او نه ډوډۍ خورم اوداوي ورځی می نه څه خوړلی او نه څه څښلی د ی» .

د کور خاوندورته وویل : «دامړی څه کم؟» یعقوب ورته وو یل: «دګنده او بو پرغاړه یې وغور ځو ه! »

سپاهي جار وواهه چې : «هرڅوك چې غواړی د داسی سړی وويني چې دخلکو پر ناموس یې تېری، کړی دی د ګنده اوبو غاړی ته دی ورسی »

مؤرخان دیعقوب دسخا او ځوا نمر دی په با ب لیکې چې د ده هیڅ بخښنه تر زر دیناره لږ نه وه اوترهغه ډېر تر پنځه سوه زرو دینارو پوری رسیده ، او حتی یو و خت یې د زیاد زوی عبدالله ته رز واره رز (یوسیلیون) درمه وبخښل .

یعقوب لیه خندل ، اود ده پرتم دلښکر په زړه کی تردې حده و ، چی هیڅا دده بې اجازې په کم کارلاس پوری کوی نهسو ، خوپرده باندی سپاهی تر ډرچا ګران و .

دلښکر دحرکت پهوخت کی دلرګی پریولوړ تخت کښینوست چی تول لښکر بې ترسترګولاندی وی.

دیعقوب پایتخت دسیستان دزرنج پهښارکی و ، چی اوس د افغانستان دنیمروز د ولایت مرکز دی ، دده پهوخت کی خراسان ، سیستان ، تخارستان ، کرمان ، پارس ، کابل او دسند یوه برخه اوڅه موده هم خوزستان دده د فرمانروائی پهقلمروکی شامل وو ، او اووه کاله په سکه اومدینه کی دخلیفه په امر دیعقوب پهنامه خطبه ویله کیدله ، او دده شهرت تر دې حده لوړسو چی دی د «ملک‌الدنیا» او «صاحبقران» په القابو یادیده، اوکنیه نوم یې «ابویوسف» و .

سره لهدې چی دخراج په اخیستلو کی له انصافه نهلیری کیده اودښال پهتوګه له هغهڅاڅخه چی‌عایدبه‌یې‌ترپنځه‌سوه درمه اېو ، خراج نهاخیست بلکه هغه ته به یې صدقه هم ورکوله ، خوبیا هم دده ترمړینی وروسته دسیستان پهخزانه کی‌پنځوس میلیو نه در همه او اتیا میلیونه دیناره وه ، اولښکریې پنځه زره بختی اوښان اولس زره صفاری عاتری دراودلې .

دادده له ویناووڅخه ده چی :

« دعباسیانو دولت پرغدر اودروه باندی راولاړ سوی دی ـ تاسی‌نه وینیء چی‌د ابومسلمه اودابومسلم او دبرمکیا نو د کورنی او فضل سهل سره یې سره د هغو د پر نیکیو څه وکړه ؟ نوهیڅوک باید پر دوی اعتماد ونه کړی . »

همدا سبب و ، چی خلیفه المعتمد او د بغداد دعباسیانو کهول ته یې په یوه منظوم لیك کی‌داسی اخطار ورکړی و ، چی :

« لهدې هیوا ده ووزیء ، کهنهوي دتوری او قلم په زور به وایستل سیء »



دیعقوب ترمړینی وروسته پهدغه کال دهغه ورور عمرولیث دیعقوب دوصیت له مخی دده پرځای کښینوست ، اودبغداد خلیفه المعتمد همدهغه امارت پهخراسان او سیستان او پارس او کرمان‌او اصفهان او طبرستان او عراق‌عجم کی پهرسمیت‌وپیژاند اودبغداد دشحنګی (کوتوالی) عنوان یې ور وباخښه اوپه عوض کی‌یې عمرولیث و منله چی په کال کی شل سیلیونه درهمه دخلیفه خزانې تهدحق المقاطعه په نامه ورکړی .



په همدې کال دهرات‌لوی‌شیخ او نومیالی‌صوفی دموفق زوی‌خواجه علی په هرات کی مړ اوښخ سو.

**۲۵۸ - هـ ش** امیر عمرولیث دبغداد دکو توالی دطاهر پوشنگی نمسی او دعبد الله

**۲۶۶ - هـ ق** زوی عبیدالله ته ورکړه ، او په خپله له خوزستا نه پارس ته را ستون سو

**۸۷۹ - م** اوځنګه چی ئې هلته واورېده چی ددهوروور علی دده پرضد پار و نی کوی

اوده ته بدوا یی نوهغه ئې بندی کړ ، خودهمدې کال درجب په میاشت چی سیستا ن ته راغی بیرته ئې ایله کړ اودیر مال ئې ور وباخښه ، مګر بیاعلی دیعقوب لیث له یوه زاړه سالار سره پټه لار پیدا کړه اوهغه ئې دخپل وروور پرخلاف وپاراوه ، داسالار دعبدالله خجستانی زوی احمدو چی تر ( ۲۶۲ هـ ق ) کال ورو سته د یعقوب سخا لف سو ی و ، او دعلی په لمسون له ګرګا نه خراسان ته راغی اوهغه بنا رئې کلابند کړ.
عمرولیث دخپل وروورعلی اودخپل زوی محمد سره له سیستانه دهرات اولاری نیشا پور ته وخوځید ، او چی هلته ورسید دخجستانی سره ئې جګړه ونښلوله ، خودخپل وروور علی دخیانت اوسستی په سبب ئې ماته وکړه اوهرات ته را پرشاسو ، اوبیائې خپل ورو رعلی بندی کیء.

په همدې کال احمد خجستانی دبیهق دسبزوار مسجد او منبر جوړ کیء .

**۲۵۹ - هـ ش** احمد خجستانی په عمرولیث پسی هرات ته راغیء اوداښارئې کلابند کیء

**۲۶۷ - هـ ق** خو څه ئې ونه سوه کولای ، نو دسیستان خوا ته ئې مخه کړه ، هلته

**۸۸۰ - م** هم دهغه ځای دخلکو دمقاومت په اثرستړی سو ، نودبی دفا ع خلکو په وژلو ، دودانیو په ورانولو او په چوراوچپاو لاس پوری کیء خو سره له هغه هم د سیستا ن په نیولو بریالی نه سو ، اونا کامه دقهستان له لاری بیرته نیشاپور ته وګرځید .

له بل پلوه عمرولیث په هرات کی سرکښو امیرانو ته دمهر بانی لهلاری ورو را ندی سو اودهغو زړونه ئې دځان کړه ، چی دهغو له جملی څخه دوه تنه دصفاریانو زا ړه د ښمنا ن یو دزیدویه زوی محمد دقهستان پخوانی حکمران اوبل ابو طلحه منصور په هرات کی دعمرولیث خدمت ته راغلل اودهغه اطاعت ئې ومانه ، عمرولیث هم هغه دواړه ونازول ، او ابو طلحه ئې دخراسان دټول اردو دسپه سالار په حیث وټاکه اوپخپله له هراته سیستان ته ولاړ ، چی دهمدې

کال دذیقعدې پەسپاشت دزرنج ښارته ورسید . په همدې کال دبلخ نومیالی محدث او فقیه دیحیی شاذان زوی ابو بکر نصر مړ سو .

**۲۶۰ - ه ش** ددې کال دمحرم دمیاشتې پەشپږمە عمرولیث لەسیستانه د پارس خواته
**۲۶۸-ه ق** وخوځیدواود دې خوځیدو سبب یوداو،چی دپارس والی د لیث زوی محمد
**۸۸۱ - م** دکالنی خراج په استولو کی سستی کړې وه ، او بل داحمد خجستانی سره دمحمد دیولا س کیدو څخه اندیښنه ئرلودله .

عمرولیث ډیر ژر دپارس امنیت ټینګ کړ ، اودیعقوب پردوو درو پخوانیو سلګر و ئې چی ده ته پورته سوی‌وو ، بری وموند اوله منځه ئې یو وړه .

الموفق دبغداد دخلیفه ورور لەدی بیری چی‌عمرولیث دخپل‌ورور یعقوب غوندی پر بغداد پر غلی ونه کړی،ده ته دنوی ترون او فرمان سره خپل مخصوص استازی را واستا وه ، اوهغه استازی د بغد ا د له د ر با ه عمرو لیث ته داسی پیغام راووړی :« تەدار الکفر ( یعنی دسیستان لەرخاتەاودسنداوترکستانشاوخواته چی تر هغەوختەلا مسلمانانو تسخیرکړی نەوو)ولاړسه ،او خپل‌سپا یا ن غزا تەوګما ره! »

عمرهم هغه پیغام وسانه ، پارس ئې داحمد زوی نصرته پر یښو وه ، او پخپله سیستا ن ته ستون سو .

د همدې کال د شو ال په میا شت احمد خجستانې چی ترهغه وخته ئې‌پرتخارستا ن او خر اسان باندی پر غلونه کو ل‌اوپو وار ئې هم د عمر و لیث پر سپهسا لار ابوطلحه باندی بری موند لی و، دمستې اونشې پەحال‌دخپلودومر یانوپه لاس‌ووژل سو ، اوملګری‌ئې دهرثمه پر زوی را فع باندی‌راټول سول‌چی وروسته ئی ترڅه سودی پوری‌عمر و لیث څو را وه، او د سر درد ئې ورته پیدا کاوه .

**۲۶۲-ه ش** عمر ولیث دهمدې کال د جمادی‌الاخرې‌پەلسمەد پنجشنبی پەورځ سیستان
**۲۷۰-ه ق** ته و ر سید ، خو دده ترشا په خر اسان‌کی د هرثمه یا د غیسی زوی رافع
**۸۸۳ - م** چی د احمد خجستانی پرځای کښینستلی و،دعمرولیث‌پرسپهسا لار ابو طلحه

پاندی پرغل وکیء ، ابو طلحه د تخا رستان خواته و تښتید، اورافع د سیستان او ری ته مخه کړه مگر هلته ئې څه ونسوه کولای، نو هرات ته وگرځید او عمرو لیث د دې شعبان په د وهمه د دوشنبې په ورځ په هغه پسې خراسان ته وخوځید، چې هرات ته ورسید رافع ئې د هرات په ښار کې کلا بند کیء او تر یوې جگړې وروسته رافع ماته وکړه سروته ولاړ او له عمرولیث څخه ئې عفو وغو ښتله ، خو په لاره کې د ابو طلحه سره چې له تخارستانه عمرولیث ته ئې یوځای سو اودې د واړو امیر انو لاسو نه سره یو کړه چې د عمرولیث سره و جنگیږي، مگر د مخه تر هغه چې د دوی د ا توطئه عملي سي ابوطلحه د شپې پر رافع یرغل وکیء دیر جگړن ئې ځینې ووژل ، او په سر وکي ئې د طا هری پو شنگې د زوی محمد په نامه خطبه وویله ؛ عمرولیث چې هر څو هغه ته دوستانه لیکونه ولیږل خو هغه ونه منل ، هغه و، چې عمرولیث په یوه یرغل ابو طلحه له مروی څخه و شاړه ، او د هغه اووه زره جگړن ئې ووژل اونور لښکر ئې د خوارزم په بیابا نو کې تیت ا و پرک سول. په همد ې کال د بلخ نوميالی زاهد دفروخ بلخی زوی محمد مړ او په بلخ ښخ کړه شو .

**۲۶۲-ه ش** عمرولیث له مرو څخه نیشا پورته ولاړ، او د هر ثمه زوی را فع ئې چې
**۲۷۱-ه ق** دده تر شا ئې پر نیشا پور لاس موندلی و، له هغه ځا یه و شاړه او دد ې
**۸۸۴ - م** کال د شو ال په لومړی ورځ ئې نیشا پور پیا ونیو. او د خراسان د چارو ترسمو ن وروسته سیستان ته ستون سو ، او دذی الحجې په دوه و یشتمه د پنجشنبې په ورځ سیستان ته و رسید .



په همد ې کا ل د مخلد زوی صاعد چې د عمرولیث له خوا د پارس حکمران و ، د بغداد دالموفق دربا رته و لاړ ، او د عمرولیث له لاسه ئې الموفق ته شکایتونه وکړه . الموفق هم چې عمرو لیث ئې د بغداد د خلافت د پا ره خطر باله له امارته معزول کیء او خراسان ئې د طاهر زو ی محمد ته ورکیء او د عمرو لیث د عزل او لعن لیکو نه ئې خراسان ته ولیږ ل .

د طاهر زوی محمد بیا له خپلې خوا ماوراء النهر د احمد سامانی زوی نصر ته ، او خرا سان ئې د د هر ثمه زوی رافع ته ، او پارس ئې د عبدا لعزیز زوی احمد ته وسپارل ، او په دې توگه د عمرو لیث په مقابل کې ځومند عیان چې تر او د بغداد د خلیفه حکم در لود منځ ته راوستل سول .

۲۶۴-ھ ش عمرو لیث دخپل زوی محمد سره دکرمان له لاری پرپارس و داِنګل او
۲۷۲- ق خپل زوی ئې ددې کال دمحرم په اوله دشنبې په ورځ د مقدمة الجیش
۸۸۵- م (دلښکر دمخکښې) په توګه وټاکه . دمخلد زوی صاعد چې دعمرولیث
له راتګه وارویده نو دعباس زوی ترك ئې داتیا زروسپرو سره دعمرو لیث سره جګړې ته ولېږه
چې په مخ کې ئې دعمرولیث داکا نمسی د لیث زوی خلف و ، او خلف لا ښخوا د عمرولیث
څخه خوا شینی سو ی او دبغداد خلیفه الموفق ته و رغلی و .

عمرولیث چې خپل خپلوان او خپل سیستانی وطندار ان په خپل مقابل کې و لید ل نو
دوطنخواهی احساساتو اجازه ورنکړه چې دهغو په مقابل کې توره له تیکی را وباسی ، ځکه ئې
نو د عباس دزوی ترك پرلښکر د شپې یرغل وکړ ، هغه لښکر یو پنا کیء ، د پرما لو نه ،
خزانی او غاتری لاس ته ورغلې ، بیانو ددوو زرو ساګز یو سپرو او زر و پلیو سره د خپل زوی
مرستې ته ورغیء ، دواړی سیستانی لښکری سره یو ځای سولې ، اودعباس زوی ترك د مخلد
د زوی صاعد خوا ته و تښتېد ، او پارس بیا د عمر و لیث په لاس کښېوت .
له بلې خوا ابوطلحه چې ترهغه وخته دعمرولیث مخالف و، بیا دعمرولیث اطاعت ومانه او د
هغه له خوا په سپه سالاری و ټاکل سو .

په همدې کال ابومعشر جعفر بلخی دمحمد بلخی زوی چې د دریمی هجری پېړی له سترو
نومیالیو ریاضی پوهانو څخه و ، او په نجوم او تاریخ اوزیج او نورو علومو کی زیات تألیفونه
لری مړ سو .

د ی دلو ی نومیالی فیلسوف اوعالم یعقوب بن اسحاق مشهورپه الکندی شاګردو ، لو مړی
داحادیثو په زده کړه بوخت و ، خوپه ۴۷ کلنی کی ئې دنجوم علم ولوست اوپه دې علم کې
ئې دوسره شهرت وموند چې د« اخبارالحکمأ» دکتاب مؤلف قطفی ئې په تواله اسلا می نړی
دنجوم په احکامو عالمتر بولی ، او دده دځلو ښتو تألیفاتو نوسونه اخلی . همدارازد عجم او
نورو او اسونو په اخبار کی استاد اوتر سل کلنی زیات عمرته رسېد ای و . څوچې په همدې
کال په واسطه ګی مړ سو .

ابو معشر بلخی په منځنیو میلا دی پېړ یوکی د غر بیانو په نز د په ALBOMASAR
مشهورو ، او اوس هم دده ددوولس کتابه سته چې د « المدخل الی علم احکام النجوم » په

کتاب کې ئې د مخند رمد او جزز دلمز او سپوږمې د کشش په اثر ګټلی دي ، او دې کتاب په منځنیو پېړ یو کې زیات شهرت در لود .

**۲۶۶-ھ ش** دبغداد خلیفه الموفق مجبور سو ، دغو ړه مالي له مخې عمرو لیث ته

**۲۷۴- ق** یولیک را واستا وء او په هغه کې ئې لیکلي وء چې که پاته خراج بغداد ته

**۸۸۷ - م** واپړل سي او هم عمرولیث خپل زوی محمد دیرغمل په توګه دارالخلافه ته

وا ستو ل سي نو خلیفه به بیا دخر اسان دامارت فرمان دعمرو لیث په نا مه نوی کړي .

عمرولیث په ښکاره دالموفق دامر داطاعت په پلمه ، خو په پټه دالموفق دراغورځولو په نیت خپل زوی محمد د خراسان دسپهسالار ابوطلحه سره دیو لښکر په مشرۍ دبغداد خو اته و لیږه ، مګر څنګه چې محمد په لاره کې خبر سو چه الموفق دخورا لوی لښکر سره دده دمخنیوی دپاره راوتلی دی بیرته راوګرځید اودخپل پلار سره کرمان ته ولاړ ، او په همدې سفر کې و ، چې دعمرو لیث دا زوی دجمادی الاول په ۱۹ دجمعې په ورځ له سیستانه شپږ منزله لیری مړ سو ، اوعمرولیث دده له ناڅاپي مړینې څخه سخت خواشینی سو اوسیستان ته ولاړ .

**۲۶۷- ھ ش** الموفق دبغداد خلیفه چې دشام او مصر په شاوخوا کې دطولان دزوی

**۲۷۵ - ھ ق** احمد پورته کیدوسخت پریشانه کړی و، عمرولیث ته ئې دبي الاصبع دزوی

**۸۸۸ - م** احمد په لاس دفرمان اولوا سره یو دپخلا کو لو لیک را و لیږ ه چې هغه

د همدې کال دصفري په اوومه دجمعې په ورځ سیستان ته راورسید ، عمرولیث هغه ډیرو نما نځه اوهغه هم دخلیفه له خوا دکرما ن ، پارس اوخراسان ولایتو نه دلسو میلیو نو د رمو یعني دپخوانیو نیمو پیسو په بدل کې عمرولیث ته پریښوو ل ، ا و عمر و لیث پنځه سوه ز ره د رمه دبي الاصبع زو ی احمد ته ور کړه ، اوهم ئې دخپل وررور یوخاص مریي چې «سبکری» نومېد دډیرو سوغاتو سره بغداد ته دخپل استازی (سفیر) په توګه ولیږه اوهغه ددې کال د ذی قعدې په میاشت بغداد ته ورسید ؛ اودبغداد خلیفه هم امرو کړ چې دعمرولیث نوم دی پرمنبرو اودکانو اوکورو اوبیرغو باندی ولیکل سي ، اوهم دی دعمرولیث نوم دخلیفه دنامه سر ه یو ځای په خطبو کې یاد سي ، خو د وروسته پیښو څخه ځرګندیږ ي چې دخلیفه داټو له غو ړ ه ما لي دمجبوریت له مخې اودفع الوقت اوسیاسي مصلحت دپاره وې ، نه دصداقت اوصمیمیت له مخې .

په همدې کال دشوال په ۱۶ دفروری په ۲۲ دافغانستان د حد یثو د علم یو ستر اما م ابودا ؤد سیستانی په بصره کې وفات سو .

دده نوم «سلیمان» دپلار نوم ئې جارود او دنیکه‌نوم ئې اشعث اصلاً دسیستان و ، حدیثونه ئې دبخارا له مشایخو اوله مسلم ا و قتیبه بغلانی څخه اروېدلی و ، څوچې د خپل و خت دمحدثانو امام سو . ده له خراسانه عربی هیواد وته سفرونه کړی څوواره بغدا د ته تللی ا و وروستی وار په(۲۷۲ ه ق ) کال هلته و ، او دالموفق خلیفه په غوښتنه په‌بصره کی میشته او په همهغه ځا ی کی مړ سو .



په‌حدیثو کی دده نامتو کتاب «السنن » د «سته صحیحه» له‌مشهورو کتا بو څخه د ی چی په هغه کی ئې له‌پنځه سو ه زره حدیثو څخه ئې یوازی(۴۸۰۰) حدیثو نه چی په‌فقه او تشر یع کی په کاریږی چا پ کړی‌د ی .

( دده د ژوند نوری پېښی او دده دنورو تألیفا تو نو مو نه د ی «دافغانستان نوم‌یالی» د لو مړی توك په ۳۵۱ مخ کی ولوستل سی)

**۲۶۸-هـ ش** عمرولیث‌ددې کا ل د ربیع الاخر په میا شت له سیستا نه پارس ته ولاړ،
**۲۷۶-هـ ق** هلته ئې و ارو یده چی ورور ئې «علی» د همدې کال‌په رو ژه کی د بم
**۸۸۹ - م** د کلا له زندانه تښتېدلی او دیو ډېرلی سره دهرثمه زوی رافع ته چی په خر اسان کی و ، تللی د ی او غو اړی‌له هغه ځا یه د عمرولیث پر خلاف و جنګیږی ـ څو هغه وخت چی د ا خبر الموفق ته‌بغداد ته‌ورسېد ، نو الموفق امر و کیء چی دعمرولیث نوم له منبر و ، کو رو ، بیرغو او خطبو څخه لیری کړی،او دااسر ددې کال په شو ال کی عملی سو ـ مگر پخپله عمرو لیث لا خبر نه و ، یوازی ئې اصفهان ته د الموفق درا تګ‌اورېدلی و ، چی یو لوی لښکر ئې دموسی المفلحی په‌مشری دپارس‌خو اته‌را لیږلی ،نو ځکه‌عمرولیث له کرمانه د یو مجهز لښکر سره مخ ته ورووت ، څو چی اصطخر ته‌نژ دې ئې د همدې کال دذ الحجی دمیا شتی په ۲۶ د یکشنبی په ورځ موسی المفلحی ته سخته ما تې‌ور کړه او څلور زره تنه جګړن ئې ځینی بند یا ن و نیول ، سیستان ته ئې ولیږل، او په « مفلحیان »مشهو ر سول او پخپله عمر ولیث د شیراز خو ا ته پر مخ و لا ړ .

**۲۶۹-هـ ش** عمرولیث‌ددې کال د محرم دمیا شتی په اوله بر یا لی‌شیراز ته ننو وت،
**۲۷۷-هـ ق** او هلته خبر سو، چی الموفق دد ه نو م له منبر و، کورو، بیر غو اوخطبو
**۸۹۰ - م** څخه لیری کړی‌د ی ، نو ده‌هم امرو کیء چی دالموفق نوم له خطبې‌څخه

لیری کړی ، او هم ئې د عبد ا لعزیز زوی احمد چې د عمر ولیث سره جګړې ته راالهړلی سوی و ، مغلوب کړیء ،اوپه ښکاره د بغداد خلیفه ته پو ر ته سو ، او دا هوا ز له لاری ئې بغداد ته مخه وکړه، خود خلیفه وزیر چې د بلبل زوی اسماعیل نو میده عمرولیث ته دوستانه لیکونه و لیکل ، او په ډیر و غو ږه ما لیو او و عد و ئې عمر ولیث له اهوازه بیر ته را وګرځاوه .

✿*✿

په همدې کا ل د هرات یو ستر شیخ او عارف ابوعبدالله مختاردمحمد زوی او داحمد نمسی مړاو په هرات کې ښخ سو ،چې «سید اما م» ئې باله (دافغانستان نوسیالی دوهم توک ۲۶ مخ ته دی رجوع وسی) .

**۲۷۰-ه ش** الموفق مړ سو ، او المعتضد چې بندی و ، د خلافت دو لایت عهدی
**۲۷۸-ه ق** پر مسند کښېنوست، او د قاضی اسحاق زوی اسماعیل ئې داستازی په توګه
**۸۹۳ - م** عمر ولیث ته راواېږه، اورسماً ئې دعمرولیث امارت پر پارس ،کرمان،خراسان، سیستان او کابل په رسمیت و پېژا ند و د روغی ( تړون ئې ورسره وتاړه ،او هم دبغداد دشحنګی (کوتوالی) منصب ئې هم صفا ری امیر یعنی عمر و لیث ته ور کړیء ،اودبغداد دربار امر و کړیء چې بیادې د عمر ولیث نو م په خطبو کې واخلی او پر بیر غو د ولیکی، اوسم دی په حرمین کې دده په نامه خطبه ووایی ،او هم ئې ده ته فر مان را و ا ستا و ه چې د هرثمه د زوی رافع سره دې جګړه وکی.

**۲۷۱-ه ش** عمرولیث له پارس څخه بریالی سیستان ته راوګرځید ، خو په خراسان او
**۲۷۹-ه ق** ګرګان او طبرستان او ری کې لا همغسې دهرثمه زوی رافع د عمر و لیث
**۸۹۲- م** سخت سره رقیب چې دده دوروزعلی سره ئې لاس یو کړی و ، په بر ځاونو اخته و، ځکه نوعمرولیث په دې کال تینګه ملا وتړله چې درافع دفتنې ریښې له بیخه وباسی .

**۲۷۲-ه ش** عمرولیث ددې کال دربیع الاول په او له د دوشنبې په ورځ د هرثمه
**۲۸۰- ه ق** دزوی رافع سره دجنګ په نیت له سیستانه وخوځید . رافع چې دعمرولیث
**۸۹۳- م** له خوځیدو خبر سو ، نوځکه چې یوازی ئې د هغه مقابله نه سوه کولای په تیره بیا په داسی حال کی چې له یوې خوا ئې دطبرستان دعلویانو دسلسلې دداعی محمد دزید د زوی سره مخالفت درلود، اوله بلی خوا دعبد العزیز دزوی احمد سره چې په اصفهان

اوری کی دبغداد دخلیفه والي و، په شخړه اخته و، نودعبدالعزیز دزوی احمد سره ئې پخپله سیمه کې خطبه وویله ، طبرستان اوګرګان ئې هغه ته پرېښوو ، چې دهغه په عوض کې محمد داعي ده ته دهاوړو و زرو دیلمي زړو او جګړنو دسرستی وعده ورکړه .

عمرولیث چې له هغې روغې څخه خبرسو، نو محمد داعي ته ئې پیغام ورولیږه او هغه ئې درافع په غداری او بې وفائې خبر کې‌ء او هغه هم رافع ته دسرستي ورکولو څخه ځان وژغوره .

هغه و ، چې عمرولیث هرات ته ورسید ، او دهرات حاکم چې درافع له خوا تا کلی سوی و، له هرا ته وتښتید . داوخت رافع په ري کې و، هغه هلته دعمرولیث وروړ علي ووا ژ ه اوله هغه ځایه ګرګان ته ولاړ چې دعمرولیث سره دجګړې دپاره ځان چمتو کړی .



په همدې کال ځینې نومیالي پوهان او لیکوالان او شاعران مړه سوي دي چې مشهور ه ئې دا دي :

۱- په عربي ژبه کې دخراسان نامتوایکوال اوشاعر « ابن طیفور خراساني » چې په (۲۸۰ه ق) کال په بغداد کې زیږېدلی خوپه اصل کې دخراسان و. ډیر تصنیفونه ئې درلودل چې ابن ندیم ئې پخپل کتاب «الفهرست» کې داته هلو ښېتوکتابونوسونه اخیستي دي او یوله هغوڅخه « تاریخ بغداد » و .

دده بشپړ نوم ابوالفضل احمد بن طاهر ملقب په طیفور دی .

۲- علي هروي دعبد الله زوی او دهیصم نمسی دخپل وخت نومیالي پوه او ادیب .

۳- عثمان سعید دارمي سیستاني لوی محدث چې په (۲۰۰ه ق) کې زیږیدلی او په دې (۲۸۰ه ق) کال په هرات کې مړدی .

۴- محمد دعمر بلخي شافعي زوی د« العالم والمتعلم » مؤلف چې په « وراق» مهشور و .

**۲۷۵-ه ش** عمرولیث د هرات ترنیو لووروسته نیشاپورته ورسید ، له هغې خوا رافع
**۲۸۳- ق** دهرثمه زوي دده سره دجګړې د پاره نیشاپور ته راغی‌ء ، خو دهمدې
**۸۹۶- م** کال دربیع الاخر په میاشت عمرولیث رافع ته سخته ماته ورکړه ، دپر بند پاڼ ئې ځینې ونیول او ډیری ولجې ئې لاس ته ورغلې ، چې په بند یا نو کې

دعلي دوه زامن هم‌وو، چې د پلار ترمړینې وروسته درافع سره او سیدل، عمروليث د هغو سره ډیر مهرباني وکړه اوبیه ئې ونا زول، او پخپله په رافع پسې چې ابیورد ته تښتیدلی و، ولاړ، رافع له هغه ځایه سرخس ته و تښتید، که څه هم له هغه ځا یه یووار بیا پر نیشا پور یرغل وکړ، خو بیا ئې سخته ماته وکړه، څو په پای کې تر هغې وروستۍ ماتې وروسته چې په سبزوار کې له عمروليث څخه وخوړله او نژدې پنځه زره جګړن ئې ووژل سول اوپاته لښکریان ئې یا و تښتید ل او یا د عمروليث د لښکر سره یو ځای سول، رافع مجبورسو خوارزم ته ئې مخه وکړه، خو د خوارزم والي محمد دعمرو خو ارزمي زوی دی ونیو، بندی ئې کړ او د همدې کال د شوال په‌میاشت وو اژه او سر ئې عمرو لیث ته راولیږه، اوعمروليث هم درافع سرد سوغاتو سره بغداد ته وا ستاوه، او دبغداد خلیفه معتضد امروکړچې درافع سر دې د نورود پا نیات(عبرت) دپاره له سهاره ترما ښېښه ددارالخلافه ختیزی خواته او له ما ښېښه تر ما ښا مه دې ددارالخلافه لویدیزی‌خواته وځړوی.

عمروليث چې په نیشا پور کې و، دخوارزم والي چې‌رافع ئې وژلی‌و، ونما نځه او بیرته ئې خوارزم ته ولیږه، خو دمخه تر هغه چې خوارزم ته و رسیږی خبر سو چې د بخارا امیراسماعیل د احمدسامانی‌زوی‌چې د خلافت له‌درباره ماوراءالنهر او بلخ په امارت منلی سوی‌و، دخوارزم ولایت نیولی اود هغه ځای حکومت‌ئې خپل معتمد ته سپارلی‌دی.

**۲۷۷-ه ش** عمرولیث د خوارزم پخوانی والي محمد دعمرو خوارزمي زوی ته‌امر
**۲۸۵-ه ق** وکړ چې د امیراسماعیل‌سامانی سره وجنګیږی، هغه و، چې ددې
**۸۹۸ - م** کال د شوال په‌میاشت سخته جګړه ونښته‌چې په هغې کې د عمرولیث
دلیږلی سوی لښکر مشر محمد د بشر زوی د شپږو زرو جګړنو سره ووژل‌سو، او محمد دعمرو خوارزمي زوی ماته وکړه، ددې ماتې عمرولیث ډیرو خپه‌اوه اوپر هغوجګړنانو چې‌مات‌سوی وو، سخت په قهر سو، اوملامت‌ئې کړه‌چې ولې ئې ماته کړې وه، خو د«زین الاخبار» دمؤلف ګرد یزی‌په قول مات سو ولښکر یانو دعمرولیث په جواب کې‌وویل:

«ای امیر! ازین نیکو ترماید ۀ بزرګ پخته آند، وما هنوز یک کاسه خورده یم،
هر که مرد است ګوبرو باقی بخور را!»

عمرو ليث له ډیره قهره دبغداد خلیفه‌معتضدته لیک‌ولیږه‌او له‌هغه څخه‌ئې د ماوراءالنهر د حکومت فرمان وغوښت؛ خلیفه که څه هم تر ډیر فکر وروسته عمرو لیث ته‌فرمان

را و لیږه ، خو خپلو دربار یانو ته ئې وویل چې: «ښو هیږم چې په همدې کې دده هلاک دی »
له بلې خوا ئې په پټه امیر اسماعیل سامانی ته د ملا تړلو دادورکیء او هغه ئې په دې
مطمئن کیء چې اماړت ئې پر ځای دی؛ او په دې توګه ئې دد و وعجمی امیرانو تر منځ
چې پو خراسانی او بل سیستانی ؤ، د اختلاف او جګړې تخم و پاشه .
(د زین الاخبار مؤلف ګردیزی د بشر د زوی محمد وژل کیدل د ۲۸۶ ه ق کال د
شوال په ۱۸ ددوشنبې په ورځ ښللی دی).



په همدې کال د هرات پولوی شافعی فقیه او محدث محمد د اسحاق زوی او د سعید سعدی
هروی نمسی وفات سو . دی د «کتاب الضیاع» مولف و .

**۲۷۸-ه ش** په دې کال دخراسان نامتو عالم ابو العباس احمد د محمد زوی ، د مروان
**۲۸۶-ه ق** نمسی او د طیب سرخسی کوسی مشهور په «ابن الطیب» وفات سو . دی
**۸۹۹ - م** په سرخس کی زیږیدلی او د نامتو عالم یعقوب کندی شاګرد و. ده په ز یاتو
فلسفی او حکمتی علومو کی په تیره بیا په ریاضی او منطق کی ئې لوی لاس درلود .دی د عباسی
خلیفه معتضد استا دو ،او بیائې ندیم او مشاورهم سو ، خو څنګه چې ئې د خلیفه یو پټ راز
څرګند کیء ،نو په همدې کال خلیفه ووا ژه .
داخبار حکماً مؤلف قفطی لیکی چې :
« سرخسی په پخوانیو او عربی علومو کی ښه معرفت او ځلانده قریحه درلودله ، ژبه ئې
خوږه ، عبارات سلیس او لنډ او تصانیف ئې خوندور و و .
ابن ندیم په فلسفه او سیاست او موسیقی او فلکیات او ریاضې او طب او مسا لک ممالک
او دربارداری او منطق کی دده دیرشو کتابو نومونه اخلی .



همداشان په دې کال د «المسندالکبیر» مؤلف علی د عبدالعزیز زوی او د مرزبان بغوی
نمسی مړ سوی دی .

**۲۷۹ - ه ش** عمرولیث په بلخ کی داویا زرو سپرو سره د امیر اسماعیل سامانی جګړې
**۲۸۷ - ه ق** ته چمتو سو .
**۹۰۰ - م** وایی چې امیر اسماعیل دعمرولیث سره په جګړه راضی نه و ، او څو واره
ئې هغه ته پیغام راواستاوه چې :

د اسلام تو له نړی ستا په لاس کی ده او موږ د طمع ستر گی نه دی ورته نیولی ، نودما وراء النهر دغه بوه گوښه راپرېږده ، او تېرسه !»

عمرو لیث ونه منله ، خوپه د ې وخت ده ته خبر راورسېدچی دگندهارا ( دافغانستان دلمر ختیزی سیمی) دوه محلی پاچهان چی «ناسد» او «آلمان» نومېدل په غزنی یرغل کړی او ددغه ځای حاکم ئې چی «بردعالی» نومېد اودعمرولیث له خوا مقررو ، مات کړی اوغزنی ئې نیولی دی . دې خبر که څه هم لږ غوندی پریشانه کیء ، خوبیائې هم دامیراسماعیل سره د جگړې فکرله ماغزو ونه وو ت .

امیر اسماعیل سامانی چی لادمخه دعمرولیث په نیت خبرو ، نو د ماو را ءالنهر خلکو ته ئې اعلان وکیء چی : «عمرولیث اودهغه لښکر ددوی دملک د چور اوچپاو ، او ښځو او کوچنیا نو د وژلو د پاره راځی » نو ځکه دهغه سیمی خلکو دامیر اسماعیل سره تړون او لوړه وکړه چی ترخپلی وروستۍ ساه پوری به دده سلاتړ اود ځان د فاع کوی .

هغه و ، چی دهمدې کال د ربیع الاول په میاشت دواړه لښکرې بلخ ته نژدې سره مخامخ سولې ، او امیر اسماعیل سامانی دعمرولیث دلښکر سالارانوته پیغام و لېږه چی :

«موږ مجاهدین یو ؛ اوبې له خدایه بل هیڅ څه نه غواړو ، خو عمرو لیث یو بداې سړ ی اودنیا پرست دی او د همدې مقصد دپاره راوتلی دی ، د ی دنیا غواړی او موږ آخرت ، د ی دمال غوښتونکی اوموږ سال نه لرو ـ نوله خدایه وېرېږیء او زموږ څخه څه غواړیء ؟ »

دې پیغام چی مذهبی بڼه درلوده دعمرولیث دلښکر دځینو سالارانو مخه دامیر اسما عیل خواته واړوله اودهغه دلښکر سره یوځا ی سول خوبیا عمرولیث دورځی ترپایه په ډېره میړ انه وجنگید ، مگر څرنگه چی له یو ې خوا د امیراسماعیل لښکر خورا زیات و ، او له بلی خوا دعمرولیث لښکر ډېر سخت باد سره مخامخ و ، او هم ئې ځینی سالار ان دده له لښکره بېل او دامیر اسماعیل لښکر ته ورغلی و ، نوځکه دعمروایت په لښکرماته گډه سو له ، او د ی مجبور سو چی پرشا ولاړسی ،خوآس ئې په خټو کی ونښت اودربیع الاخر په ۹ نېټه د سه شنبې په ورځ دا میر ا سما عیل د لښکر په لاس کښېو و ت ا و بندی ئې سمر قند ته و ا ستا وه .

دعمرولیث تر بندی کیدو اود سیستان خواته د هغه دلښکر تر ماتې وروسته په سیستا ن کی لښکر ی او اولسی مشرانو دعمرولیث نمسی «طاهر دمحمدزوی» دسیستان په امیر ی وټاکه ، خوڅرنگه چی هغه یوعیاش زلمی و ، نودتولو چارو واگی د یعقوب لیث یو خاص ا و با تجر به

سرېږي چې «سبکري» نومېږ په لاس کې واخیستلې .
(گرديزي پهزين الاخبار کې دعمروليث بنديګرت د دې کال د ربيع الاول په نيمايي کې ګڼلې دی ) .

په همدې کال امير اسماعيل ساماني طبرستان هم و نيو.

**۲۸۰ - ه ش** دبغداد خليفه معتضددعمروليث پهبنديګرت ډېر خوشاله سو ، ځکهٔ ئې
**۲۸۸ - ه ق** نو دخراسان اونورو هغوولايتو دامارت فرمان چې دمخه د عمروليث تر
**۹۰۱ - م** لاس لاندې وو ، دخلافت د لوأ او خلعتو سره د خپل استاز ی عبد الله دالفتح دزو ی پهلاس اميراسماعيل ساماني تهوليږل، او دخلافت د درباريو سيين رو بې ئې چې «اشناس» نومېږ هم د عبدا لله سره راو استاوه چې له دې خوا عمروليث بغداد ته بو زی .

امير اسماعيل هم عمروليث د «اشنا س» په لاس بغداد ته ولېږ ه ، اوچې بغدادته ور سېد نود بغداد خليفه هغه پريوځک ، کوپ اوګوډ اوښ باندې دبغداد په کو څو کې وګرځا وه ا و بيائې په زندان کې واچا و ه .



په همدې کال امير اسماعيل ساماني «ري» ونيو، او دسامانيا نو دلو ی دولت د مؤسس په حيث و پيژ ند ل سو .

ده دخپل امارت په دوره کې ساماني هيوادونه ډېر کړه، د خراسان ،ګرګا ن ، طبرستا ن ، ري او قزوين ولايتونه ئې دساماني دولت دهيوادو سر ه يو ځای کړ ه .

**۲۸۱-ه ش** خليفه معتضد مړ سو ، خو دمخه ترهغه چې مړسې د نزع اوز کند ن په
**۲۸۹- ه ق** حال کې ئې خپل يوخاص نوکر راو غوښت ، او ځنګه چې ئې دخبر و
**۹۰۱- م** توان نه درلود يولاس ئې پريوه سترګه کېښېښو وه او بل لاس ئې د چړې په توګه پر ستوني تيرکی‌ء او په اشاره ئې نوکروپوهاوه چې عمرو ليث چې په يوه سترګه ړو ند و، ووژني . معتضد ددې کال د ر بيع الاخر په ۲۲ ددو شنبې په شپه مړ سو ، او د هغه پر ځا ی « مکتفي» دخلافت پرمسند کښېنوست، مکتفي دد رباړله وزيره قاسم بن عبدالله څخه د عمروليث د حال پو ښتنه وکړه ، وزير ووېل : « ژوندی دی » او مکتفي چې په «ري» کې له عمرو ليث څخه نيکې ليدلې وې نوپه دې خبره چې عمرو ليث ژوندی دی ډېر خوشاله سو ، خوله بدهمر غه وزيرپه پټه يوځوك د عمروليث وژلوته وګماره‌چې د همدې کال دجمادی‌الاولی په اتمه دسه شنبه

په ورځ هغه سترنوسیا لی صفاری امیرپه زندان کې ووژل سو ، اومکتفی ته ئې داسی وپهموله چې بغداد ته دنوی خلیفه ترر سیدو د مخه وژلی سوی دی. هغه و، چې عمرولیث قصرالحسنی ته نژ دې چخ کړ ه سو، اوده دوژلوسره دسیستان دصفاریانو د کورنی دواکمنی کمبله هم مخ په ژوایدوسوله ، اوپه خراسان کی د هغی کورنی ځای دسامان دکهاله ځوان دولت ونیوه .

عمرولیث د خپل ورور یعقوب په شان د لوړهمت خښتن ، سخی ، زړور ، دسیاست اوتد بیر خاوندو ، لښکر یا ن له یعقوبه زیات بیر یدل ، خو عمرولیث وربانډی ډېرگران و. د مصا ئبو په زغملوکی دورور په څیر ډېر زغم خاوند و، دلښکرهوسایی ته ئې زیاته توجه درلودله ، په هرودرومیاشتو کی دلښکرتنخاورکوله اوهغه داسی و ، چې پرتا کلی و خت به د وه ډ وله وهل کیدل، دیوه ډول نوم «مبارك» اودبل ډول نوم «میمون» و، اوددې ډولوپه ږغولوبه لښکر پو هیدهچې دتنخا ورځ ده ، ټول سپاهیان به راغونډ سول او دجگړ ې دوزیر (سهل بن حمدان) په مخ کی به گما ر ل سوی سا سو ر د د فترله مخی د سپا یا نو نو سو نه لو ستل ، او دلو مړی سپا هی نو م چې به اخیستل کیده هغه به په خپله عمرولیث و ، چې دخپل آس اوخپلی وسلې سره به راوړاندی کیده او د جگړ ې وز یر به وه ، نوبیا به ئې آس اووسله په دقت کتله، ا و چې سم به وه ،نو بیابه ئې دری سوه در مه ورکو له ،او دهبه هغه په خپله سوزه کی ایښو ول او د خد ا ی شکربه ئې پر ځا ی کا وه ،بیابه نودلښکر نورسپا یان یو په بل پسې راتلل ا و د جگړې دوز یر تر کتنی به تیر یدل اوخپلی تنخا وی به ئې اخیستلی ، اوکه به د کم سپا هی آس او یا و سلې نیمگړ تیا درلودله نو د هغه سپا هی څخه به ئې با ز خو ا ست او پو ښتنه کو له . سر بیره پر هغه ئې په لښکر کی با و ری جا سو سا ن هم د رلو د ل چې دلښکر په حال ئې دلښکرمشران خبرو ل .

عمرولیث د هیواد په ودانولو کی هم ډیر ز یا ر یوست او دتاریخ سیستان د مؤلف په قول عمر ولیث یو زر رباطونه ، پنځه سوه جامع مسجدونه اومنا ر ې او خورا زیات پلونه ود ان کړ ی و و.

ده د ما لیو په راغونډولو او د پیسو په راټو لولو کې لو ی لاس درلود ، دتاریخ سیستان مؤلف لیکی چې په (۲۸۷ ه ق) کال د عمرولیث ترږندیگرت وروسته چې د هغه نمسی طاهر د محمد ز و ی سیستان ته را ورسید د هغه ځای په خزانه کی پرنورو جواهرو او دینارو سربیره شپږ دیرش میلیونه درمه پراته وو ، اوهمدا رنگه داسپهبد کلا او نوری کلا گا نی له خزانو ډکی وې ، او هم بې شمیری وسلې او جا مې او څاتری وې ، او پردباندنیو مریانو

علاوه لس زره ننه دسرای مریان وه .

په همدې کال دعمرولیث نمسی طاهر دمحمد زوی دعلیدزوی لیث په ملگری دیو شمیر نورو سالارانو سره له سیستانه دپارس خواته ولاړ ، چیپارس بیرته ونیسی .

**۲۸۲ - ه ش** دبغداد خلیفه مکتفی په دې راضی سو ، چیدکالنی خراج دو ر و کو لو
**۲۹۰ - ه ق** پهمقابل کی پارس بالمقاطعه امیر طاهر صفاری ته پر یږ دی ، او طا هر
**۹۰۲ - م** هم هغهروغهومنله .



په همدې کال دسیستان نومیالی فقیه او اصولی منصور داسحاق زوی مړسو .

**۲۸۳ - ه ش** امیرطاهر صفاری په پارس کیپرخپل ځای«سبکری» په نیا بت و ټا که
**۲۹۱ - ه ق** اوپخپله ددې کالدرجب پهاوله دیکشنبی په شپه سیستان تهراستون سو
**۹۰۳ - م** او محمد دخلف زوی اودلیثلمسی ئې دسیستان دټولو سپین روبود مشر په حیث وټاکه ، اوخپله خور «بانو» ئې ورپه نکاح کړه .

دده داکار پر «سبکری» باندې چی بېلهځانهدبل چالاس ئې دسیستانپه چاروکینهغوښت ښهونه لگید ، اوله همدې ځایه دطاهر صفاری اوسبکری ترمنځ اختلاف پیل سو .

لهبلی خوا طاهر صفاری پهعیش ونوش اوښکار او کوتر بازی اخته سو ، ځکهنو دهیوا د مملکتی ، لښکری اومالی چاری گډی وډی سولې ، خزانیئې دلیونتوره ا سر ا ف په ا ثر بیخی تشی سولی ، اودولایاتو حکمرانانو هم سیستان ته دمالیو لهلیږلو څخه لاسونهونیول ، په تیره بیا «سبکری» چی ځانئې خپلواك گاڼه کرمان اوپارس پهخپل نامه ضبط کړل خو بیا هم د خلف دزوی ښه تدبیر او کفایت اوپوههتر یوه ځایه دهغهاساس دبیخی نړید لو مخه نیولهچی د یعقوب لیث اوعمرولیث له خوا ایښوولسوی و .

په همدې کالد پوشنگ نومیالی فقیه اومحدث محمدابرا هیم پوشنگی زوی په نیشا پور کی مړسو - دی په (۲۰۴ ه ق) کی زیږیدلی و .

**۲۸۴ - ه ش** امیرطاهر صفاری دپارس اوکرمان دمالیو اخیستو دپاره د دې کا ل
**۲۹۲ - ه ق** دربیع الاخر په ۲۲ دشنبی په ورځ دپارس خواته وخوځید ، خو سبکر ی
**۹۰۴ - م** چیدده لهخوا دپارس والی و ، دده لهر اتگهوبیریدچی مبادا دیبهعز ل کړی ، نو ځکه ئې احمد دمحمد زوی اودلیث نمسیدامیرطاهر مخ تهور ولیږه اودد روه له مخی

ئې داسې أحوا ل ورواستاوه چې:«که ته‌راسې دلېکر سالاران اودبغداد خلیفه به ستا څخه ډیر
څه‌وغواړی حال داچې دلته هیڅ نسته ، نوبنه داده چې‌بیرته‌وگرځی ، سال به‌زه هلته‌درولیږم!»
امیر طاهر دسبکری دا احوال ددوستې اوصمیمیت‌له مخې وباله‌بیرته سیستان ته‌راو گرځید
اوبیاپه عیاشۍ بوخت سوچې د هغې عیاشۍ په سبب دیعقوب اوعمرو د وختو مشرانوله د ه څخه
مخونه واړول اوسره تیت سو ل .

✿ ✿ *

په همدې کال د هرات نومیالی فقیه اومحد ث‌محمد داحمد هروی زوی مړ سو .
**۲۸۷ ـ ه ش** دعلی‌زوی لیث‌دیعقوب‌لیث وراره چې‌په‌پارس کې‌ئې دسبکری‌سره‌اختلاف
**۲۹۵ ـ ه ق** پیدا کړی و ، ددې کال دمحرم په‌میاشت دسیستان خواته را ر هی ا و
**۹۰۷ ـ م** د«نیه » په‌سیمه کې‌میشته سو ، اوچې دسیستان د دولتې چار وگډ و ډ ې او
دطاهری صفاری بې با کې اوله هغه څخه دخلکو بیزاری ئې ولیدله نودسیستان دامارت نیولو
هلې ځلې‌ئې پیل کړ لې .

✿ * *

په‌همدې کال امیراسماعیل سامانی دسامانې دولت مؤسس‌دصفری په‌ م ا د چارشنبې په‌شپه
مړ سو . دی سربیره پر د ې چې زړو ر سړی‌اودلوړ همت خاوند و . ډیردیندار ه اوپرهیز گاره هم و
اودده لښکر شپه اوورځ زیاتره په‌نمانځه اودعا اوعبادت بوخت وو ، حتی په جگړو کې ئې زیا ر
یوست چې دده جگړې دغزا او جهاد رنگ واری ، ځکه نوځینو مورخانو «دغازیانوسالار »بللې
اوهم د«عادل امیر »په‌لقب یادسوی د ی .

ل ښکر ئې دده له‌باز خواست او سؤ آخذې څخه ډیر بېریدل‌او د ده له بیر ي ئې د خلکو
مالوته لاس نه سو اچو لی .

په‌سفرو کې به یوه ډله قاضیان ورسره وو ، چې‌دخلکو په‌داد ورسیږی .

دده تر مړینې وروسته دده زو ی ابونصر احمد ئې پرځای کښېنوست‌اودبغد اد خلیفه مکتفی،
هم‌دهغه اما ر ت پر خرا سا ن او ما و راء النهر با ندی په ر سمیت و پیژ ا ند ، او د همد ې
کال د ذی ا لقعدې په میا شت دبغداد‌خلیفه مکتفی مړ سو،او د هغه پرځای« المقتدر »د
خلا فت پر کر سی کښېنو ست.

**۲۸۸ - ه ش** دعلي زوی لیث په لږ هڅه دسیستان خلک دځان کړه او همدې کال
**۲۹۶ - ه ق** دصفرې په ۲۲ ددوشنبې په ورځ چې امیر طاهر بست ته تللی و،
**۹۰۸ - م** سیستان ته ننه ووت، او څنګه چې ئې سره کوچې (لباده) اغوستې

وه نوسیستانیا نو «شیر لباده» لقب ورکړی دامیر طاهر او ربعقوب چې هرڅو ئې زیار
ویوست چې د ده څخه ونیسی خو څه ئې ونه سوه کولای څو چې طاهرله بسته د لیث سره
جګړې ته ورووت، مګر څنګه چې دسیستان دخلګو زړونه له طاهر څخه بد سوی اود لیث سره
تړلي سوي وو، نو دهمدې کال دجما دی الاخر په ۲۴ د جمعې په ورځ ئې «دزرنج» ښار لیث
ته وسپاره، او هغه دجما دی الاخر په ۲۸ د پنجشنبې په ورځ په یعقوبي ما ڼۍ کې رسماً
دامارت پر کرسي کښېنو ست، اود جمعې په ورځ د ده په نامه خطبه وو یله سوه، چې
ور پسې په فراه او کش او بست کې هم د ده په نامه خطبې وو یلې سوې. طاهر او یعقوب چې د
سیستان له خلګو نا امیده سول، نو سبکرې ته ورغلل او له هغه څخه ئې مرسته وغوښتله، خو
سبکرې چې لا د مخه د بغداد دخلیفه «مقتدر» سره لاس یو کړی او پارس ئې له هغه څخه پخپل
نامه اخیستی و، نو د دې پرځای چې د دوی سره مرسته وکړي یو لښکر ئې دد وی د مخنیوی
د پاره ور ولیږه، هغه، چې د دې کال د روژې د میاشتې په یوولسمه دشنبې په ورځ دسبکرې
د لښکر او د طاهر او یعقوب دسا تو نکو تر منځ جګړه ونښتله، څنګه چې سبکرې په پټه د
طاهر سالارا نو ته ډېر مال استولی و، نو هغه دواړه ورو نه ئې لاس تړلي په لاس ورکړه او سبکرې
هم هغه دواړه بندیان بغداد ته ولیږل او پخپله ئې خپلواکه حکومت چلاوه.

**۲۸۸ - ه ش** د هیلمند یوستر نومیالی عالم او ادیب ابو محمد هاشم سر وانی
**۲۹۷ - ه ق** چې په دروژبو پښتو، دری او عربي ئې شعر وایه په بست کې
**۹۰۹ - م** وفات سو. دی په (۲۲۳ ه ق) کال دهیلمند په سروان کې

زیږېدلی اوور وسته تر هغه چې په بست کې ئې له پوهانو او ادیبانو څخه زده کړه وکړه
نو ډېر کلونه په عراق کې هم د علومو په زده کړه اخته و، او ډېرو خلګو نه ئې په بغداد کې
دابن خلاد سره چې په «ابی العینا» مشهوروُ تیر کړه، او له هغه څخه ئې عربي بلاغت او
اشعار ولوستل، او په (۲۹۴ ه ق) کال له عراقه خپل هیواد ته راغیء او دری کاله وروسته
په بست کې مړ سو.

د پټې خزانې مؤلف محمد هوتک د«ارغوني پښتانه» د کتاب په حواله ليکي چې :

« هغه وقت چې دده استاد ابن خلاد په سترګو ړوند سو ، نوده به ئې خدمت کا ، او د هغه شخه به ئې خواږه شعرونه ، په ادب کې دعربو اورېد له ، ابو محمد له عربي شخه د خپل استاد ډېر شعرونه هم را اړولي دي . . . نقل کا : چې ابو محمد په پښتو يو کتاب کښلی و ، چې په هغه کې دعربي داشعارو فصاحت اوبلاغت بيان کړی و ، اونوم ئې «دسالوووږمه» و (دده د پښتوشعر نمونه «دافغانستان نوميالي» کتاب ددوهم ټوك په ۲۳۸ مخ کې لوستلای سیء)



همدا رنګه په دې کال د علي زوی ليث پر پارس يرغل وکیء ، او هغه ولايت ئې د« سبکری» له لاسه ويوست ، شيرازاو اصطخر ئې هم ونيول . خو څنګه چې سبکرى ډېر پېسو او سوغاتو استولو له لارى دبغداد د خلافت په دربار کې ډېر پرخوا درلودل نود المقتد ر خليفه له مقتدر وزير علي دمحمد الفرات له زويه ئې کومک وغوښت ، اوهغه هم يولوی لښکر د« مونس خادم » په مشرى دده ملا تړ ته راو ليږ ه .

**۲۸۹-ه ش** دمونس خادم اودعلي زوی ليث ترمنځ سخته جګړه ونښته چې په هغه کې
**۲۹۸- ق** ليث دمونس خادم دلښکر په لاس کښېووت او مونس خادم دی دد ې
**۹۱۰- م** کال دمحرم په اوله بغداد ته بندی وليږ ه . بيا نو د بغداد خليفه المقتد ر

دصفاريانو د کورنی دبېخی ختمولو د پاره دسيستان دامارت فر ما ن اولوأ دا سما عيل د ساما نی زوی احمد ته وليږه ، او هغه ئې دسيستان دولايت نيواوته ولمساوه ؛ خودسيستان خلګو دليث تر بندی کيدو ورو سته دهغه دوورور ابوعلي محمد سره بيعت وکیء او هغه ئې د خا ن امير وټاکه چې بيا دې امير سر بېره پرسيستان بست ، غزنی او کابل هم دخپل ا مار ت په سيمه کې ورننه ايستل ، خراسان دساماني امير په لاس کې و، پارس اوکرمان هم سبکرى د بغدا د دخليفه په نامه اداره کوله .

د بغداد خليفه داسماعيل ساماني زوی احمد ته وليکل چې پر سيستان يرغل وکی او هغه هم يو لښکردعلي مرورو دی د زوی حسين په سپهسالاری سيستان ته وليږ ه او دزرنج ښار ئې کلا بند کیء ، ابوعلي محمد له هغه ځايه بست ته ولاړ ، او د هغه وورور معدل دسيستان دښار په يوه کلا کې په مقابله لاس پوری کیء ، خو چې پخپله احمد ساماني دخپل يوه خاص مريي سره چې « سيمجور» نوميد سيستان ته راغیء ، لو سړی ئې بست ته مخه وکړ ه او تر يو ې لنډ ې جګړې وروسته ئې ابوعلي محمد ونيوبندی ئې کیء خودبست دخلګوسره ئې ډېره مهرباني وکړه .

سعد ل چې دخپل ورور دبند یگرت وارویده هغه هم دسامانی سپهسالار سره روغه وکړه او دزرنج ښار ئې وروسپاره ، اوپه دې توگه سیستان دصفاری کهول له لاسه ووت ، اودهمدې کال دذی الحجې په دوهمه دجمعې په ورځ سیمجورداحمد سامانی له خوا دسیستان دامارت پر کرسی کښېنوست اوسعدل ئې هرات ته واستاوه ، اوهم احمد سامانی چې له بسته دهرات خواته وکرځید ابوعلی محمد صفاری ئې له ځانه سره هرات ته بوت ، اوله هغه ځایه ئې دخلیفه په امر بغداد ته ولیږه .



**۲۹۰ـ ه ش** امیر احمد سامانی تردوو میاشتو وروسته سیمجور له سیستانه عزل کړ ،

**۲۹۹ـ ه ق** او د سیستان ولایت ئې خپل دا کازوی ابو صالح منصور دا سحا ق زوی

**۹۱۱ ـ م** ته وسپاره ، او ابو صالح ددې کال دربیع الاول په دوولسمه دپنجشنبې په ورځ سیستان ته راغی ، په لوسری سرکی ئې خلگوته ښې وعدې ورکړې ، خو وروسته ئې هغه عملی نه کړې ، بلکه مالیه ئې زیاته کړه ، اوترهغه بد تره لا داچې دهغه ځای د خلگو دعنعنا تو اودوداودستو رپرخلاف ئې دخپل لښکرسپایانو تهاجازه ورکړه چې دخلگو په کورو کې دهغود ښځو اولو نوسره واوسي ـ هغه وچې دسیستان د خلگو غیرت داونه منله اوتواوپه یوه سلا شکوه وکړه چې:

«سوږ په هیڅ توگه د اسپکاوی زغملای نه سو چې پردی خلک دې د آزاد سر دا نو په کورو سر ا یو کې واوسی ،او د لښکر سپا یان دی په داسې ځا ی ژوند وکړی چې هلته زموږ میرمنې او لونې ژوند کوی ـ او هم په سیستان کی دا رسم نه دی چې مالیه دې زیا ته سی ... »

خو چا ئې پر شکا یت غو ږ و نه نیو ،بلکه نا وړه جو ابو نه ئې وا ر و بدل ،ځکه نو خلکو بلو ا ته ملا وی و تړ لې ، او ددې کا ل د جما د ی الا و لی په ۷ ، د شنبې په شپه پنځه سـو و آز ادی غـو ښـتونکی ځوانمر دانو دابو صالح پر لښکرناڅا په یرغل وکړ ،ډیر ئې ووژل او چې د ا آ واژه په ښارکی خپره سوله دښار خلگو چې هرځای دابو صالح دلښکر سپاهی لیده هغه ئې واژه ځو چې ابو صالح مجبورسوله ښاره ووت ؛ بیا نود سیستان خلکود عمرولیث د کړوسی د محمد د نمسی او دیعقوب دلاس کلن زوی سره چې ابو حفص عمر و نومید بیعت وکړ ا وهغه ئې دامارت پر کر سی کښېنا وه ،او ددې کال د روژې د میا شتی په دوولسمه د جمعې په ورځ ئې دده په نامه خطبه وویله ،او ده بیا ابو صالح منصو ر ارگ ته را ووست او په ډیر احترا م ئې له ځا نه سر ه وساته .

په همدې کال د بغداد خليفه المقتدر يو لښکرد پارس دوالي «سبکری» د سر کو ټلو د پاره چې بغداد ته ئې دما ليو په ليږلو کې غفلت کړی و ، پارس ته راولېږه، سبکری ددې کال دذی القعدې په ۲۶ د شنبې په ورځ ماته وکړه اوله شيرا زه کرمان ته ولاړ، او څنګه چې ئې سيستان ته درا تګ مخ نه درلود ،نودلوت له لارې هرات ته راغیء او امير احمدسامانی ته ئې پناه را وړه، خو سا مانی امير چې د خلافت رشتين مخلص و ،نوسبکر ی ئې دبغداد خليفه المقتدر ته وليږه، اوهغه بندی کړ .

**۲۹۱-هـ ش** امير احمد سا ما نی چې په سيستان کې دخپل اکادزوی ابوصالح منصور **۳۰۰-هـ ق** په سا ته خبر سو ، نوبيائې دعلی‌سرورو دی‌زوی حسين د سيستان نيولو ته **۹۱۳ - م** وګماره ،او هغه‌دزرنج‌ښار کلابند کړ او ترنهو ميا شتو کلا بندی‌ا و څو جګړو وروسته ئې دد ې کال د شوال په څورلسمه ددو شنبې په شپه د سيستان‌دڅو انمردانو او عيا را نو سره روغه وکړه، او بيا ئې دهغو سره ښه رو يه را وا خيستله ،نوا و ته‌ئې سوغاتو نه ورکړ ه؛ او هغو هم ابو صالح منصو رابېله کړ ، او هم ابو حفص‌عمرودعلی سرور ودی زوی حسين ته ورغی، حسين هغه‌ته په در نه سترګه‌وکتل ،اودهمدې کال دذي‌الحجې په‌څورلسمه دپنجشنبې په ورځ ئې هغه دڅا نه سره هرات ته بوت، او له هغه ځايه‌د امير احمد سامانی‌په‌امر بخا را ته وا ستو ل سو .بيا نو امير احمد سامانی دوهم وار دسيستان امارت سيمجور ته وسپا ره اودخپل اکا زوی ابو صالح ئې د نيشا پو ر په حکومت وټاکه.



په همدې کال‌د خراسان د بيهق نوميالی لیکوال چې« کتاب‌ولاة خراسان» ئې له‌مشهورو تأ ليفا تو څخه د ی ابو علی حسين د احمد سلامی بيهقی زو ی سر سوی‌دی .



او هم په دې کال ددری ژبې پخوانی شاعرابو حفص حکيم‌داحوص سغدی‌زوی‌دموسيقی آله«شهرود» اختراع کی‌ء.

**۲۹۲-هـ ش** امير احمد ساما نی دد ې کال دجمادی الاخر په ۲۱ دده‌په ښکار ځی کی **۳۰۱- هـ ق** دڅو تنو سر يانوله‌خوا ووژل‌سو،اوپه همدې‌سبب ترمړينی‌وروسته‌د«اميرشهيد» **۹۱۳ - م** په‌نامه‌يادسو.

دی دپلا رپر خلاف يو ضعيف النفس سړی و ،مملکتی چاروته ئې توجه نه درلود له ،

زیا تره په ښکار بوخت و ءاو ددولتی چارو واګی زیا تره د ابو الفضل بلعمی او دعلی د زوی حسین او سیمجور په لاسو کی وې .

دده تر مړینی وروسته دده اته کلن زوی «نصر» دساماني امیر انو او مشر انوله خوا دامارت پر کرسی کښینول سو ، او ابو عبدالله محمد جیهانی ئې د وزیر په حیث د چارو واګی په لاس کی وا خیستلې .

جیهانی دخپل وخت ستر شخصیت او دستین اوټینګ عزم خښتن و ، هرکار ته چی به ئې نیت وکیء هغه ئې پای ته رساوه ، ځکه نوامیرنصر دخپل امارت په دیرش کلنی دوره کی دې مدبر وزیر په ښه تدبیر او د سپهسالار حمو یه په زړور توب او وفاداری ، او تر جیهانی وروسته دبلعمی دکاردانی په اثر وکولای سوه چی پر داخلی رقیبانو او خارجی حریفانو بری ومومی ، دهغو له ډلی څخه پهداخل کی لومړی سړی چی‌دده ته پورته سو داسدزوی اسحاق دنصر د پلار اکاو ، چی خپل زوی الیاس ئې دیوه غښتلی لښکر سره پر بخارا باندی یرغل ته وګماره ، او دنصر ددربار له خوا هم سپهسالار حمویه دعلی زوی دالیاس مخنیوی‌ته ور ووت ، او دهمدې کال دروژې په میاشت سپهسالار حمویه د «خر تنګ یا «خر جنګ» په شاو خوا کی تر یوی سختی جګړې وروسته پرالیاس بریالی سو ، الیاس ماته‌وکړه خو دهغه پلار اسحاق بیا هم زیار ویوست چی‌پربخارا یرغل وکی مګر داوار هم مات سو ، او حمویه ترسمرقنده په هغه پسی‌ولاړ ، څوچی اسحاق پخپله ځان تسلیم کیء ، عذر ئې وغوښت ، او نصر هم هغه وباخښه ، او په احترام بخارا ته بوت ، اوترڅو چی‌ژوندی و ، د امیر نصر سره په عزت او سپد . خو زوی ئې الیاس فرغانی ته وتښتید، اوبل زوی ئې ابو صالح منصور چی‌دنیشاپور حا کمو، دعلی‌مرورودی دزوی‌حسین په لاسون له اطاعته سر وغړاوه مګر په همغه لومړیو ورځو کی‌مړسو ، او د هغه پرځای دعلی مرو رودی زوی حسین په ښکاره دنصر داما رت سره مخالفت وکیء ، سیستان او هرات او نیشاپور ئې پخپل تصرف کی وساته .

* ✿ *

په همدې کال دروژې دمیاشتی پهاتمه دسیستان آزادی غوښتونکی عیاران «سیمجور» ته چی د امیر احمد سامانی له خوا هلته مقرر سوی و ، پورته سول ، سیمجور د مقا و مت توان ونه درلود، نودقهستان خوا ته وتښتید ، او د سیستان خلګو دعمرو نمسی احمد دمحمد زوی مشهور په « نیا » د ښا رساتنی ته وګما ره ، څو چی د بغدا د مقتد ر خلیفه د سیستا ن

داسارت فرمان فضل دحمید زوی ته راوابره اوهغه بیا دحمدان زوی محمد پخپل نیابت سیستان ته راواستاوه (۱) پهدې وخت کې د «اوق» له سیمې څخه یو سړی د «ملیخ» په نامه چې جولاهی ئې کوله دیوې ډلې سره پاڅید او دښار وره ته رأورسید ، اودچارشنبې په ورځ ئې پخپل نامه خطبه وویله ، یوچا ورته وویل چې : «ایهاالامیر ! رسم اودستور خوداسی دی چې خطبه دجمعې په ورځ ویل کیږی »

ده جواب ورکیء : «څهمعلومه ده چې دجمعې تر ورځې به زه یم که به نه یم ؟» همغسې وسوه اوپه همهغه ورځ ترخطبې وروسته یوه ډله عیاران داحمد په مشری پرراتوی‌سوه اودی‌ئې وواژه ، او بله ورځ دذی‌القعدې په لومړی ورځ د سیستان خلکو د حمدان د زوی محمد چې دحمید دزوی فضل په‌نیابت سیستان ته راتیء ښه تودهر کلی وکیء .

* ✿ *

په همدې کال دفریاب نوسیالی قاضی اومحدث جعفر دمحمدزوی مړ سوی دی ، دی په (۲۰۷ ه ق) کال‌زیږیدلی و .

**۲۹۳ ـ ه ش** دحمید زوی فضل پخپله سیستان‌ته‌راغیء او دمحمدمروزی زوی‌ابویزید
**۳۰۲ ـ ه ق** خالد ئې هم له ځانه سره راووست ، او ابو منصور جیهانی ته ئې چې
**۹۱۴ ـ م** دامیر احمد سامانې لهوخته پهبست کې حکمران و ، احوال ولیږه چې بست‌ده‌ته‌پر یږدی‌خو ابو منصور ونه منله . هغه و ، چې فضل دحمید زوی د همدې کال دجمادی الاولی په‌اتمه دسه شنبې په ورځ دبست خواته وخوځید ، او چې د نوزاد سیمې ته ورسید د ابومنصور جیهانی دلښکر سره مخامخ سو ، او سخته جګړه ونښته ، جیهانی ماته وکړه دزابلستان خواته سعد تالقانی ته‌ورغیء ، اوفضل دجمادی‌الاولی په ۲۲ د پنجشنبې په ورځ دبست ښارته ننه‌ووت ، څه‌موده هلته و ، بیا بیر ته سیستا ن ته ستون سو ، او د بست حکومت ئې «فتح» نامی‌ته وسپاره ، خولږ موده وروسته جیهانې او سعد تالقانی له زابلستانه بیا پر بست یرغل وکیء ، اودبست حکمران فتح ئې سیستان ته وشاړه او بست ئې ونیو .

ځنګه چې دحمیدزوی فضل ډیر ناروغه و ، نودپارس والی بدر الکبیر ته‌لیکک و لیکه چې ملا تړ

---

(۱) کامل ابن اثیر لیکی‌چی : مقتدر د سیستان ولا یت بدرالکبیر ته ورکیء او هغه‌بیا دحمید زو ی فضل اودمحمد مروزی زوی ابویزید خالد پخپل نیابت راواستول (۸ټوک ۲۶ مخ )

ورته راولیږي ، اوهغه هم یو تکړه لښکر دطغریل دزوی محمد په مشرۍ راواستاوه چې دذالقعد ې په ۲۵ دسه شنبې په ورځ سیستان ته را ورسید، او له هغه ځایه د هیلمند دزمینداور خواته راوخوځید.

**۲۹۴ - ه ش** زمینداورته یوفرسنګ نژدې دطغریل دزوی محمداودابومنصورجیهانی

**۳۰۳ - ه ق** اوسعد تالقانی ترمنځ جګړه و نښتله، هغه و ، چې تر یو ې سختې جګړې

**۹۱۵ - م** وروسته دهمدې کال دمحرم په دوهمه شپه جیهانی ماته و کړه اوتالقانی د محمد دلښکر په لاس کښیووت ، اومحمد هغه بندی سیستان ته واستاوه ، اوپخپله زابلستا ن ته راغی ، اودجارو ترسمون وروسته د جمادی الاولی په ۲۰ سیستان ته ستون سو ، تالقانی ئې له بنده ایله کړ ، وئې نازاوه ، خوپخپله په همدې سیاشت مړ سو .

**۲۹۵ - ه ش** بدرالکبیر دپارس والی دابراهیم زوی زید ئې دسیستان د خراج د ما ل

**۳۰۴ - ه ق** اخیستلو دپاره سیستان ته راولیږه خو په سیستان کی خالد محمد زو ی

**۹۱۶ - م** دبدر اطاعت ته غاړه کښې نه ښووله ، بست ته ولاړ ، او بست ئې له «فتح » څخه ونیو ، او دهمدې کال په جمادی الاخر کی ئې فتح دلښکر سره سیستان ته بو ت ، او بیا ئې دشوال په یوولسمه دجمعې په ورځ ددیرانو کالی اه ځانه لیر ې کړه اودسپاپانو لباس ئې واغوست د «بدر »نوم ئې له خطبې لیری کی، اوخطبه ئې په خپل نامه وویله، اودهمدې کال دشعبا ن په ۲۹ دسه شنبې په ورځ د کرمان په نیت وخوځید ، دبدر لښکر ئې سخ ته راغی، اوتریوې سختې جګړې وروسته خالد ماته وکړه اودبدر دلښکر په لاس بندي کښیووت ، خود ده یوسالار داحمد زوی کثیر د یوې «دلی سپاپانو سره دذی القعدې په ۲۲ دشنبې په ورځ سیستا ن ته را ستو ن سو اودچارو واګی ئې په مستقل ډول پخپل لاس کی ونیولې ، اودسیستان دخلکو سره ئې دعدل او نیکی رویه راواخیستله اوهغو هم دده امارت ومانه ، اوحتی دزمینداور او بست ا و ر خد خلکو هم دده فرمان ته غاړه کښیښووله .

**۲۹۶ - ه ش** دبغداد خلیفه مقتدر دعباس شفیق په لاس دسیستان امیر داحمد ز و ی

**۳۰۵ - ه ق** کثیر ته پیغا م را و استاوه چې دسیستان حکومت دی دپا رس والی بدر

**۹۱۷ - م** ته وسپاری ، خودسیستان خلکوو ویل چې : «موږ بې له « کثیره» بل څوک نه غواړ و» هغه و ، چې بدر یولوی لښکر دابراهیم دزوی زید په مشرۍ سیستان ته را ولیږ ه له دې خوا کثیر د سیستان دآزادی غوښتو نکو عیارانو سره مقابلې ته ور ووت ، جګړ ه و نښتله دبدر لښکر ماته وکړه اودابراهیم زوی زید د کثیر په لا س بندی کښیووت ، داپیښه دهمدې کال درجب په ۱۶ دچارشنبې په ورځ پیښه سوه .

بیا عباس شفیق دبغداد دخلافت استازی دوهم وار سیستان ته راغیء اودوزیر ابوالحسن علی مشهورپه ابن الفرات ایک ئې دسیستان امیرکثیر ته راوی‌ء چې په هغه کی د« بدر »د سر لښکر «زید »د‌ایله کیدو غوښتنه سوې وه ، کثیر هغه غوښتنه ومنله اوزید ئې ایله کی ء او هم ئې یو‌آس اودوې غاتری اوپنځه اوښان اوزر دیناره اولس جوړې کالی اونور خلعتونه و رکړه اوبیائې دعباس شفیق په‌لاس شپږ سوه زره درمه ابن الفرات ته‌واستول .



په همدې کال دبلخ نوسیالی حنفی فقیه محمد د محمد زوی او د سلام حنفی بلخی نمسی وفات سو .

**۲۹۷ -ه ش** د سیستان امیر کثیر دد ې کال دشوال په ۲۸ د شنبې په ورځ چې
**۳۰۶ - ه ق** دکر کوی خوا ته په چکر و تلی‌و، د ماز دیگر پروخت د قد امدزوی
**۹۱۸ - م** احمد په تو طئه «دطرا بیل» هند و په لاس ووژل سو، اود شوال په ۲۹ د یکشنبې په ورځ دقدام زوی احمد دزرنج‌ښار ته راغیء او په یعقوبې مانی کی‌ئې د مملکتی چارو ‌اگی په لاس کی‌و نیولې ،او څه سو د، وروسته ئې بست هم و نیو.



په همدې کال په خراسان کی‌دکاسگارکړوسی اودهاشم نمسی‌اودسهل‌زوی احمدچې دامیر نصر سامانی له خوا دعلی‌سرورود ی دزوی حسین‌د بغاوت دمخنیوی دپاره گمارلی سوی و، د ربیع الاول په میاشت تر یو ې جگړې و روسته نیشا پور له حسین څخه و نیو ، او هم ئې پخپله حسین بندی په لاس کښېووت او بخارا ته ئې و‌اېږه‌چې هلته‌په‌زندان کی مړ سو .خو څه سوده‌لا تېره نه وه چې پخپله د سهل زوی احمد چې دخراسان له لویو کورنیو څخه و، امیر نصر سامانی ته یاغی سو، او دامارت دخپلواکی‌اعلان‌ئی‌وکی‌ء.

**۲۹۸- ه ش** د سهل زوی احمد په نیشاپور کی د امیر نصر نوم له خطبې څخه
**۳۰۷ - ه ق** لیری کی‌ء او خپلواکی ئې اعلان کړه، څنگه چې د اخبر سامانی
**۹۱۹ - م** دربارته ورسېد نود سامانی لښکر سپهسالار حمویه کوسه دگرگان والی قراتکین تهامروکی‌ء چې پر احمد یرغل وکی،احمد له نیشاپوره مروته و تښتید، حمویه له بخارا څخه مروته ورغیء‌ته‌او احمد ئې‌و نیو،بندی ئې‌بخاراته‌واېږه څو چې هلته‌د دې کال دذی‌الحجې په میاشت په‌بند یخانه کی‌مړ سو.

۲۹۹ـ ه ش  دنعمان زوی لیلی چې دد یلمی کهول له نومیالی څخه و، په دې کال
۳۰۸ـ ق  دطبرستان دعلویانو په امر پرخراسان یرغل وکړیء، نیشاپورئې ونیواوپرطوس
۹۲۰ـ م  ئې حمله وکړه.

۳۰۰ـ ه ش  امیر نصر سامانی یو لښکر دعلی دزوی حمویه په سپهسالاری او دسیمجور
۳۰۹ـ ق  دواتی په سالاری دنعمان دزوی لیلی دسرکوتلو دپاره طوس ته ولیږه،
۹۲۰ـ م  چې هلته ئې پرلیلی بری وموند او هغه ئې وواژه.

۳۰۱ـ ه ش  په فرغانه کې الیاس داسحاق زوی چې دامیر نصر سامانی دپلار دا کا
۳۱۰ـ ق  زوی و، امیرنصرته پورته سو، خو د سا ما نی حا کمانو له خوا مغلوب
۹۲۲ـ م  سو.

***

په خرا سان کې امیر نصر سامانی پرگرگان او خراسان باندی دقاسم دزوی حسن ملقب په دا عی صغیر او دهغه دملگرو یرغلاو نواند یښمن کړی و، ځکه ئې نود خپل ترکی سر دارنو څخه یوتن چې «قراتکین» نومیده ددیر شو زرو جگړنو سره گرگان ته ولیږه او داعی صغیرته ئې ماته ورکړه او هم ئې پخپله داعی صغیرپه‌ری کی بندی کیء، خوځه موده وروسته له بنده وتښتید او بیائې دسامانیانو سره دمقابلې دپاره په ځان چمتو کولولا س پوری کیء ـ داو ار نو امیرنصر سامانی سیمجورداوتی دداعی صغیر سرکوتلو ته وگماره، او سیمجور تریوه جنگ وروسته دا عی صغیراو دهغه خسرابوالحسین دنا صر علوی زوی ته ما ته ورکړه او گرگان ئې و نیو.
په همدې کال په سیستان کې دسیستان امیر احمد دقدام زوی ته دمحمد زوی عبدالله پو رته سو، او د خلکو په مرسته ئې احمد ته ماته ورکړه، او په خپله دزرنج یعقوبی ماڼی ته ولاړ، دوسلو ټولی ذ خیرې او دپیسو ټولې خز انې ئې ضبطې کړې، او درو ژې دمیاشتې په اوله ئې دعبدا لله زوی عزیز خپل نایب وټاکه او پخپله داحمد پسې بست ته ولاړ، څوچې احمد ئې تر یو ې سختې جگړې وروسته و نیو، بند ی ئې کیء، او امرئې وکیء چې د بست له خلکو څخه دی یومیلیون درمونه واخیستل سی، او پخپله رخد ته وخوځید.

***

په همدې کال دسامانی دربار نومیالی او پو ها ند وزیرا بو عبدالله محمد داحمد زوی او دنصر جیهانی نمسی خپل مشهور کتاب «المسا لک و الممالک» ولیکه چې اوس نسته.

همدا راز په دې کال دخراسا ن لوی نوسیالی محد ث عبدالله د محمد بغوی زوی او د «معجم الصحابه» خاوند مړ سوی د ی . دی په (۲۱۰ه ق) زیږ ید لی و .

**۳۰۲-ه ش** دسیستان خلګ دسیستان دامیرنایب دعبدا لله زوی عزیزته پورته سول، **۳۱۱- ه ق** اوددې کال دمحرم په ۱۷ دچارشنبې په شپه ئې ابوجعفر احمد دمحمد **۹۲۳- م** زوی ، دخلف نمسی او دلیث کړو سی دسیستان په امیری وټا که ، د ی ګکه ښه هم زلمی و ، خو پوهه اوعقل ئې د پخو خلګو درلو ده او ښه فا ضل سړی و . ځکه نو نه یوازی دسیستان پر خلګو ګران و ، بلکه دبست اورخد خلګو هم په خوښی سره د ده اطاعت وسانه او دده په نامه ئې خطبه وویله .

ابوجعفر احمد وکولای سوه چی دهیواد ګډوډ حالات بیرته سم کړی ، او هم د سا مانی دربار سره ښه روابط ټینګ کړی . دی دصفاری کورنۍ اووم امیرو .

***

په همد ې کال دهرات یونوسیالی محدث عبدالله دعر وه هروی زوی مړ او په هرا ت کی ښخ سو .

**۳۰۳-ه ش** دهرات یونوسیالی محدث ابر اهیم دسری هروی‌زوی او د « جزألاعمال » **۳۱۲- ه ق** مؤلف مړسوی دی .
**۹۲۴- م**

**۳۰۴-ه ش** ددې کال د رجب په میاشت دسیستان امیرابو جعفر احمد ته خبر ور سید **۳۱۳- ق** چی په بست کی دعبدالله زوی عزیز یاغی سوی د ی ، ځکه نوابوجعفر **۹۲۵- م** احمد دروژې په میاشت دعزیز جنګ ته ولاړ، عزیزدمقابلې توان ونه درلود د«کش » له لاری دسیستان خواته وتښتید اوبست بیاد ابوجعفرلاسته ورغی‌او په سیستان کی ابوالفضل محمد داسحا ق عربی زوی دده په نیابت کار کاوه .

**۳۰۵-ه ش** امیر نصر سامانی د «ری» ولایت ونیو، اوسیمجور دو اتی ئې دهغه ځا ی **۳۱۴- ق** په حکوست وګماره ، خولږ سوده پس ئې هغه معزول کیء اودعلی صعلوك **۹۲۶- م** زوی محمد ئې دری حکمران وټاکه .

**۳۰۶-ه ش** امیر نصر سامانی یو لښکرد شیر ویه دزوی اسفا ر په مشری ګرګا ن ته **۳۱۵-ه ق** واستاوه ، اسفار ګرګا ن ونیو، او ددیلم یو سرد ار ئې چی « مرد آویج » **۹۲۷- م** نو سید او دزیار زوی و ، د خپل لښکر سپهسا لار وټا که .

**۳۰۷-ھ ش** د شیرو یه زوی اسفار د ساماني لښکر مشر د داعی صغیر سره چې دگرگان
**۳۱۶- ھ ق** دامارت ادعا ئې در لو د له وجنګید ، او داعی « ساری » ته نژدې په
**۹۲۸- م** جنګ کې ووژل سو، خوښه سوده وروسته په همدې کال پخپله « اسفا ر »
دخپل سپهسا لار «سر د آو یج» په لاس وو ژل سو .



په همدې کال دافغانستا ن د انوسیا لې پوهان وفات سوي دي :

۱- د «تا ریخ بلخ» د کتاب مؤ لف محمد دعقیل زوی اود ازهر بلخی نمسی.

۲- امام عبد الله د ابوداود سجستانی زوی حنبلي پوهاند .

۳- عبدالله د سلیما ن سجستانی زوی نوسیالی محدث او مفسر چې په بغداد کې مړ دی، دی په (۲۳۰ ھ ق) کال زیږ ید لی و.

**۳۰۸-ھ ش** ابوجعفر احمد د سیستان امیر د دې کا ل د شعبا ن په میاشت د یعقوب
**۳۱۷-ھ ق** رز دانی زوی محمد ئې د سالیو د تولولو د پاره کرمان ته ولیږ ه ،او د کر مان
**۹۲۹ - م** خلکو ده ته یو میلیون درسه ورکړه او د ی د ذی القعدې په میاشت بیر ته سیستان ته را غی ،او د رو ژې په میاشت بست ته ولا ړ.



په همدې کال امیر نصر سامانی له بخا را څخه نیشا پور ته ولا ړ ، خو تر تګ د مخه ئې خپل د رې ورو ڼه (ابرا هیم، یحیی او منصور) له دې بیر ی چې دده پر خلاف ونه پاڅی د بخارا په کلا کې بند یان کړ ه ، او څیره ئې ورته وټا کله .

**۳۰۹-ھ ش** د امیر نصر سا مانی درې بندیانو ورونو د ابوبکر آشپز په مرسته خپل بندیوان
**۳۱۸-ھ ق** وغولا وه ،له ز ند انه ووتل او هم ئې ټو ل بندیان د خانو سره و یستل،
**۹۳۰ - م** بخا را ئې و نیو له او د امیر نصر خزا نې ئې چور کړې؛ د امیر نصر ورور یحیی دچارو وا گې په لاس کې و نیو لې او ابو بکر آ شپز د بخارا کو توال و ټا که .

داخبرچې امیر نصر ته ورسید له نیشا پور بیر ته بخارا ته ولاړ، او د خپل هوښیارا وباتدبیره و ز یر ا بو ا لفضل بلعمی په لا ر ښو و نه ا و د خراسان د لښکر د سپهسا لار ا بو بکر محمد د مظفر زو ی او د محتاج چغا نی د نمسی په مرانه ئې د بخا را فتنه بیده کړه ،او د امیر نصر ورونه شا وخواته تیت اوپرک سو ل ،او ابو بکر آ شپز ئې ترشلا خو لا ند ی وو اژه ، اوبیا ئې په تنور کې وا چاوه .

۳۱۰-ه ش یحیی دامیر نصر سا ما نی وروړ چې هر ی خواته لالها نده ګرځید په دې
۱۳۹-ه ق کال کې ئې د یوه ساما نی سالار قراتکین سره لاس یو کیء ، او پرهرات
۹۳۱ - م ئې یر غل وکیء ، هرات ئې ونیو، اودښاردرو ازې ئې و سیځلې اودیو الونه ئې وران کړ ه. خوهمه وخت چې دامیر نصر سامانی دورتګ خبر اروی دقراتکین سره بوځای د بلخ خواته تښتی ،او امیر نصرچې هرات ته ورسید سیمجو رئې بیا د هغه ځای والی وټا که .

*❁*

په همدې کال دافغا نستان یو متبحر عا لم ابو القا سم عبدا لله دا حمد کعبی بلخی زوی مړ سوی دی ، د ی د کلام د علم ستر عالم او د معتز له له مشر انو څخه و ،اوپه هغه مذهب کې ئې یوه خا صه فرقه د « کعبیه » په نامه منځ ته را و ستلې وه،دی په خپل وخت کې د بغداد د معتز له ډلې ر ئیس و ، ده او محمد بن زکر یارازی دیو بل په رد کې ر سا لې لیکلې دی.

❁❁❁

همد اشان په دې کال د بلخ یولوی صوفی محمدد فضل بلخی زوی په سمر قند کی وفات شو .

۳۱۱-ه ش امیر نصر سا مانی نیشا پو رته ولاړ ،او ګرګان بیر ته دساما نیانو لا س ته
۳۲۰-ه ق ورغیء . څنګه چی امیرنصر یو باعاطفه سړی و،نو هغه تول یاغیان ئې ویخښل
۹۳۲ - م چې له درو کالو را هیسې یاغی سوی وو ، چې په هغه ډله کې یوهم دده وروړ یحیی و ،او هم ئې دبلخ حکومت بیرته قراتکین ته و سپا ره.

اوپه همدې کال د محمد چغا نی زوی ابو علی احمد دسامانیانو ددو لت له خو اد « ری» دولایت د امیر و شمګیر د زیا ر د زوی سخنیوی ته وګمارل سو ،اوپه هغه جګړه چی ددې کال در بیع ا لاول په یو و یشتمه دد اسغان په اسحاق آباد کې دابو علی چغانی او و شمګیر تر منځ پیښه سو ه او دد یلمی یوبل نومیالی سردار « ماکان» د« کاکی»زوی دډیروخلکو سره دوشمګیر ملا تړ ته راغیء ،بیا هم وشمګیر ماته وکړه او ډیر زیان ور ورسید.

۳۱۲-ه ش امیر نصر سامانی له نیشا پوره بخاراته ولا ړ، اوپه خراسان کی ئې ابو بکر
۳۲۱-ه ق محمد د مظفر زو ی او دمحتاج چغا نی نمسی چی دچغانیانو د کهاله له
۹۳۳ - م مشر انو څخه و ،د خر ا سان دټولولښکرو په سپهسا لا ری او حکمر ا نی وټا که .

په همدې کال دو شمګیر ور و ر«مرد آو یج» یا «مر د آویز» د«ری» امیر دګرګان دنیو لو نیت و کیء،ابو بکر محمد چغا نی جګړې ته چمتو سو، اودسامانیا نو دربار ئې د«مردآویج» له نیته خبر کیء؛ هغهو،چې د سامانیانو ددر بارنامتووز یر محمد دعبدالله بلعمی زوی «مردآویج» ته په دې مضمون پیغام وا ستا وه:

«دا سیځر ګند یږی چی تاخپل وزیر «مطرف» ددې دپاره ګرګان ته لیږلی دی چې وګوری چې دګرګان دخلکو ز ړ ونه ستاسره دی که نه؟

عمر و لیث هم د ر بیعه زوی احمد دهمد اسی کار دپار ه بلخ ته لیږلی و' چی د هغه کار نا وړه نتیجه به دی هم ار ویدلې وی!!

نو بیا څنګه د یو دا سی یا چا سره چی سل زره سر یان دده پرشاوخواراګر ځیدلی دیمخامخ کیږې؟

ښه داده چی له ګرګانه لاس و اخلې،او بیرته پرخپله لارولاړسې،اوله«ری»څخه پر هغهڅه چی روغه سوی راواستو ې!»ددې پیغام په رسیدوسره مردآویج پوه سوچی دسامانیانو سره مقابله نه سی کولای او نا چا ر ه سو روغی ته ئې غاړه کښېښوله' ګرګان ئې سامانیانو ته پریښوو، اوپه خپله ری ته ستون سو، اوتر څوچې ژوندی و، بیائې پر سامانیانو تیری ونه کیء.

**۳۱۳ - ه ش** امیر ابوبکر محمد دمظفر چغانی زوي دخراسان دټولولښکرو سپهسالا ر

**۳۲۲ - ه ق** او حکمران په دې کال د کرمان ولایت د «کا کی د ز و ی ما کان»

**۹۳۳ - م** په واسطه چی هغه وخت ئې سامانیانو ته پناه راوړې وه ونیو، اودسامانی هیوادو سره ئې یوځای کیء.



په همدې کال دذیقعدې په دوولسمه دشنبې په شپه د افغا نستان یو ستر عالم ابوزید احمد دسهل بلخی زوی چی د کلام دعلم نوسیالی پوه اونامتو متکلم و، مړ سوی دی.

دی په (۲۳۵ ه ق) کال دبلخ په شا مستان کلی کی زیږیدلی، په فلسفه کی د خپل وخت دستر عالم ابی یوسف یعقوب کندی شاګرد اودنومیالی لوی حکیم محمد دز کریای را زی استادو. په نجوم، هیئت' طب او دینی علومو کی ئې هم ژوره مطالعه درلودله، او دده لوی اهمیت په دې کیءو، چی ده فلسفه اوشرعیه علوم یاپه بل عبارت «حکمت» ئې د«شریعت» سره یوځای کړی او وفق بې ورکړی و، سربیره پر د ې ئې ترشپیتو کتابو زیات تصنیف کړیوو،

په‌تیره ئې بیا د کلام په علم کې دونې شهرت موندلی و ، چې ده ته‌ئې «د خراسان جاحظ» لقب ورکړی و ، دده د «صور الاقالیم» کتاب زیات شهرت لری .

**۳۱۴ - ه ش** مرداویج د سامانی دولت خطرناک رقیب داصفهان په یوه حمام کې
**۳۲۳ - ه ق** دخپل یوه ترکی مریی له‌لاسه ووژل سو ، سپاهیان ئې له اصفهانه ری
**۹۳۴ - م** ته ولاړل اودمرد آویج د ورور وشمګیر سره بیعت وکړ ، او وشمګیر دسامانیانو سقابلې ته چمتو سو .

**۳۱۵ - ه ش** امیر نصر سامانی دخراسان دلښکرو سپهسالار او حکمران ابوبکر محمد
**۳۲۴ - ه ق** دمظفر چغانی زوی د کاکی د زوی «ماکان» سره چې دسامانی دولت
**۹۳۵ - م** په پناه کې اوسید دقومس اوری نیولو او د ګرګان دفاع ته وګمارل ، خوماکان چې پردامغان یرغل کړی‌و ، ماته وکړه او نیشاپورته ستون سو ، اوبیاکه څه‌هم دامیر نصر سامانی له‌خوا دنیشاپور په حکومت وټاکل سو ، خوهغه ناشکری وکړه ، اوسامانی دولت ته‌ئې شاکړه اودوشمګیر دلښکر سره‌یوځای‌سو ، اووشمګیرهم دګرګان ساتنه‌ده ته‌وسپارله .

**۳۱۶ - ه ش** په‌بلخ کی د دری ژبې سترشاعر اونومیالی حکیم ابولحسن شهید د حسین
**۳۲۵ - ه ق** جهودانکی زوی مشهور په «شهید بلخی» وفات سو . دی په‌دری شعر
**۹۳۶ - م** کی‌استاد و ، او د کلام په‌علم کی ئې داامام‌رازی سره مناظرې‌درلودلې . دی د «سهیل» او «علی» په‌نامه هم یاد سوی اولیکلی سوی دی ، د خپل وخت له لویو متکلمینو څخه و .

استاد رودکی ددری ژبې نومیالی شاعر د ی ډیر ستایلی د ی ، او د خرد له مخې ئې ترزرو تنو ډیر ارزښت ورته قایل دی لکه‌چی دده په‌ویرنه (مرثیه) کی وایی :

کاروان شهید رفت از پیش
زان ما رفته گیرو می اندیش
از شمار دو چشمم یک تن کم
وز شمار خرد هزاران بیش

شهید په حسن خط کی هم استاد و ، او ددری ژبې نـا متو شـاعر فرخـی دده دا هنر ستایلی دی .

ده په عربی ژبه هم شعروایه ، او تألیفات هم لری .

۳۱۷ - هـ ش دبلخ نومیالی فقیه عالم احمد د عصمة صفار بلخی زوی مړ، او په
۳۲۶ - هـ ق بلخ کی ښخ کړه سو.
۹۳۷ - م

۳۱۸ - هـ ش امیرنصر سامانی دابوبکرمحمد چغانی زوی د پلارپرځای چی ناروغه او
۳۲۷ - هـ ق ناتوانه سوی و، دخراسان دټولو لښکرو سپهسالار وټاکه.
۹۳۸ - م

۳۱۹ - هـ ش دامیر نصر سامانی له خوا دابوبکر محمد چغانی زوی ابو علی احمد
۳۲۸ - هـ ق دخراسان دلښکرو سپهسالار دگرگان دولایت نیولو اودناشکره «ماکان»
۹۳۹ - م تعقیبولو ته وګمارل سو، ماکان د ابوعلی احمد د مخنیوی په غرض
ټولی لویی لاری تر اوبو لاندی کړې، خو ابوعلی له یوې بلې لارې ځان گرگان ته ورساوه
او ماکان ئې دگرگان په ښار کی کلابند کیء، کهځه هم وشمګیر دری له ولایته یو لښکر
دنعمان دزوی شیرج په مشری دماکان ملاتړ ته ور ولیږه مګر هغه هم د جګړې له لاری څه
ونه سوه کولای روغی ته ئې غاړه کښېښووله، او ابوعلی احمد په دې شرط د ماکان له نیولو
څخه تېر سو، چی هغه گرګان ده ته پرېښوو، او پخپله ئې طبرستان ته پناه یو وړه. هغه و،
چی دګرګان ولایت بیا دسامانیانو په دولت پوری وتاړه سو.

* ✿ *

په همدې کال دبلخ یونومیالی فقیه عالم ابوبکرمحمد دسعید بلخی زوی مړاو په بلخ کی ښخ سو.

۳۲۰ - هـ ش ابو بکر محمد دمظفر چغانی زوی د سامانی دولت له خوا د خراسان
۳۲۹ - هـ ق دټولو لښکرو پخوانی سپهسالار مړ او په چغانیان کی ښخ سو، اود هغه
۹۴۰ - م زوی ابو علی احمد چی دوه کاله دمخه دده پرځای په سپهساری وټاکلی
سوی و، وروسته تر هغه چی گرگان ئې بیرته په سامانی دولت پوری ونښلاوه، او دهغه ځای
حکومت ئې د سیمجور زوی ابراهیم ته وسپارد نو پخپله د دې کال دربیع الاول په سر کی
د ری ولایت ته ولاړ، او در بیع الاول په ۲۱ د پنجشنبې په ورځ ئې دو شمګیر د لښکر سره
جګړه وکړه چی په هغه کی ماکان د یلمی دکاکی زوی ووژل سو، او پخپله وشمګیر طبرستان
ته وتښتید، اوری هم په سامانی دولت پوری وتړل سو، اوابو علی دماکان د وژلو خبر په دې لنډه
عربی جمله کی سامانی امیرته واستاوه: «اما ماکان فصار کاسمه» یعنی ماکان دخپل نامه په څېر نیست
سو، او دماکان سرئې ده پرو بندیانو سره بخاراته ولېږه، بیائې نو زنجان، ابهر، قزوین، قم، کرج،
همدان، نهاوند او د ینور هم ونیوی اودسامانی دولت و پش ئې حلوان ته ور ساوه.



# *CHRONOLOGICAL NOTES*

# *ON*

# *AFGHANISTAN*

VOL . I

BY

*A. R. Benawa*

**Published**

**by**

**Faculty of Letter's and Humanities**

**Kabul University**

**1975**

دولتی مطبعه